

**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود ریاضي

## دویم ټولگی




د چاپ کال: ۱۳۹۳ هـ. ش.

د ښوونکي لارښود ریاضي دویم ټولگی



درسي کتابونه د پوهنې په وزارت پورې اړه لري. په بازار کې يې پيرودل او پلورل په کلکه منعه دی. له سر غړوونکو سره به يې قانوني چلن وشي.

moe.curriculum@gmail.com




**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود رياضي

## دويم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۳ هـ . ش.

**لیکوالان:**

سر مؤلف نظام الدین

سر مؤلف عبدالکبیر

ښوونمل محمد حسین (محسنی)

**ژباړونکی:**

سر مؤلف نظام الدین

**اديتور:**

سرمؤلف عبدالظاهر (گلستانی)

**د څارنې کمېټه:**

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب او د ښوونکو د روزنې معین
- دکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
- سرمؤلف عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس

**ډیزاین:** سیدکاظم (کاظمی)



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي — پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه اسمان

په سینه کې د اسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## د پوهنې د وزير پيغام

## گرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختيا او پرمختگ بنسټ جوړوي. تعليمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختگ او ټولنې د اړتياوو له مخې چمتوکيږي. څرگنده ده چې علمي پرمختگ او ټولنيزې اړتياوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعليمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختيا ومومي. البته نه ښايي چې تعليمي نصاب د سياسي بدلونونو او د اشخاصو د نظريو او هيلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتيب شوی دی. د تدريس د نويو ميتودونو له مخې فعاليتونه او معلوماتي مواد په کې ورزيات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده کړې په بهير کې د زده‌کوونکو د فعال ساتلو لپاره گټور او اغېزمن وي.

هيله من يم د دې کتاب منځپانگه، چې د فعالې زده کړې د ميتودونو د کارولو له لارې تاليف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو د گټې وړ وگرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده‌کوونکو له ميندو او پلرونو څخه غوښتنه کيږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکيفيته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توگه د پوهنې د نظام موخې او هيلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پايلې او برياوې ور په برخه کړي.

زموږ گران استادان او ښوونکي د تعليمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درووند مسؤوليت لري.

د پوهنې وزارت تل زيار کاږي چې د پوهنې تعليمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دين له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرگندو اړتياوو، ملي گټو او وطنپالنې له روحيې او د ساينس او تکنالوژۍ له نوو علمي معيارونو سره سم پراختيا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصيتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له ميندو او پلرونو څخه هيله لرم چې د خپلو نظريو او رغنده گټورو وړانديزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود د کتابونو په لا ښه تاليف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتيب کې يې برخه اخيستې او همدارنگه له ملي او نړيوالو درنو موسسو او نورو ملگرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعليمي نصاب په چمتو کولو او تدوين او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې يې مادي يا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هيله يې لرم.

ومن الله التوفيق

فاروق وردک

د افغانستان د اسلامي جمهوريت د پوهنې وزير

# نوم لیکې (فهرست)

| عنوان | مخ |
|---|---|


د عدد مفهوم ..... ۱
متناوب شمیرل ..... ۳
متناوب شمیرل ..... ۵
مشق او تمرین ..... ۷
تر ۱۰۰ پورې د عددونو ترتیب او پرتله کول ..... ۹
د عددونو پرتله او ترتیب ..... ۱۱
تر ۱۰۰ پورې د عددونو ترتیب ..... ۱۳
د متناوب شمیرلو مشق او تمرین ..... ۱۵
مخ کې، وروسته، منځ کې، زیات او لږ ..... ۱۷
وصفی (ترتیبی) عددونه ..... ۱۹
د مقامی قیمت مفهوم ..... ۲۱
د مقامي قیمت مفهوم ..... ۲۳
د عددونو جمع تر ۹۹ پوری ..... ۲۵
د جمعې په عملیه کې د بدلون (تبدیلی) قانون ..... ۲۷
د جمعې په عملیې کې د بدلون (تبدیلی) قانون ..... ۲۹
مشق او تمرین ..... ۳۱
د جمعې د دریو جزو جمع کول ..... ۳۳
تفریق ..... ۳۵
تفریق ..... ۳۷
د تفریق عبارتې پوښتنې ..... ۳۹
عبارتې پوښتنې ..... ۴۱
د جمعې او تفریق تر منځ اړیکې ..... ۴۳
د جفت او تاق عددونو پیژندنه ..... ۴۵
د جفت او تاق عددونو پیژندنه ..... ۴۷
مشق او تمرین جفت او تاق عددونه ..... ۴۹
د دوه رقمې عددونو جمع کول له یوه رقمې عددونو سره (چې حاصل ولري) ..... ۵۱
د دوه رقمې عددونو جمع کول له یوه رقمې عددونو سره (چې حاصل ولري) ..... ۵۳
د دوه رقمې عددونو جمع کول له دوه رقمې عددونو سره چې حاصل ولري ..... ۵۵
د هغو دوه رقمې عددونو د جمعې مشق او تمرین چې حاصل ولري ..... ۵۷
د جمعې د دریو جز جمع کول چې حاصل ولري ..... ۵۹
د دریو جزو د جمع کول چې، حاصل ولری ..... ۶۱
د دوه رقمې عددونو د جمعې کولو مشق او تمرین ..... ۶۳
له دوه رقمې عدد څخه د یوه رقمې عدد تفریق کول، چې په هغه کې پور (قرض) اخیستل وي ..... ۶۵
له دوه رقمې عددونو څخه د دوه رقمې عددونو تفریق (د پور اخستلو په صورت کې) ..... ۶۷
له دوه رقمې عددونو څخه د دوه رقمې عددونو تفریق د پور اخستلو په صورت کې ..... ۶۹
د دوه رقمې عددونو د تفریق مشق او تمرین ..... ۷۱

| عنوان | مخ |
|---|---|


د دوه رقمې عددونو مشق او تمرین ........ ۷۳
د جمعې او تفریق د عملیو ازمول د یو بل په واسطه ........ ۷۵
د تفریق د عملیې ازمول ........ ۷۷
د عددونو جمع کول د چوت په واسطه ........ ۷۹
د عددونو جمع کول د چوت په واسطه ........ ۸۱
د عددونو تفریق د چوت په واسطه ........ ۸۳
له (۱۰۰ – ۱۰۰۰) پورې د عددونو لوستل او لیکل ........ ۸۵
لس ګوني (لسیز) او سل ګوني (سلیز) ........ ۸۷
لس ګوني (لسیز) او سل ګوني........ ۸۹
سلیز، لسیز او یویز ........ ۹۱
سلیز، لسیز او یویز ........ ۹۳
تر ۱۰۰۰ پورې د عددونو مقامي قیمت ........ ۹۵
تر ۱۰۰۰ پورې د عددونو مقامي قیمت ........ ۹۷
له ۱۰۰ څخه تر ۵۰۰ پورې د عددونو لیکل ........ ۹۹
مخ کې، وروسته او منځ کې ........ ۱۰۱
د عددونو پرتله ........ ۱۰۳
د عددونو ترتیب د مقامي په ارزښت سره ........ ۱۰۵
د عددونو مشق او تمرین تر ۱۰۰۰ پورې ........ ۱۰۷
د څو سلګونو جمع کول ........ ۱۰۹
د څو سلګونو جمع کول ........ ۱۱۱
د یوه درې رقمې عدد جمع کول له یوه درې رقمې عدد سره چې د یویز او لسیز رقمونه یې صفر وي ........ ۱۱۳
د درې رقمې عددونو جمع کول ........ ۱۱۵
د درې رقمې عددونو جمع کول چې حاصل ولري ........ ۱۱۷
د درې رقمې عددونو جمع کول چې حاصل ولري ........ ۱۱۹
د درې رقمې عددونو تفریق د قرض (پور) اخستلو پرته ........ ۱۲۱
د درې رقمې عددونو تفریق، په پور (قرض) اخستلو سره ........ ۱۲۳
د پور اخستلو په صورت کې د درې رقمې عددونو د تفریق مشق او تمرین ........ ۱۲۵
د یوه درې رقمې عدد تفریق کول د داسې یوه درې رقمې عدد څخه چې یویز او لسیز یې صفر وي ........ ۱۲۷
د درې رقمې عددونو د جمعې او تفریق مشق او تمرین ........ ۱۲۹
د ضرب مفهوم، د دوو، دوو، درې، درې زیاتول او شمیرل ........ ۱۳۱
د ضرب مفهوم دوه، دوه، درې، درې زیاتول ........ ۱۳۳
د هغو عددونو جمع کول چې مساوي اجزاوې ولري (تکراري جمع) ........ ۱۳۵
د هغو عددونو جمع کول چې مساوي اجزاوې ولري ........ ۱۳۷
د ضرب د علامې (نښې) پېژندل ........ ۱۳۹
د ضرب د نښې (علامې) پېژندنه ........ ۱۴۱
د کتارونو جوړول ........ ۱۴۳
د مساوي کتارونو جوړول ........ ۱۴۵
په ضرب کې د بدلون خاصیت ........ ۱۴۷

| عنوان | مخ |
|---|---|

ضرب کول په عمودي شکل ........ ۱۴۹
د ضرب د عمليې کارول په عبارتي پوښتنو کې ........ ۱۵۱
د ضرب ښودنه د شکلونو په واسطه ........ ۱۵۳
د ۳، ۴ او ۵ د ضرب ښودنه د شکلونو په واسطه ........ ۱۵۵
د يوه رقمي عدد ضرب کول په دوه رقمي عدد کې ........ ۱۵۷
د يوه رقمي عدد ضرب کول په دوه رقمي عدد کې ........ ۱۵۹
د ضرب په عمليه کې د (۱) د عدد خاصيت ........ ۱۶۱
د ضرب په عمليه کې د صفر (۰) خاصيت ........ ۱۶۳
د ګروپونو جوړول ........ ۱۶۵
د ګروپونو جوړول ........ ۱۶۷
د مساوي ګروپونو جوړول ........ ۱۶۹
ويش (تقسيم) ........ ۱۷۱
مشق او تمرين ........ ۱۷۳
ويش ........ ۱۷۵
د ضرب او ويش مشق او تمرين ........ ۱۷۷
د ضرب او ويش تر منځ اړيکي ........ ۱۷۹
د يوه عدد ويشل په خپله هم هغه عدد باندې ........ ۱۸۱
د يوه عدد ويشل په (۱) باندې ........ ۱۸۳
معياري او غير معياري واحدونه ........ ۱۸۵
معياری واحدونه (متر، سانتي متر او ملی متر) ........ ۱۸۷
د ټوټه خطونو اندازه کول د خط کش په واسطه ........ ۱۸۹
د هندسې شکلونو پيژندنه ........ ۱۹۱
د هندسې شکلونو پيژندنه ........ ۱۹۳
محيط (چاپيريال) ........ ۱۹۵
په هندسي شکلونو کې کسر ........ ۱۹۷
په هندسي شکلونو کې کسر ........ ۱۹۹
د يوی کسري برخې ښوونه ........ ۲۰۱

# عنوان: د عدد مفهوم

**لومړی لوست، (۱ – ۲) مخونه**
**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف (موخه):** د (شمیرلو، عدد لوستلو، عدد لیکلو او پرتله کولو) تقویت.

**اصطلاح ګاني:** تقویت، شمیرل، عدد لوستل، عدد لیکل، پرتله، زیات، لږ.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، قلمونه، وړې ډبرې (ګاټي)، د لوبیا دانې، کتاب.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې له یوه څخه تر لسو پورې لرګوټي په داسې توګه چې یوه دانه لرګوټي، ۲ دانې لرګوټي، ۳ دانې لرګوټي ... ۱۰ دانې لرګوټي جلا جلا په خپل میز باندې کېښیږدي ترڅو ټول زده کوونکي هغه ولیدلای شي. بیا دې یو، یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راوغواړي او د هغوی په واسطه دې وشمیری او ولولي، او نور زده کوونکي دې په وار سره راوغواړي او د هغوې شمیر دې په عدد او تورو سره په تخته باندې ولیکي.

– وروسته دې ښاغلی ښوونکی په مختلف شمیر سره لرګوټي، لوبیاوی، قلمونه او د نخودو دانې جلا، جلا کېښیږدي، او زده کونکي دې په وار سره راوغواړي تر څو لرګوټي له لوبیاو سره، لرګوټي له قلمونو سره، او نخود له وړو ډبرو سره پرتله کړي. او په ترتیب سره دې له یوه، یوه زده کوونکی څخه وپوښتي: وړې ډبرې زیاتې دي؟ او که لوبیاوي، لرګوټي زیات دي او که قلمونه، نخود لږ دي او که وړې ډبرې، لرګوټي لږ دي او که د لوبیا ودانې، او همدارنګه پوښتنه دې وکړي په هغو کې تر ټولو لږ یې کوم یو او تر ټولو زیات یې کوم یو دي؟ ځوابونه دې له زده کوونکو څخه په لاس راوړل شي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په وار سره وغواړي

لومړی فصل
له (۱–۱۰۰) پورې د عددونو شمېرل او ترتیب کول
لومړی لوست
د عدد مفهوم

هدف: د عددونو د شمېرلو، لوستلو اولیکلو تقویت.

| ۰ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| صفر | یو | دوه | درې | څلور | پنځه | شپږ | اووه | اته | نه | لس |

۴ ۷ ۲ ۵

په لاندې هرچوکاټ کې څو شکلونه دي؟

۶ هندوانې
۴ منې
۳ کتابونه
۸ پنسلونه
۵ څوکۍ ګانې
۹ توپونه

**لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:**

۱– کوم ډول میوه زیاته ده؟ هندوانې منې.
۲–کوم یو یې لږ دي؟ پنسلونه توپونه.
۳– کوم یو یې ډیر زیات دي؟ څوکۍ ګاني کتابونه
۴– کوم یو یې ډیر زیات دي؟ کتابونه څوکی ګانې
۵– ستاسو په ټولګي کې څوتنه نجونې دي؟ ____________
۶– ستاسو په ټولګي کې څو تنه هلکان دي؟ ____________
۷– کوم یو یې د هغو څخه لږ شمېر لري؟ نجونې هلکان

هندوانې زیاتې دي.
پنسلونه لږ دي.
څوکۍ ډیرې زیاتې دي.
پنسلونه ډیر زیات دي.

۱

د هغو هر یوه مواد اړوند عدد دې په ډره باندې ولیکي چې ټولګي ته د فعالیت سرته رسولو لپاره راوړل شوي دي. او پاملرنه دې وکړي ترڅو ټول زده کوونکي په فعالیتونو کې برخه واخلي او په همدې ډول دې نور فعالیتونه سرته ورسوي.

**۲– مشق او تمرین:**

زده کوونکي په دوو ګروپونو وویشی. او د هغوی پام دې د کتاب مخ ته راواړه وي. وروسته د کتاب د لومړي مخ څلور لومړنی شکلونه دې لومړي ګروپ ته او درې دویم شکلونه دې دویم ګروپ ته ورکړل شي او کار دې ورباندې وکړي او هغه تش ځایونه چې د هر شکل تر لاندې لیدل کیږي، لومړې دې د هغو نومونه واخلي بیا دې د هغو شمیر په عدد سره په خپلو کتاپچو کې ولیکي.

د لومړي مخ د پای پوښتنې چې له (۱ – ۷) دي د شکل او تصویرونو له مخې دې په شفاهي توګه له زده کوونکو څخه پــوښتنې وکـــړی ترڅو زده کوونکي د زیات، لږ،

ډېر زيات، ډېر لږ مفهوم په خپله ووايي. او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جريان څارنه کوي.

**۳– ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ او خپل هدف ته رسيدلی ده او که نه؟

له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په شتوالی سره دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي د ۸ او ۹ له عددونو څخه کوم يو کم دي؟

– څوک ويلای شی چې (۵) زيات دي او که (٦)؟

– څوک د (۷) او (۸) په منځ کې فرق وائي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي د (۴ او ۵)، (٦ او ۷)، (۹ او ۱۰) عددونه يو له بله سره پرتله کړي او يوه له <، > او = نښو په صحيح توګه په مناسب ځای کې وليکلای شي.

– زده کوونکي د <، > او = نښو دوارو خواووته د خپلی خوښې مناسب عددونه وليکلای شي.

**ذهنيت:**

– د لږ، زيات، ډېر لږ، ډېر زيات په پوهيدو سره د زده کوونکو ذهن او فکر بدلون مومي. د خوښې احساس کوي. د لږ او زيات په پيژندلو سره عادلانه قضاوت کوي.

**اهميت:**

د لږ او زيات په پيژندلو سره له هغو څخه په خپل ورځنی ژوند کې کار اخلي او په ورځنی معاملو کې په ډېر زياته توګه کار ورڅخه اخلی.

**کورنۍ دنده:**

۱– د لاندې چوکاټ په سپينه برخه کې د رسم شوو شکلونو په ډول لږ شکلونه پـــه خپلـــو کتابچو کې رسم کړئ او ووايast چې ټول څو شکلونه دي؟



۹

۲– د چوکاټ په سپينه برخه کې د درکړل شوو شکلونو څخه زيات شمېر رسم کړئ اوهغـــه ټول حساب کړئ او شمېر يې ويې ليکئ.



۱۴

۳– د چوکاټ په سپينه برخه کې د درکړل شوو شکلونو سره مساوي شمېر شکلونه په خپلـــو کتابچو کې رسم کړئ. ټول حساب او وليکئ.



۸

۴– د خپلې خوښې يو شکل چې له ٦ څخه زيات خو له ۱۰ څخه لږ وي په خپلو کتابچو کې رسم کړئ.



۲

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په څلور ګروپونو وويشل شي هغه شکلونه چې د کتاب په دويم مخ کې د کورنۍ دندی لپاره رسم شوي دي و هر ګروپ ته دې خپله دنده وټاکل شي ترڅو هر ګروپ اړوند شکلونه خپلو کتابچوته نقل او د هغو ځوابونه سبا ته له خپلو ځانو سره راوړي.

## عنوان: متناوب شمیرل

**دویم لوست، (۳) مخ**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف (موخه):** په دې لوست کې زده کوونکي باید متناوب شمیرل زده کړي.

**اصطلاح ګانې:** شمیرل، متناوب (دوه، دوه، پنځه، پنځه ... زیاتول).

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د جوارو دانې، د نخود دانې، لرګوټې، زده کوونکي او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

–ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده په غور سره ووینې. د هر ګروپ اشتباه او غلطۍ ګانې دې په دړه باندې فهرست کړي. وروسته د یوه ګروپ اشتباه دې له بل ګروپ څخه وپوښتنې، ترڅو په خپله زده کوونکي صحیح ځواب ووایي. له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې اشتباه ګانې څرګند کړي. او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي. وروسته له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وشي: تاسو هر یو څو سترګې لرئ؟ هر یو د تاسو څو لاسونه لرئ؟ ښائي چې هغوی ځواب ووایي. دوه، دوه، که چیرې زده کوونکي ځواب ونه وایي ښاغلی ښوونکی دې ځواب ورته ووائي. همدارنګه له زده کوونکو څخه دې وپوښتي، ستاسو هر یو لاس څو، څو ګوتې لري، ښائي زده کوونکي ووایې پنځه، پنځه ګوتې، بیا دې زده کوونکو ته ووایې، له هر ګروپ څخه دې، دوه، دوه تنه جوړه شي او د ټولګي مخې ته دې ودریږي، کله چې ودریدل. بیا دې له یوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي، لومړئ جوړه څو تنه دي، ۲ تنه، بیا دې وپوښتي له دویمې جوړې سره څو تنه کیږي ښایې ووایې څلور تنه، له یوه بل زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي له دریمې جوړې سره څو تنه کیږي، ښایې هغه هم ځواب ووایې شپږ تنه، په همدې ډول څلورمه، او پنځمه جوړې دې له هغوی سره یوځای کړي او ویې شمیرئ. ترڅو صحیح ځواب په لاس راوړي. بیا دې د پنځو تنو، څلور یا پنځه ګروپونه جوړ او هغه دې په ترتیب سره وشمیرئ او ویې لولي، ۵، ۱۰، ۱۵ ... او همدارنګه یو شمیر لوبیاوې یا نخود دې په خپل میز باندې کېښیږدي او زده کوونکي دې راوغواړي ترڅو هر یو یې ۲، ۲ دانې جلاء او وشمیري او په همدې ډول زده کوونکي دې راوغواړي ۵، ۵ د لوبیا یا نخود دانې دې جلاء او ویې شمیرئ.

---

**دویم لوست**

**متناوب شمیرل ( دوه، دوه ، پنځه، پنځه .... زیاتول)**

هدف : په دې لوست کې زده کوونکي باید متناوب شمیرل زده کړي.

**۱ – دخپلو ټولګیوالو له سترګو څخه په کار اخیستوسره ۲،۲ زیات کړئ او عددونه یې ولیکئ .**

۲ ۴ ۶ ۸ ۱۰ ۱۲ ۱۴ ۱۶ ۱۸

۲۰ ۲۲ ۲۴ ۲۶

**ټوله ۲۶ سترګې**

**څوګوتې ؟**

**۲ – دخپلو ټولګیوالو دلاس دګوتو د۵ په زیاتولو سره عددونه په لاس راوړئ او ویې لیکئ .**

**ټول ۳۰ ګوتې**

۵ ۱۰ ۱۵ ۲۰ ۲۵ ۳۰

۳

بیا دې ښاغلی ښوونکی دا ډول د سړیو او قلمونو رسمونه کښېږدي، زده کوونکي دې یې وشمېري او په دړه باندې دې ولیکي او بشپړ دې کړي.




**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په دوو ګروپونو ووېشي بیا د هغو پام د لوست د کتاب دریم مخ ته راوګرزوي. لومړی ګروپ دې د سترګو شمیر حساب او تش ځایونه دې په خپلو کتابچو کې ډک کړي. او دویم ګروپ دې د ګوتو شمیر حساب او تش ځایونه دې په خپلو کتابچو کې ډک کړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو د پوهې او مهارت کولو څخه ځان ډاډمن کړي وي له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو په شتوالی سره دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وائې چې ٦ تنه څو سترګې لري؟
- څوک وائې چې ۷ تنه څو لاسونه لري؟
- څوک پنځه، پنځه زیاته وي او تر ۲۰ پوري شمیری؟
- څوک پنځه، پنځه زیاته وي او تر ۲۵ پوري شمیری؟

**مهارت:**

زده کوونکي لاندې تش ځایونه ډک کړای شي؟

۱۴، ـــــــ، ۱۰، ۸، ـــــــ، ۴، ۲

۳۰، ۲۵، ـــــــ، ـــــــ، ۱۰، ۵

**ذهنیت:** د ۲، ۲، او ۵، ۵ په زیاتولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي د دې نوي طریقې په زده کولو سره له ریاضی سره مینه پیدا کوي او خوښی کوي.

**ارزښت:** د دې طریقی په پوهیدو او زده کولو سره، زده کوونکي کولای شي په ورځنۍ ژوند کې ګټه ورڅخه واخلي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې تش ځایونه په کتابچو کې ډک او د خپل ځانو سره دې راوړي.

۱۴، ـــــــ، ۱۰، ـــــــ، ـــــــ، ۴، ۲

۳۰، ـــــــ، ۲۰، ـــــــ، ۱۰، ـــــــ

## عنوان: متناوب شمیر

**(۴ او ۵) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه يې)**

**موخه:** زده کوونکي په متناوب ډول شمیرنه وکړای شي.

**اصطلاح ګانې:** متناوب، شمیرل، کيڼ، ښئ.

**د لوست مرستندوی مواد: د عددونو کارتونه، لرګوټي،** قلمونه، د لوبیا دانې، د نخودو دانې، زده کوونکي او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دندې دې ولیدل شي غلطي ګانې او اشتباه ګانې په دړه باندې فهرست کړه، وروسته د هغو صحیح ځوابونه دې له زده کوونکو څخه په لاس راوړل شي او پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه په دړه باندې ولیکي.

– ښاغلی ښوونکی د: ___، ___، ۸، ___، ___، ۵، ___، ۳، ۲ عددونه د تشو ځایونو سره په دړه باندې ولیکئ او یو، یو زده کوونکئ په وار سره راوغواړی، چې هر یو د هغو د تشو ځایونو، یو یا دوه ځایونه ډک کړي.

– ښاغلی ښوونکی یو شمیر، لرګوټي یا د لوبیا دانې په خپل میز باندې کښیږده، په لومړی پړاو کې ۱۲ لرګوټي یوه زده کوونکی ته ورکړئ، او نور زده کوونکي په وار سره راوغواړئ د لومړی زده کوونکي ترڅنګ يې ودروئ، او هر یوه زده کوونکي ته ۲، ۲ لرګوټي ورکړئ ترڅو تر ۴۰ پوري وشمیری، او دویم واري لکه مخ کې بیا دي

له ښئ خواڅخه کيڼ لوري ته کوم عددونه چې پاتې دي پــه تــشو ځایونوکې یې ولیکئ .

۱– ۲ ، ۳ ، ۴ ، ۵ ، ٦

۲– ۰ ، ۱ ، ۲ ، ۳ ، ۴

۳– ۴ ، ۵ ، ٦، ۷ ، ۸

۴– ۲ ، ۴ ، ٦ ، ۸، ۱۰

۵– ۱ ، ۳، ۵ ، ۷ ، ۹

٦– ۰ ، ۳ ، ٦، ۹

لهکیڼئ خواڅخه ښئ لوري ته تش ځایونه دمناسبو عددونو په واسط ډک کړئ.

.۱ ۵ ، ۴ ، ۳ ،۲ ، ۱ .

.۲ ۱۰ ، ۹ ، ۸ ، ۷ ، ٦ ، ۵ ، ۴

.۳ ۷ ، ٦ ، ۵ ، ۴ ، ۳

.۴ ۱۲، ۱۰ ، ۸، ٦ ، ۴ ، ۲

.۵ ۱۱، ۹ ، ۷، ۵ ، ۳، ۱

.٦ ۱۳ ۱۰، ۷ ، ۴ ، ۱

۴

زده کوونکي په وار سره راوغوښتل شي، لومړی زده کوونکی ته پنځه دانې نخود ورکړئ، او بیا دې پنځه، پنځه ورباندې زیات کړي تر ۳۵ پوري دې وشمیری. او هم هغه عدد دې کارتونه چې د ښاغلی ښوونکی له خوا تیار ایښودل شوی دي د زده کوونکو په واسطه دې ترتیب کړای شي په همدې ډول دې د نورو موادو په واسطه فعالیتونه سرته ورسوي.

**۲– مشق او تمرین:**

زده کوونکي دې په دوو ګروپونو وویشل شي د لومړی برخې پوښتنې چې له (۱ – ٦) پوری دې لومړی ګروپ ته دې ورکړل شي، ترڅو هغه له ښی خوا څخه کيڼې خوا ته کار وکړي او تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړي. او همدارنګه د پوښتنو دویم برخه چې هغه هم له (۱– ٦) پوری دي و دویم ګروپ ته دې ورکړل شي.

ترڅو هغوی هم له ښۍ خوا څخه و کیڼ لوري ته کار وکړي او تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړي او په پای کې دې ګروپونه خپل فعالیتونه سره ګډ کړي او د یو، بل پوښتنو په برخه کې دې په آزاد توګه بحث او مذاکري وکړي، او نظر دې ورکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه کوي.

**۳– ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو د پوهې او مهارت سرته رسولو څخه خپل ځان ډاډمن کړي. او یا دا چې خپل هدف ته رسیدلی دئ او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه ورسره وکړي.

**پوهه:**

– څوک د اوو (۷) په عدد باندې ۲، ۲ ور زیاته وي او تر ۲۱ پوري شمیرې؟

– څوک د اتو (۸) په عدد باندې ۵، ۵ ور زیاته وي تر ۳۳ پوری شمیري؟

**مهارت:**

زده کوونکي لاندې تش ځایونه له ښۍ خوا څخه و کیڼ لوري ته ډک کړای شي.

۳، ٦، ۹، ___، ___، ۱۸، ___، ۲۴، ___

۱۰، ۱۵، ___، ___، ۳۰، ___، ۴۰، ___

**ذهنیت:**

د (۲، ۲)، (۳،۳) او (۵، ۵) د زیاتولو په زده کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په خوښي سره په خپل منځ کې د لوبې په ډول کار کوي.

کورنۍ دنده :

۱– لاندې جدول خپلو کتابچوته نقل او دحل شوي مثال نه په کار اخیستو سره پوښتنه حل او رنګ کړئ .

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ٦ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
| ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ | ۱٦ | ۱۷ | ۱۸ | ۱۹ | ۲۰ |
| ۲۱ | ۲۲ | ۲۳ | ۲۴ | ۲۵ | ۲٦ | ۲۷ | ۲۸ | ۲۹ | ۳۰ |
| ۳۱ | ۳۲ | ۳۳ | ۳۴ | ۳۵ | ۳٦ | ۳۷ | ۳۸ | ۳۹ | ۴۰ |
| ۴۱ | ۴۲ | ۴۳ | ۴۴ | ۴۵ | ۴٦ | ۴۷ | ۴۸ | ۴۹ | ۵۰ |
| ۵۱ | ۵۲ | ۵۳ | ۵۴ | ۵۵ | ۵٦ | ۵۷ | ۵۸ | ۵۹ | ٦۰ |
| ٦۱ | ٦۲ | ٦۳ | ٦۴ | ٦۵ | ٦٦ | ٦۷ | ٦۸ | ٦۹ | ۷۰ |
| ۷۱ | ۷۲ | ۷۳ | ۷۴ | ۷۵ | ۷٦ | ۷۷ | ۷۸ | ۷۹ | ۸۰ |
| ۸۱ | ۸۲ | ۸۳ | ۸۴ | ۸۵ | ۸٦ | ۸۷ | ۸۸ | ۸۹ | ۹۰ |
| ۹۱ | ۹۲ | ۹۳ | ۹۴ | ۹۵ | ۹٦ | ۹۷ | ۹۸ | ۹۹ | ۱۰۰ |

۵

**ارزښت:**

د دې ډول حساب په پوهیدو او زده کولو سره زده کوونکي د خپل ورځنی ژوند په ورکړه او راکړه کې کار اخلي؟

**۴– کورنۍ دنده:**

د کتاب د (۵) مخ جدول دې زده کوونکو ته دنده ورکړل شي ترڅو جدول خپلو کتابچو ته نقل د نمونې په ډول چې په جدول کې کار شوی ده له هره دوو عددونو یا خانو څخه وروسته یو عدد یا خانه (چې په حقیقت کې د ۳، ۳ زیاتول دي).

توره کړي او جدول دې بشپړ کړي او هم وروستی عدد یا (خانه) چې توره شوي ده کوم عدد ده؟ ځواب دې ورکړي.

# عنوان: مشق او تمرین

**دریم لوست، (٦–۷) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف (موخه):** زده کوونکي وکولای شي د عدد مفهوم په ذهن کې ځای ورکړي او تشخیص یې کړي.
**اصطلاح ګانې:** مفهوم، عدد، یویز، لسیز.
**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د لوبیا دانې، د جوارو دانې، نخود، کارتونه چې سره او تور مثلثونه ولري او داسې نور د محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**
– ښاغلی ښوونکی لومړی زده کوونکي په ۳ ګروپونو باندې وویشی. او د زده کوونکو کورنۍ دندې دې ولیدل شي په غلطي او اشتباه ګانو باندې دې زده کوونکي په خپل منځ کې بحث او خبرې ورباندې وکړي که چیرې زده کوونکي صحیح ځواب ونشي ویلای نو ښوونکی دې صحیح ځوابونه ورته ووایي او په انفرادې توګه دې لاندې پوښتنې وکړي.
د لومړی ګروپ څخه احمد دې ووایي: جدول ته پام وکړه چې د **۴۲** د عدد ځای توره شوی ده او که نه؟
ځواب توره شوی ده.
د دویم ګروپ څخه محمود ته دې ووایي و جدول ته وګوره چې د **۵۳** د عدد ځای تور شوی دئ او که نه؟
تور شوی نه ده.
د دریم ګروپ څخه زلمی دې ووایي چې په جدول کې د **٦٦** د عدد ځای تور شوی ده او که نه؟ تور شوی ده.
په همدې ډول په ترتیب سره دې له نورو زده کوونکو څخه په یوازینی ډول پوښتنې وکړي.
– ښاغلی ښوونکی دې د ۱۰ په شمیر سره د لوبیا او نخود دانې په یوه کتار کې د یو بل تر څنګه چې ۵ دانې یې نخود او ۵ دانې یې لوبیا دې کښیږدي. او یو زده کوونکی دې راوغواړي او هغه ته دې ووایي چې د لوبیا او

**دریم لوست**

دعدد دمفهوم تمرین .

دهرلیک ښئ خواته یو عدد لیکل شوي دي دهغه په شمیر دایرې رنګه کړئ اودهغو دائرو شمیر چې رنګ شوي نه دي کیڼې خواته ولیکئ دحل شوي مثال څخه کار واخلئ.




دهرې کرښې ښئ خواته یو عدد لیکل شوي دي دهغه په شمیر شکلونه رنګه کړئ دشکل نوم واخلئ اودهغو شکلونو شمیر چې رنګ شوي نه دې کیڼې خواته ولیکئ دحل شوي مثال څخه کار واخلئ.




٦

نخود شمیر جلاء، جلاء په دړه باندې ولیکه.
او همدارنګه ۱۴ دانې وړې ډبرې او لوبیا دې په یوه کتار کې د یو بل تر څنګه داسې چې ٦ دانې یې وړې ډبرې او ۸ دانې یې لوبیا وې کښیږدي او یو بل زده کوونکی دې راوغواړي د لوبیا او وړو ډبرو شمیر جلاء، جلاء ولیکی.
په همدی ډول یو شمیر د تورو او سرو مثلثونو کارتونه په یوه کتار کې یو د بل تر څنګه کښیږدي او یو زده کوونکی دې راوغواړي چې د تورو او سرو مثلثونو شمیر په دړه باندی جلاء، جلاء ولیکی.

**۲– مشق او تمرین:**
ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دري ګروپونو وویشي او د لوست د کتاب (٦) مخ ته دې راوبولي د پوښتنو لومړې برخه چې د دایرو څلور کتاره دي او دواړه خواؤته یې عددونه لیکل شوی دي په خپلو کتابچو کې دې رسم کړي. لکه حل شوی مثال هغه عدد چې ښئ خواته یې لیکل شوی دئ په هغه شمیر دی دایري رنګه کړي او هغه

شمیر دایري چې رنګ شوي نه دي د کیڼ لوري په تش ځایونو کې دي ولیکي.
او همدارنګه په دویمه برخه کې چې د مثلثونو شکل او تصویرونه دي د هغو درې پوښتنې دي دویم ګروپ خپلو کتابچو ته نقل کړي لکه حل شوی مثال د ښئ عدد په شمیر دې مثلثونه رنګه کړي او هغه شکلونه چې سپین پاتي کیږي شمیر دې کیڼ خواته ولیکي.
او د دویمې برخې دري نوري پوښتنې دې دریم ګروپ ته ورکړل شي د دویم ګروپ په ډول دې کار وکړي.
وروسته دري واړه ګروپونه دې خپل کار او فعالیت یو له بل سره ګډ کړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان څارنه کوي.

## ۳- آرزونه

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ځان ډاډمن کړي له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي. د ستونزو د شتوالی په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک په لاندې شکلونو کې د سړیو شمیر د ښئ خوا په تش ځایونو کې او د دائیرو شمیر د کیڼ خوا په تش ځایونو کې لیکي.



**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د ښئ خوا او کیڼي خوا د ورکړل شوي ارقام سره سم په خپله خوښه شکلونه رسم کړي.

| ۷ | ۴ |
|---|---|

**ذهنیت:**

څرنګه چې زده کوونکي شکلونه په خپله ویني او د هغو شمیر تشخیص کوي او د هغو سره سم ارقام لیکی. د خوشحالی احساس کوي.

**کورنۍ دنده :**

دشیانو څخه دلس ګونو ګروپونو جوړول شمیرل، آسانه کوي اود۱ یـو ډول تفریح ده.

له شیانو څخه دلس ګونو ګروپونه جلا اوکرښه ورڅخه تاو کړئ ، تش ځایونه ډک کړئ او پوښتنو ته ځواب ووایاست.



۱ لسیز او ۲ یویز ۱۲ کیږي



۱ لسیز او ۵ یویز ۱۵ کیږي





۱ لسیز دچرګانو او ۷ نور ټول ۱۷ چرګان کیږي.

۱ لسیز دپیشوګانو او ۹ نور ټول ۱۹ پشوګان کیږي.

کوم ګروپ زیات دي چرګان که پیشوګاني، پشو ګانې زیاتې دي.

خومره زیات دي ؟ ۲

۷

**اهمیت:**

د پورته پوهی په اخستلو سره زده کوونکي په خپل ورځنی ژوند کې کار ورڅخه اخلي.

## ۴- کورنۍ دنده:

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په څلور ګروپونو وویشي.
– لومړی ګروپ دې قلمونه په یویزو او لسیزو سره جلا کړي او د هغو مجموعه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
– دویم ګروپ دې مني په یویزو او لسیزو سره جلاء او د هغو مجموعه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
– دریم ګروپ دې چرګان په یویزو او لسیزو سره جلا او د هغو مجموعه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
– څلورم ګروپ دې پښو ګانې په یویزو او لسیز سره جلاء او د هغو مجموعه دې ولیکی.

# عنوان:تر ۱۰۰ پوري د عددونو ترتیب او پرتله کول

**څلورم لوست، (۸) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف (موخه):** زده کوونکي ډیر او لږ عددونه وپیژنې او د هغو له مخې د عددونو ترتیب (پر له پسې توب) وکولای شي.

**اصطلاح ګانې:** پرتله، ترتیب، زیات، ډیر او لږ.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، وړې ډبرې، د لوبیا دانې، زده کوونکي او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه ولیدل شي هغه غلطي او اشتباه ګانې چې د هر ګروپ په واسطه په ګوته کیږي په دړه باندې دې ولیکل شي وروسته دې زده کوونکو ته د قناعت وړ ځوابونه په داسې حال کې چې متناوب شمیر په نظر کې ونیسي وویل شي او همدارنګه له هر ګروپ څخه دې په انفرادي توګه پوښتنې وشي.

– له لومړي ګروپ څخه دې صابر وواېي: په قلمونو کې څو لسیز او څو یویز دي؟

– له دویم ګروپ څخه دې احمد وواېي: په منو کې څو لسیز او څو یویز دي؟

– له دریم ګروپ دې زلمی وواېي: په چرګنو کې څو یویز او څو لسیز دي؟

– له څلورم ګروپ څخه دي سید جان وواېي: په پشو ګانو کې څو یویز او څو لسیز دي؟

– ښاغلی ښوونکی دې په مختلف شمیر سره قلمونه او لرګوټي په خپل میز باندې کېښیږدي او یو زده کوونکی دې راوغواړي چې لرګوټي په یویزو او لسیزو سره جلاء کړي او د هغو یویز او لسیز دې وښیي. او بیا دې له نورو زده

څلورم لوست

تر ۱۰۰ پوري دعددونو ترتیب او پرتله کول

هدف: زده کوونکی ډیر او لږ عددونه وپیژني او دهغو له مخې دې ترتیب(پرله پسي توب)وکولاي شي.

شکلونو ته وګورئ دهغودهریوه دشیانو شمیر په خپلو کتابچو کې ولیکئ.
اوهر هغه عدد چې له ۱۴ څخه کوچنی دي ترشاوخوا یې یوه مربع رسم کړي.

۱۲ ۱۷ ۱۵ ۱۳

شکلونوته وګورئ دهغو دهریوه دشیانو شمیر په خپلو کتابچو کې ولیکئ او هر هغه عدد چې له ۱۵ زیات دي دایره ترې تاو کړئ.

۱۵ ۱۷ ۱۴

له آسونو څخه څومره ایلۍ زیاتې دي ؟ ۳ — د ۳ په اندازه

له ایلیو څخه څومره وزۍ کمې دي ؟ ۲ — د ۲ په اندازه

کوم یو یې زیات دي وزې که آسونه، څومره؟ — وزې د یو په اندازه زیات دي.

کار خانه ګی:

زده کوونکی د لاندې پوښتنو په تشو ځایونو کې د <، > او یا = مناسبه نښه ولیکي او سبا ته یې له خپل ځان سره راوړي. ۵+۲۰□۲۵، ۷۶□۶۷ ۷۷□۸۸

۸

کوونکو څخه وپوښتې قلمونه زیات دي او که لرګوټي، زده کوونکي هغه وینی او ځواب وایي.

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دي په مختلف شمیر سره وړې ډبری او د لوبیا دانې په خپل میز باندې کېښیږدي ترڅو ټول زده کوونکی یې ووینی، وروسته زده کوونکی دې په وار سره راوغواړي چې ویې شمیری او د هغو اړوند عدد په دړه باندې ولیکی په پای کې دې له یوه بل زده کوونکی څخه پوښتنه وکړې. کوم یو یې لږ دي. وړې ډبري او که لوبیا، زده کوونکی د موادو له مخې یا هغه عدد چې په دړه باندې لیکل شوی دئ ځواب به وواېي.

**۲– مشق و تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې په دوو ګروپونو وویشل شي او د کتاب (۸) مخ ته دې پاملرنه وکړي. ترڅو د شکلونو او تصویرونو له مخې هغه تش ځایونه چې د هر شکل تر لاندې لیکل شوي دي په خپلو کتابچو کې

په اړوند عددونو سره ډک کړي. په داسې حال کې چې لومړی شکل او تصویرونه لومړی ګروپ ته، او دویم شکلونه او تصویرونه، دویم ګروپ ته ورکړی، ترڅو هر یو ګروپ شمیر په خپلو کتابچو کې ولیکي او یو له بله سره يې پرتله کړي. او د کتاب د دې مخ په پای کې څو پوښتنې ورکړل شوي دي چې له هر ګروپ څخه دې په شفاهي ډول وپوښتل شي او ځوابونه په دړه باندې ولیکي.

**۳- ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شوی وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې چې دوه لسه زیات دي او که دری لسه؟
- څوک وایې چې ۳۵ زیات دي او که ۵۳؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شئ د (۵۸، ۳۸)، (۲۴، ۳۴) او (۸۲، ۷۲) عددونو په منځ کې د <، > او = نښو څخه مناسبه نښه ولکیلای شي.

**ذهنیت:**

د کوچنی او لوی یا مساوی نښو په لیکلو سره د زده کوونکو د صحیح قضاوت ښکارندوی ده.

**ارزښت:**

زده کوونکي له دې پوهي څخه په ورځنۍ ژوند کې کار اخلي.

**۴- کار خانه ګی:**

زده کوونکی د لاندې پوښتنو په تشو ځایونو کې د <، > او یا = مناسبه نښه ولیکي او سبا ته يې له خپل ځان سره راوړي.

۵+۲۰□۲۵، ۷۶□۶۷، ۷۷□۸۸

# عنوان: د عددونو پرتله او ترتیب

**(۹) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدفونه (موخې):**

- زده کوونکي په متناوب توګه شمیرل وکړای شي.
- زده کوونکي په متناوب شمیرلو کې د اړوند عددونو ځایونه تشخیص کړای شي.

**اصطلاح ګاني:** پرتله، ترتیب، ډیر لوی او ډیر کوچنی.

**د لوست مرستندوی مواد:** د عددونو کارتونه، پلاستیکي کڅوړې، وړې ډبرې او نور محیطي مواد.

**د زده کوونکو فعالیت:**

په خپل ګروپ کې کار وکړئ هر ګروپ یا ډلې ته دعدد یو شمېر کارتونه چې له صفر څخه تر ۲۰ پورې ور باندې لیکل شوې دې ورکول کیږي.

۱- په وار سره کار وکړئ.

۲- هر زده کوونکی دې له کڅوړې څخه یو کارت راوباسي.

۳- زده کوونکي دې عددونه له ډیرو لړو څخه د لوی عدد پورې ترتیـــب کړي.

۴- د هر دور عدد په جدول کې (یاد داښت) کړئ.

د عددونو کارتونه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لومړی دور | | | | | |
| دوهم دور | | | | | |
| دریيم دور | | | | | |

خپل جدول ته وګورئ او لاندې پوښتنو ته ځواب ورکړئ.

۱- په هره دوره کې له ۱۳ څخه څو عددونه لوی دي؟

۲- د ټولو هغو عددونو نه چې له ۱۱ څخه کوچني دي کرښه تاوکړئ.

۳- ټول هغه عددونه چې له ۱٦ څخه لوی دي ورڅخه یوه مربع تاوه کړئ.

۴- آیا ټول عددونه له ۱٦ څخه لږ دي؟

۵- له ۱٦ څخه زیات او لږ عددونه په جلاء جلاء توګه ولیکئ.

۹

**۱ - فعالیتونه:**

- ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دندې وليدل شي غلطي او اشتباه ګاني په دړه باندی فهرست کړئ ترڅو زده کوونکی صحیح ځوابونه ووائي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړه باندې ولیکی او د صحیح ځوابونو د پیدا کولو طریقه دې هم ورته څرګند کړي.
- ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دري ګروپونو وویشي. په داسې حال کې چې هر ګروپ ته دې د عددونو کارتونه چې له صفر څخه تر ۲۰ پورې وربانديې لیکل شوي دي ورکړي. او هر ګروپ دې خپل کارتونه په کڅوړه کې واچوي.

په ګروپونو باندې دې په وار سره کار وشي په داسی ډول چې لومړی ګروپ دې د خپل اړوند کڅوړې څخه یو، یو کارت په وار سره راوباسي، او کارتونه دې د ډیرو کوچنیو څخه د ډیرو لویو خواته ترتیب کړي. همدارنګه د دويم ګروپ زده کوونکي دې هم د خپل اړوند کڅوړي څخه یو، یو کارت راوباسي، او کارتونه دې د ډیرو لویو څخه د ډیرو کوچنیو خواته ترتیب کړي او په همدې ډول دريم ګروپ دې کارتونه د خپل اړوند کڅوړې څخه په وار سره راوباسي. او په خپل زړه یا خوښه دې هغه ترتیب کړي.

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو د کار څارنه وکړي چې کوم یو ګروپ دا فعالیتونه ژرسرته رسوي، او فعالیتونه دې په یو جدول کې پر تخته ترتیب او ولیکي.

**۲ - مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۹) مخ ته راواړوي او هغوی ته دې هدایت ورکړي چې هر ګروپ دې د کتاب جدول په خپل کتابچو کې رسم کړي او د عددې کارتونو په واسطه دې بشپړ کړي.

په دې صورت کې دې د هر ګروپ پنځو، پنځو زده کوونکو ته دنده ورکړي ترڅو کارتونه له کڅوړئ څخه راوباسي او اړوند عدد جدول ته ورسوي او هغه

پوښتنې چې د جدول په برخه کې ورکړل شوي دي. ځوابونه دې زده کوونکی ووايي، او وروسته دې عددونه د صفر څخه تر ۲۰ پورې ترتیب کړي.

**۳- ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وپوښتي، د ستونزو د شتوالی په صورت کې دې له زده کوونکو سره مرسته او لارښوونه دې ورته وکړي.

**پوهه:**

- څوک وائي ټول هغه عددونه چې د (۷) څخه لږ دي کوم دي؟
- څوک ټول هغه عددونه چې له (٦) څخه زيات او له (۱۰) څخه لږ دي پر تخته وليکي؟

**مهارت:**

– زده کوونکی وکولای شي لاندې عددونه د ډېرو زياتو څخه د ډېرو کوچنيو خواته ترتيب کړاي شي.

٦، ۸، ۷، ۵، ۴، ۱، ۲، ۱۰ و ۹

– زده کوونکی دې لاندې عددونه د ډېرو کوچنيو څخه د ډېرو لويو خواته ترتيب کړاي شي.

۱٦، ۱۱، ۱۵، ۱۰، ۱۲، ۱۸ و ۱۷

**ذهنيت:**

د ډېرو زياتو، او ډېرو لږو په پوهيدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي د هر عدد د مقام يا مرتبو په ټاکلو سره خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کونکي د عددونو د مقام يا مرتبو په نظر کې نيولو سره د هغه څخه په ورځنۍ ژوند کې کار او ګټه اخلي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په لومړی وار کې عددونه له صفر څخه تر ۲۰ پورې په خپلو کتابچو کې وليکي.

او بيا دې لاندې پوښتنی په خپلو کتابچو کې حل او له ځانو سره دې راوړي.

۱- ټول هغه عددونه چې د ۱۲ او ۷ په منځ کې دي د هغو په شا او خوا دې حلقه وباسي.

۲- ټول هغه عددونه چې له ۱٦ څخه زيات دي په شا او خوا دې مربع وباسي.

۳- ټول هغه عددونه چې د ۹ څخه زيات او له ۱۰ څخه لږ دي په شا او خوا دي حلقه (کړۍ) وباسي.

# عنوان: تر ۱۰۰ پورې د عددونو ترتیب

**پنځم لوست، (۱۰) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف (موخه):** زده کوونکي وکړای شي عددونه د مقامي قیمت په درلودلو سره په پرله پسې توګه ترتیب کړي.
**اصطلاح ګانې:** عددونه، مقامي قیمت، بنډلونه، یو دانه یې.
**د لوست مرستندوی مواد:** د عددونو کارتونه، د لرګوټو بنډلونه، یو دانه یې لرګوټي، او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**
– ښاغلی ښوونکی! د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه ولیدل شي غلطي او اشتباه ګانې دې پر تخته ولیکل شي او زده کوونکي دې په غلطی او اشتباه ګانو باندې په آزاده توګه بحث او خبرې وکړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو د جریان څارنه کوي د ستونزو د شتوالی په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي وروسته دې په یوازې یعنی د یوه، یوه زده کوونکي څخه دې لاندې پوښتنې وپوښتي.
احمد دې ووایې: چې د ۲۶، او ۲۵ په منځ کې کوم عدد دئ؟
محمود دې ووایې: ۲۸ زیات دي او که ۴۲؟
زلمیه: د یوه عدد نوم واخله چې له ۴۲ څخه لږ او له ۴۰ څخه زیات وي په همدې ډول له زده کوونکو څخه دې نوري پوښتنې وشي.
– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکی په دري ګروپونو باندې وویشی له لومړی ګروپ څخه زده کوونکی په وار سره راوغواړي د یوه له عدد څخه دې پیل کړی د ۲، ۳، ۴،... عددونه دې د تسلسل په ترتیب پر تخته ولیکی او د ۳۰ پوری دې بشپړ کړي.
وروسته زده کوونکي له دویم ګروپ څخه په وار سره راوغواړئ د ۳۰ په ادامې سره د تسلسل په توګه دې د ۶۰ پورې ولیکی. همدارنګه زده کوونکی دې له دریم ګروپ څخه په وار سره راوغوښتل شي د ۶۰ په ادامې سره د تسلسل په نظر کې نیولو سره تر ۱۰۰ پورې دې

**پنځم لوست**

**تر ۱۰۰ پورې د عددونو ترتیب**

هدف: زده کوونکي عددونه دمقامي قیمت په درلودلو سره په پرله پسي توګه ترتیب کړاي شي.

عددونه چې په جدول کې لیکل شوي نه دي تر ۱۰۰ پورې بشپړ کړئ.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
| ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ | ۱۶ | ۱۷ | ۱۸ | ۱۹ | ۲۰ |
| ۲۱ | ۲۲ | ۲۳ | ۲۴ | ۲۵ | ۲۶ | ۲۷ | ۲۸ | ۲۹ | ۳۰ |
| ۳۱ | ۳۲ | ۳۳ | ۳۴ | ۳۵ | ۳۶ | ۳۷ | ۳۸ | ۳۹ | ۴۰ |
| ۴۱ | ۴۲ | ۴۳ | ۴۴ | ۴۵ | ۴۶ | ۴۷ | ۴۸ | ۴۹ | ۵۰ |
| ۵۱ | ۵۲ | ۵۳ | ۵۴ | ۵۵ | ۵۶ | ۵۷ | ۵۸ | ۵۹ | ۶۰ |
| ۶۱ | ۶۲ | ۶۳ | ۶۴ | ۶۵ | ۶۶ | ۶۷ | ۶۸ | ۶۹ | ۷۰ |
| ۷۱ | ۷۲ | ۷۳ | ۷۴ | ۷۵ | ۷۶ | ۷۷ | ۷۸ | ۷۹ | ۸۰ |
| ۸۱ | ۸۲ | ۸۳ | ۸۴ | ۸۵ | ۸۶ | ۸۷ | ۸۸ | ۸۹ | ۹۰ |
| ۹۱ | ۹۲ | ۹۳ | ۹۴ | ۹۵ | ۹۶ | ۹۷ | ۹۸ | ۹۹ | ۱۰۰ |

لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست.
۱. کوم عدد له ۳۵ څخه دیوه په اندازه زیات دی؟ ۳۶
کوم عدد له ۳۵ څخه د یوه په اندازه لږ دی؟ ۳۴
۲. کوم عدد له ۲۷ څخه د دوو په اندازه زیات دی؟ ۲۹
کوم عدد له ۲۷ څخه د دوو په اندازه لږ دی؟ ۲۵
۳. کوم عدد له ۵۰ څخه د لسو واحدو په اندازه زیات دی؟ ۶۰
کوم عدد له ۵۰ څخه د لسو واحدو په اندازه لږ دی؟ ۴۰
۴. کوم عدد له ۷۰ څخه د شلو واحدو په اندازه زیات دی؟ ۹۰
کوم عدد له ۷۰ څخه د شلو واحدو په اندازه لږ دی؟ ۵۰
۵. په تشو ځایونوکې د (< یا >) مناسبه نښه ولیکئ.
۹۳ > ۹۷ ۴۷ < ۳۵ ۲۳ > ۷۷ ۶۸ > ۸۲

۱۰

بشپړ کړي. او ښاغلی ښوونکی دې پام وکړي چې زده کوونکی د عددونو د لیکلو په وخت کې تسلسل په نظر کې نیسی او که نه؟ له هغه پرته د عددونو په تسلسل او ترتیب کولو کې دې لارښوونه ورته وکړي.
– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام هغه عددونو ته چې په تخته باندې لیکل شوي دي راوګرځوي او په وار سره له څو زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.
کوم عدد ده چې له ۳۶ څخه د یوه واحد په اندازه زیات ده؟
کوم عدد ده؟ چې د ۴۵ څخه د ۲ واحد په اندازه لږ ده؟
کوم عدد ده چې د ۲۰ څخه د لسو واحدو په اندازه لږ ده؟
کوم عدد ده چې د ۴۰ څخه د ۱۰ واحدو په اندازه زیات ده؟
په همدې ډول نوري پوښتنې دي وشي.

**۲– مشق او تمرین:**
ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰) مخ ته راوګرزوي په ګډه دي دوه، دوه تنه یو ځای کار وکړي. او جدول دې په خپلو کتابچو کې رسم کړي او د جدول تش ځایونه دې د مناسبو عددونو په واسطه په داسې حال

کې چې تسلسل ولری ډک کړي.
همدارنګه د جدول څخه په کار اخستنې سره د (۱–۴) پوښتنې پوری دې له زده کوونکو څخه وپوښتل شي، او ځوابونه دې په لاس راوړل شي. که چیری زده کوونکي ستونزي ولري د توکو څخه لکه لوبیا، وړی ډبری، کار واخستل شي.

**۳– ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو پوهه پیدا کړې ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وشي د ستونزو د شتوالي په صورت کې دې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

– څوک په پرله پسی توګه په ترتیب سره له ۵ څخه تر ۲۰ پوري لیکي؟
– څوک په پرله پسی توګه په ترتیب سره له ۶۸ څخه تر ۹۶ پوري لیکي؟

**مهارت:**

زده کووني وکړائ شي لاندې جدولونه په ترتیب سره ډک کړي.

| | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | | | | ٦ | | | | ۱۰ | | | | ۱۴ | | | | ۱۸ | | | | ۲۲ |

| | | | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | ۴۰ | | | | | | | | | | ۵۰ | | |

**ذهنیت:**

د عددونو د مقامي قیمت په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي د تل دپاره د عددونو په لیکلو کې تسلسل په نظر کې نیسی او خوند ورڅخه اخلی.

**ارزښت:**

د عددونو د ارزښت په پوهیدو سره د ورځنی ژوند په معاملو کې کار ورڅخه اخلي.

**۴– کورنی دنده:**

د لسم مخ (۵) پوښتنه چې د عددونو پرتله کول دي زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکی او تش ځایونه دې د (<، > یا =) مناسبو نښو په واسطه ډک کړي.

## عنوان: د متناوب شمیرلو مشق او تمرین

**شپږم لوست، (۱۱) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف (موخه):** زده کوونکي په آساني سره وکولای شي د دوه، دوه، درې عددونه په متناوب توګه زیات کړي او د یوه، یوه عددونو په زیاتولو سره بسنه ونکړي.

**اصطلاح ګانې:** متناوب، مخ کې، وروسته، منځ کې.

**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، لوبیا لرګوتي، او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو وویشي. د زده کوونکو د هر ګروپ کورنۍ دنده دې وويني. د هر ګروپ غلطي ګانې او اشتباه ګانې دې په دره باندې فهرست کړي پاملرنه دې وشي چې غلطي ګانې په خپله د زده کوونکو په واسطه صحیح شي. او په دې صورت کې باید درې واړه ګروپونه فعالیت وکړي او د پوښتنو په حل کې برخه واخلي.

– ښاغلی ښوونکی یو شمیر لرګوتي لوبیا او وړې ډبرې په جلاء جلاء توګه په خپل میز باندې کښیږده په داسې حال کې چې هر یو د دې توکو یویز او لسیز ولري.

– ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راوغواړي ترڅو ۱۵ دانې لرګوتي جلا کړي او د هغو رقم پرتخته ولیکي، بیا دې یو بل زده کوونکي راوغواړي د یوه د شمیر په اندازه یوه دانه زیاته جلاء کړي او اړوند رقم دې په تخته ولیکي. اوس دې یو دریم زده کوونکی راوغواړي له ۱۵ لرګوټو څخه دې یوه دانه لږ جلاء کړي. او د هغه اړوند رقم دې په دره باندې ولیکي.

– ښاغلی ښوونکی دې پاملرنه وکړي چې زده کوونکي د ۱۴ او ۱۶ عددونه په خپل مناسب ځایونو کې لیکلی دی او که نه؟ یعنی د ۱۵ رقم د ۱۴ او ۱۶ په منځ کې لیکل شوی دئ. د اشتباه په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی غلطي صحیح کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکی راوغواړي چې د

**شپږم لوست**

**د متناوب شمېرلو مشق او تمرین**

هدف: زده کوونکي په آساني سره وکولای شي د دوه، دوه، درې عددونه زیات کړي او د یوه، یوه عددونو په زیاتولو بسنه ونکړي.

| ۲۴ | ۲۵ | ۲۶ |
|---|---|---|
| ۲۴ له ۲۵ څخه مخ کې راځي | ۲۵ د ۲۴ او ۲۶ په منځ کې راځي | ۲۶ د ۲۵ څخه وروسته راځي |

په ګروپي ډول کاروکړئ او د کوچنیو ډبرو په شمیرولو سره خالي ځایونه په مناسبو عددونو ډک کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱- ۳۰، ۳۱، ۳۲ | ۶۵، ۶۶ ۶۷ | ۱۲، ۱۳، ۱۴ |
| ۲- ۴۵، ۴۶، ۴۷ | ۷۱، ۷۲، ۷۳ | ۸۳، ۸۴، ۸۵ |
| ۳- ۹۶، ۹۷، ۹۸ | ۲۷، ۲۸، ۲۹ | ۵۸، ۵۹، ۶۰ |

کوچنۍ ډبرې وکاروئ د خپل فعالیت کوونکو سره ګډ کار وکړئ. متناوب شمېرل دکوچنۍ ډبرو په ایښودلو کار وکړئ. تر سلو پورې عددونه په جدول کې ولیکئ. د هر عدد لپاره چې تاسو یې شمېرئ مشق او تمرین سرته ورسوئ. د مثال په توګه تاسو په جګ غږ سره ووایاست (۲، ۴، ۶، ۸...) او کوچنۍ ډبرې په عددونو باندې یعنې په (۲، ۴، ۶، ۸...) کېږدی د خپل فعالیت ګډون کوونکي ارزيابي کړئ. د۳، ۴، ۵ او نورو په زیاتولو سره د متناوب شمېر عددونو فعالیت تکرار او سرته ورسوئ.

**فعالیت:** د لاندې لارښود په کارولو سره غوښتل شوی عدد پیداکړئ.

۱-لارښوونه: غوښتل شوی عدد د ۱۰ او ۸۰ په منځ کې دی.

۲-لارښوونه: غوښتل شوی عدد یوله لاندې عددونو څخه دی.

۱۳، ۳۰، ۲۳، ۸۰، ۸۳، ۶۷، ۵۲

۳-لارښوونه: غوښتل شوی عدد له ۵۵ څخه لږ کم دی.

۴-لارښوونه: کوم وخت چې تاسو له صفر (۰) څخه پیل کوئ د لس، لس په زیاتولو سره د غوښتل شوي عدد نوم اخلئ. غوښتل شوي عدد له ___۳۰___ څخه عبارت دی.

۱۱

۴۶ څخه او د هغو رقم په دره باندې ولیکي. بیا دې دویم زده کوونکی راوغواړي چې د ۴۶ څخه د ۳ په شمیر یا اندازه لږ وړې ډبرې جلا کړي او اړوند عدد دې په دره باندې ولیکي. اوس دې دریم زده کوونکی راوغواړي چې د ۴۶ ډبرو څخه ۳ ډبرې زیاتې جلا کړي او اړوند عدد دې په دره باندې ولیکي.

– ښاغلی ښوونکی دې بیا پاملرنه ورته وکړي چې زده کوونکو فعالیت په صحیح توګه سرته رسولی ده او که نه؟ د غلطي په صورت کې دې لارښوونه وکړي.

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکی د مثال په ډول احمد دې راوغواړي او هغه ته دې ووایي چې په میز باندې له لوبیا څخه ۴۰ دانې لوبیا جلاء او اړوند رقم یې په دره باندې ولیکه، بیا دې بل زده کوونکی راغواړي هغه دې د لسو دانو لوبیاو په شمیر زیاتي جلاء کړي او اړوند رقم دې په دره باندې ولیکي. په همدې ډول دریم زده کوونکی دې راوغواړي چې ۴۰ څخه د لسو دانو لوبیا په شمیر لږ جلا کړي او اړوند رقم یې په دره باندې

وليکي. ښاغلی ښوونکی دي پام وکړي چې زده کوونکو رقمونه په ترتیب سره لیکلی دي او که نه؟ د اشتباه په صورت کې دې لارښوونه وکړي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱) مخ ته راوګرزوي او هغوی دې ورباندې پوه کړي چې هر عدد، هم مخ کې عدد لري او هم وروسته عدد لري. وروسته دې زده کوونکی په دري ګروپونو وويشي په داسې حال کې چې لومړی پوښتنه دې لومړی ګروپ ته، دويم پوښتنه دې دويم ګروپ ته، او دريمه پوښتنه دې دريم ګروپ ته ورکړي، ترڅو تش ځايونه په مناسب عددونو سره ډک کړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو د جريان څخه څارنه کوي د ستونزو په درلودلو سره دې ګروپونو ته لارښوونه وکړي.

**۳– آرزونه:**

ښاغلی ښوونکی دې د خپل ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په درلودلو سره دې لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايې چې د ۲٦ او ۲۸ عددونو په منځ کې کوم عدد دئ؟

– څوک وايې چې د ۲۱ څخه مخ کې کوم عدد او له ۲۱ څخه وروسته کوم عدد دئ؟

**مهارت:**

زده کوونکی لاندې تش ځايونه په مناسب عدد سره ډک کړائ شي.

۱۷، ــــ، ۱۹

ــــ، ۴۲، ۴۳

٦۷، ٦۸، ــــ

**ذهنيت:**

زده کوونکي د عدد د مقامي قيمت په پيژندلو سره کولای شي عددونه ترتيب کړي او خوښی ښکاره کړي او خوند واخلي.

**ارزښت:**

زده کوونکي له دې زده کړي څخه د ژوند په ورځنی کارونو کې ګټه اخلي او خپل ستونزی حل کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د لارښود کتاب څخه په کار اخستلو سره زده کوونکي دې د کتاب د (۱۱) مخ معماء په خپلو کورونو کې حل کړي او ښاغلی ښوونکی به د کورنۍ دندې د ورکولو په وخت کې يو څه مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

# عنوان: مخ کې، وروسته، منځ کی، زیات او لږ

**اووم لوست، (۱۲، ۱۳) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه (موخې):**

– زده کوونکی وکړای شي د یوه عدد، مخ کې وروسته عددونه او همدارنګه یو عدد چې د دوو عددونو په منځ کې وي وپیژني.

– زده کوونکی د نظر وړ په عددونو کې، لږ او زیات عددونه وپیژندلای شي.

**اصطلاح ګانې:** مخ کې، وروسته، منځ کې، د عددونو خط، لږ او زیات.

**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د لوبیا دانې، د نخود دانې، زده کوونکي، د عددونو کارتونه او نور محیطي مواد.

**اووم لوست**

**مخ کې، وروسته، منځ کې، زیات، لږ**

هدف: په دې لوست کې دې زده کوونکي د یوه عدد مخ کې او وروسته عددونه وپیژني.

د ۵ کتارونو کتابونو رسم چې د ۱۸، ۱۹، ۲۰،۲۱ او۲۲

عددونه د هغو کتارونه راښیي. ... ۱۸ ...

۱۹ د۲۰ څخه مخ کې راځي. ... ۱۹ ...

۱۹ د۱۸ او ۲۰ په منځ کې دی. ... ۲۰ ...

۱۹ د۱۸ څخه وروسته راځي. ... ۲۱ ...

۱۹ له ۱۸ څخه زیات دی. ... ۲۲ ...

۱۹ له ۱۸ څخه لږ دی.

**لمړی فعالیت**

جوړه جوړه کار وکړئ پوښتنوته ځواب ووایاست.

۱. هغه عدد ولیکئ چې مخ کې راځي.

۳۱ ۳۲ ۳۳ ۳۴     ۵۱ ۵۰ ۴۹ ۴۸

۲. هغه عدد ولیکئ چې وروسته راځي.

۸۸ ۸۷ ۸۶ ۸۵     ۵۴ ۵۳ ۵۲ ۵۱

۳. هغه عدد ولیکئ چې په منځ کې راځي.

۱۸ ۱۹ ۲۰ ۲۱     ٦۲ ٦۳ ٦۴ ٦۵

د لاندې ترتیب شوو عددونو په اړه په پورتني چوکاټ کې دکارول شوو مثالونو نه په ګټې اخیستو سره خبرې اترې وکړئ.

۷۲ ۷۳ ۷۴ ۷۵ ۷٦ ۷۷

۱۲

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده وګوري او پاملرنه دې وکړي چې څو زده کوونکو پوښتنه په صحیح توګه حل کړې ده. او هغه لاربښوونه چې په کتاب کې ورته شوې ده په نظر کې نیولې شوې ده او که نه؟ او له هغه پرته زده کوونکو ته دې بیا لارښوونه وکړي او پوښتنه دې په صحیح توګه حل کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې د دریو زده کوونکو نومونه لکه د شفیق، حبیب او صبور واخلي او د ټولګي مخې ته دې راوغواړي او په دې توګه دې د کتار په شکل ودروي.




له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي: څوک مخ کې ده؟ زده کوونکي وائي شفیق.

له شفیق څخه وروسته څوک ده؟ حبیب ده.

له حبیب څخه وروسته څوک ده؟ صبور ده.

بیا دې پوښتنه ورڅخه وشي د صبور او شفیق په منځ کې څوک ده؟ حبیب ده؟

په همدې ډول له زده کوونکو څخه دې د ۱۲، ۱۳ او ۱۴ تنو ګروپونه جوړ کړي او هر ګروپ ته دې اړوند کارت چې په هغو باندې د ۱۲، ۱۳ او ۱۴ عددونه لیکل شوي دي. او د هر ګروپ شمیر ښیئې ورکړي او پوښتنې دې وکړي: ۱۲ له کوم عدد څخه مخ کې دئ؟ د ۱۳ څخه مخ کې ده.

۱۴ د کوم عدد څخه وروسته ده؟ د ۱۳ څخه وروسته ده، ۱۳ د کوم عددونو په منځ کې شتوالي لري؟ د ۱۲ او ۱۴ عددونو په منځ کې شتوالی لري. ۱۳ د کوم عدد څخه وروسته دئ؟ د ۱۲ څخه وروسته دئ ۱۳ زیات دي او که ۱۲. په همدې ډول نورې پوښتنې دې له زده کوونکو څخه وپوښتل شي.

– ښاغلی ښوونکی دې ادا ډول خط د تورې دړې په مخ باندې رسم کړي او هغه دې په مساوی فاصلو سره وویشي او د کوچنیو خطونو په واسطه دې وښیئي:



وروسته زده کوونکو ته دې ووایې څوک د خطونو تر لاندې د تسلسل په شکل ورو خطونو اړوند عدد لیکي؟
ښایې چې داوطلب زده کوونکي زیات وې په وار سره دې راوغوښتل شي او عددونه دې بشپړ کړي او د زده کوونکو په واسطه دې کار وشي.




دا فعالیتونه دې په وار سره د زده کوونکو په واسطه د دړې په مخ باندې کار وشي. او په پای کې له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وشي. هغه خط چې د هغه په مخ باندې عددونه لیکل شوي دې د څه په نامه یادیږي. که چیرې زده کوونکې ځواب ونشي ویلای. هغوی ته دې وویل شي چې دا خط د عددونو د خط په نامه یادیږي وروسته له دې هر خط چې په دې شکل وینئ د عددونو د خط فکر ورته وکړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کونکو پام د کتاب (۱۲ او ۱۳) مخونو ته راوګرزوی د کتاب تصویرونه چې په ۵ کتارونو کې ښودل شوي دي، هغه زده کوونکو ته څرګند کړئ. ترڅو د مخ، وروسته او د منځ ځایونه د هغو په ذهن کې ښه ځای ونیسی او وروسته زده کوونکي په دري ګروپونو وویشئ په دې صورت کې د (۱۲) مخ (۱ او ۲) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ ته او د دې مخ ۳ ګڼه پوښتنې دویم ګروپ ته او همدارنګه د ۱۳ مخ د (۱، ۲، ۳ او ۴) ګڼې پوښتنې چې د ۱۳ مخ په منځ کې دې. لومړی دې ښاغلی ښوونکی یو عددې خط چې له ۳۷ څخه پیل او په ۹۴ سره پای ته رسیږی په دړه باندې رسم کړي او عددونه دې په هغه باندې ولیکی وروسته دې ځوابونه د عددې خط له مخې له زده کوونکو څخه په لاس راوړي.

**۳– آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی د لوست د زده کړی په برخه کې ځان ډاډمن کړي له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو د شتوالي په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وائې د ۴۷ او ۴۹ په منځ کې کوم عدد دئ؟
– څوک وائي چې له ۸۴ څخه مخ کې کوم عدد او له ۷۵ څخه وروسته کوم عدد دئ؟

لاندې عددي خط په نظرکې ونیسئ او هرې پوښتنې ته ځواب ووایاست:




۱.هغه عدد چې له ۷۲ څخه مخ کې دی ترې لاندې خط وکاږئ.
۲. له هغه عدد نه دایره راتاو کړئ چې له ۷۹ څخه وروسته دی.
۳. دهغه عدد له شاوخوا نه خط تاوکړئ چې د ۷۴ او ۷۵ په منځ کې دی.
۴.په ټولو هغو عددونو باندې د (×) نښه کېږدی چې د ۷۵ او ۸۰ په منځ کې دی.

**لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:**

۱. له ۴٦ څخه مخ کې کوم یو عدد دی؟ ۴۵
۲. کوم یو عدد د ۳۷ او ۳۹ په منځ کې دی؟ ۳۸
۳. هغه عدد چې له ۵۵ څخه وروسته راځي کوم دی؟ ۵٦
۴.کوم عدد د یوه په اندازه له ۹۴ څخه مخ کې دی؟ ۹۳

**دریم فعالیت:** ښوونکی د یو عدد په دړه باندې ولیکي او د (مخ کې)، (وروسته)، (منځ کې)، (زیات)، او (لږ) په ډول کلمې وکاروي،ترڅو چې وکولای شي دعددونو په هکله خبرې وکړي.

**کورنۍ دنده:** لاندې معما حل کړئ.

۱. زه د ۳۸ او ۴۲ په منځ کې یم.
زه درې لسیزې لرم.
زه څوم نمره یم؟ ۳۹




۲. له خپله ځانه یوه عددي معما جوړه کړئ چې سبا ته هغه وښایاست.

۱۳

**مهارت:**

– زده کوونکي د عددې خط په مخ باندې لاندې عددونه ترتیب کړای شي.

۳۵، ۳٦، ۳۲، ۳۳، ۳۴، ۳۰، ۲۹، ۳۷، ۲۸، ۳۸، ۳۱

**ذهنیت:**

د عددې خط په پیژندلو او د هغه په مخ باندې د عددونو ترتیب کولو سره زده کوونکي د ریاضي سره مینه پیدا کوي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی د لږو او زیاتو عددونو په پوهیدو سره، په ورځنې ژوند او معاملو کې ګټه ورځخه اخلي او خپل ستونزي حل کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د ۱۳ مخ د پای دوه پوښتنې چې یو یې د معماء په شکل ده، زده کوونکي دې هغه حل کړي او بیا دې هر زده کوونکی په خپله خوښه یوه عددي معماء جوړه کړي او له خپله ځانه سره دې راوړي. او ښاغلی ښوونکی دې د معماء په برخه کې زده کوونکو ته معلومات ورکړي.

# عنوان: وصفي (ترتيبي) عددونه

**اتم لوست، (۱۴) مخ**

**وخت: ۴۵ دقيقې**

**هدف (موخه):** زده کوونکي پوه شي چې لومړی، دويم، دريم ... د يوه شي مقام او منزلت راښيي.

**اصطلاح ګاني:** وصفي يا ترتيبي عددونه، (لومړی، دويم، دريم، څلورم ... لسم)

**د لوست مرستندوی مواد:** قلمونه، لرګوټي، د لوبيا داني، د نخودو داني، او نور محيطي مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده په ډير غور سره وګوری، هغو زده کوونکو چې پوښتنې يې حل کړي دي په هڅوونکو (تشويق کوونکو) لکه د شاباش، يا آفرين په کلمو سره وهڅوي، او هغه چا چې اشتباه يا غلطی کړي دي په ډير شفقت سره دې لارښوونه ورته وشي.

– ښاغلی ښوونکی! د پوښتنو عبارت دې د زده کوونکو په واسطه ولوستل شی، بيا دې د هرې پوښتنې مفهوم ورته څرګند شي. او پوښتنی دې د زده کوونکو په واسطه حل شي ځکه په دې پوښتنو کې مقصد يوه عدد ته ډير نږدې عدد او د مخ کې، منځ کې او وروسته ده، کلمې دي، او په يوازينی توګه دې له زده کوونکو څخه پوښتنې وشي.

ښاغلی ښوونکی دې يو عددې خط د تختې په مخ باندې داسې رسم کړي چې عددونه په هغه باندې وليکي. او له احمد څخه دې پوښتنه وکړي. د ۷۴ له عدد څخه مخ کې کوم عدد دی؟ د ۷۳ عدد ده.

محمود دې ووايي د ۸٦ عدد، د کوم دوو عددونو په منځ کې دئ؟ د ۸۵ او ۸۷ عددونو په منځ کې.

زلمي دې ووايي: د ۹۰ له عدد څخه وروسته کوم عدد دئ؟ د ۹۱ عدد ده په همدې ډول نورې پوښتنې دې وشي.

– ښاغلی ښوونکی د وصفي عددونو د پيژندلو لپاه چې د شيانو مقام او حالت څرګند کړي لس زده کوونکي دې په

اتم لوست

توصيفي(ترتيبي) عددونه

هدف: زده کوونکي دې پوه شي چې لومړی دوهم، دريم... د يوه شي مقام او منزلت راښيئ.

تر ۱۰ پورې ترتيبي عددونه استعمالوو ترڅو د شيانو حالت او مقام څرګند کړي.




که چېرې يوه بله خزنده ورسره جمع کړئ خزنده به په کوم مقام کې وي؟




۱. پنځم موټر په سره رنګ، رنګ کړئ.
۲.نهم موټر ته شين رنګ ورکړئ.
۳.شپږم موټر ته زيړ رنګ ورکړئ.
۴.دوهم موټر ته ارغواني رنګ ورکړئ.
۵.اووم موټر ته نصواري رنګ ورکړئ.
٦.دريم موټر ته آبي رنګ ورکړئ.
۷. د شپږم موټر مخې ته څو موټرونه دي؟ ۵ موټرونه
۸.د څلورم موټر نه مخکې څو موټرونه دي؟ ۳ موټرونه
۹.د پنځم موټر څخه وروسته څو موټرونه دي؟ ۵ موټرونه
۱۰.د اتم موټر شاته څو موټرونه دي؟ ۲ موټرونه

۱۴

يوه کتار کې يو په بل پسې ودروي او په وار سره دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي.



لومړی څوک ده؟ دويم څوک ده؟ دريم څوک ده؟ ... لسم څوک ده؟ زده کوونکی د هر يوه زده کوونکی نوم اخلی او ځواب وايې په همدې ډول له خپل ځان سره لرونکی مواد دې په ترتيب سره داسې کښيږدې چې لومړی يې قلم وي.



ښاغلی ښوونکی دې په ترتيب سره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.

څلورم شی ته د (X) نښه کښيږدئ، نهم شی په خپل لاس کې ونيسه زده کوونکو ته يې وښياست چې څه شئ ده؟ له اتم شئ څخه مخ کې څه شئ ده؟ او څووم ده؟

له نهم شئ څخه وروسته څه شئ ده؟ او څو وم ده؟ د هغه اړوند رقم څو ده؟ پوښتنوته دوام ورکړئ ترڅو ټول زده کوونکي برخه من شي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په دوو ګروپونو وویشئ. او د کتاب (۱۴) مخ ته یې متوجه کړئ. لومړی شکلونه او تصویرونه چې خزندې دي په ترتیب سره دې تشریح شي او ورته وواياست که چیری یوه بله خزنده ورسره جمع کړو، هغه خزنده په یوولسم مقام کې راځي. په همدې ډول د یوه، یوه په زیاتولو سره د دوولسم، دیارلسم ... مقام غوره کوي بیا دې لس وروستنې پوښتنې د ګروپونو تر منځ وویشل شي، زده کوونکی دې د شکلونو او تصویرونو له مخې په خپلو کتابچو کې کار وکړي او عمل دې وکړي ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه کوي.

**۳– آرزیابی:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک په تولګی کې د لومړی کتار اتمه څوکی ښیې؟

– څوک په تولګی کې لومړی، دویم او دریم کتار ښیې؟

**مهارت:**

زده کوونکي دا عددونه تشخیص او ولیکلای شي د ۸۵ له عدد څخه مخ کې کوم عدد ده؟ او د ۳۶ له عدد څخه وروسته کوم عدد ده؟ ویې لیکئ د ۵۸ او ۵٦ عددونو په منځ کې کوم عدد ده؟

او همدارنګه ٦٧ د خپل کوم مخکنی عد څخه د یوه په اندازه زیات ده. او د خپل کوم وروستنی عدد څخه د یوه په اندازه کم ده؟

**ذهنیت:**

د شیانو د مقام او حالت په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او هڅه کوي ترڅو ښه او لوړ مقام په لاس راوړي.

**ارزښت:**

د دې لوست په پوهیدو سره زده کوونکي کولای شي خپل ورځنی ستونزي حل کړي.

**۴– کورنی دنده:**

– زده کوونکي دې اووه مثلثونه او یوه مربع په یوه کتار کې رسم کړي په داسی حال کې چې مربع په پنځمه ګنه کې راشي.

– زده کوونکې دې ۱۲ مربع ګانې او ۲ مثلثونه په یوه کتار کې رسم کړي په داسې حال کې چې مثلثونه په اتمه او نهمه شمیرنه کې راشي.

## عنوان: د مقامی قیمت مفهوم

**نهم لوست، (۱۵) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف (موخه):** زده کوونکی باید په مرتبو کې د رقم په ارزښت پوه شي.

**اصطلاح ګاني:** ارزښت، رقم، مرتبه، یویز او لسیز.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوتو بنډلونه، یو دانه يې لرګوټي، د لوبیا داني، د جوارو داني او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دندې وګوري، غلطي ګاني او اشتباه ګاني دې په تخته باندې فهرست کړي. او بیا دې صحیح ځوابونه په خپله د زده کوونکو په واسطه پیدا شي او له هغه پرته په خپله دې صحیح او د قناعت وړ ځوابونه زده کوونکو ته ووایي او له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

احمد په ټولګي کې په څومه څوکۍ ناست ئ؟

زلمی جانه! تاسو په ټولګي کې په څومه څوکۍ ناست یاست؟

محمود جانه! تاسو په کوم یا څوم کتار کې یاست؟

په همدې ډول نورې پوښتنې دې له زده کوونکو څخه وشي.

– ښاغلی ښوونکی دې د ۱۵ په شمیر لرګوټي په میز باندې داسې کښیږدي چې ټوله زده کوونکي هغه ولیدلای شي. او بیا دې یو زده کوونکی ور وغواړي او د هغه په واسطه دې وشمیرل. هغه یې شمیری او وایي چې ۱۵ داني لرګوټي دي. او په همدې ډول له بل زده کوونکی څخه دې پوښتنه وکړي چې په دې لرګوتو کې څو لسیز او

دوهم فصل

له (۱–۱۰۰) پورې د عددونو مقامي قیمت او عملیې

نهم لوست

د مقامي قیمت مفهوم

هدف: زده کوونکې باید په مرتبو کې درقم په ارزښت پوه شي.

له لاندې شکلونو څخه د لسیزو بنډلونه جلاء کړئ او د هغو بنډلونو ترشاوخوا خط وکاږئ بیا اړوند عددونه د جدول د یویزو او لسیزو په خانو کې ولیکئ. د مثال څخه پیروي وکړئ.

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۴ | ۲ |



پورته حل شوی مثال په پام کې ونیسئ توپونه وشمیرئ، په خپلو کتابچو کې د لسیز اویویز جدول رسم کړئ او اړونده عدد یې لیکئ.

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۷ | ۳ |



۱۵

څو یویز (یو دانه یې) دي. ښائي چې هغه ځواب ووایي، او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایي یولسیز. او پنځه یویز (یو دانه یی).

– ښاغلی ښوونکی دې یو بل زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووایي د لوبیا څخه یو څه لوبیاوی جلاء کړه چې ۲ لسه او ۶ یو دانه یې ولري، که چیری وکولای شي ښه او له هغه پرته یو داوطلب زده کوونکی دې راوغواړي ترڅو دا فعالیت سرته ورسوي او اړوند عدد يې په تخته باندې ولیکی.

همدارنګه یو بل زده کوونکی دې راوغواړي ترڅو د اووه دیرش په شمیر جواری جلاء کړي او اړوند عدد يې په تخته باندې ولیکی او په هغه کې یویز او لسیز وښئیي چې څو یویز دي او څو لسیز دي؟

**۲– مشق او تمرین:**

زده کوونکي په دوو ګروپونو وويشی.

لومړی ګروپ دې لومړنی شکل یعنی کیلی په خپلو کتابچو کې رسم او د هرو لسو دانو څخه دې خط چاپیر کړې یعنی خط دې وکاږي او یویز دې د خط د باندې پریږدي. یویز او لسیز دې په جدول کې وښیئي.

په همدې ډول دویم ګروپ دې دویم شکل چې توپونه دي په خپلو کتابچو کې رسم کړي او د لسیزو په شا او خوا دې خط وکاږي او یویز دې د خط دباندې پریږدي. یویز او لسیز دې په جدول کې وښیئي.

**۳– ارزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟

له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو د شتوالي په صورت کې دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایي په ۲۴ کې څو لسیزه او څو یویز دي؟

– څوک وایي په ۳۸ کې څو لسیزه او څو یویز دي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکولای شي لاندې عددونه په جدول کې په اړوند مرتبو کې ولیکي.

۵۶، ۷۸، ۴۵، ۳۰، ۳۱، ۴۹ او ۵۰

**ذهنیت:**

زده کوونکي د لسیزو او یویزو په پوهیدو سره دیوه نوي ذهنیت او فکر خاوندان کیږي د یوه عدد د رقمو د ارزښت په پوهیدو سره خوښی کوي.

**ارزښت:**

د پورته پوهی په اخستلو سره (د رقمونو د ارزښت تشخیص د عددونو په اړوند مرتبو کې) د ورځنی ژوند په معاملو کې کار ورڅخه اخلي.

**۴– کورنی دنده:**

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دری ګروپونو وویشي.

لومړی ګروپ: د ۴۹، ۴۰، ۳۷ او ۳۴ عددونه دې په جدول کې د یویز او لسیزو په مرتبو کې ولیکی.

دویم ګروپ: د خپلی خوښی شیان دې له ځانو سره راوړي چې (۲) لسیز او (۵) یویز ولري.

دریم ګروپ: لاندې عددونه دې د یویزو او لسیزو په جدول کې په اړوند مرتبو کې ولیکی.

اته ویشت، دري دیرش، شپږ څلویښت، او اووه پنځوس.

# عنوان: د مقامي قيمت مفهوم

**مخ:** (١٦)

**وخت:** ۴۵ دقيقې

**هدف (موخه):** زده کوونکي وکولای شي عددونه په اړوند مرتبو کې وليکي.

**اصطلاح ګاني:** مقامي قيمت، مرتبه، يويز او لسيز.

**د لوست مرستندويه مواد:** لرګوټي، د لرګوټو د لسيو بنډلونه، د لوبيا داني، د نخودو داني او نور محيطي مواد.

**١ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو د هر ګروپ کورنی دنده وګوري د هر ګروپ اشتباه دې په تخته باندې فهرست کړي او هڅه دې وشي چې د يوه ګروپ اشتباه د بل ګروپ په واسطه صحيح شي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو په اشتباه ګانو باندې بحث وکړي او ستونزې دې حل کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي تختې ته راوغواړي او د کورنۍ دندې پوښتنو ته ورته (مشابه) پوښتنې دې په زده کوونکو باندې کار وکړي چې په راتلونکي کې د اشتباه ګانو څخه مخ نيوئ وشي.

– ښاغلی ښوونکی دې لرګوټي او د لرګوټو د لسيو بنډلونه په خپل ميز باندې داسې کښيږدي ترڅو ټوله زده کوونکي يې وليدلای شي بيا دې يوه زده کوونکي ته وواېي چې راشي له دې لرګوټو څخه درې بنډله د لسيو او ٦ يو دانه يې لرګوټي جلاء کړي. کله چې زده کوونکی دا فعاليت صحيح سرته ورسوي يو بل زده کوونکي ته دې ووائي چې د تختې په مخ باندې جدول رسم کړي. د هغه اړوند رقم دې په اړوند مرتبه کې وليکي. که چيرې زده کوونکی مشکل درلود ښاغلی ښوونکی دې مرسته او

د شکلونو له مخې جدولونه پشپړ کړئ.



| يويز | لسيز |
|---|---|
| ٣ | ۴ |



| يويز | لسيز |
|---|---|
| ٠ | ۴ |



| يويز | لسيز |
|---|---|
| ٣ | ١ |



| يويز | لسيز |
|---|---|
| ۵ | ٣ |

**کورنۍ دنده:** په خپلو کتابچوکې وليکئ چې په لانـدې دوه رقمـي عددونو کې څو يويز او څو لسيز دي؟

| | | | |
|---|---|---|---|
| ٦ يويز ٢ لسيز ٢٦ | ١ يويز ٣ لسيز ٣١ | ٢ يويز ٦ لسيز ٦٢ | ٢ يويز ٨ لسيز٨٢ |
| ٨ يويز ٣ لسيز ٣٨ | ٩ يويز ۴ لسيز ۴٩ | ۴ يويز ٧ لسيز ٧۴ | ٠ يويز ٩ لسيزه ٩ |
| ١يويز ۵ لسيز ۵١ | ٧ يويز ۵ لسيز ۵٧ | ٠ يويز ٨ لسيز ٨٠ | ٩ يويز ٩ لسيز٩٩ |

١۶

لاربښوونه ورته وکړي.

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې د يوه زده کوونکي نوم واخلي و تختې ته دې راوغواړي ترڅو د ۴٨ عدد په يوه جدول کې وليکي که چيرې هم هغه زده کوونکی وکولای شو ښه به وي او که نه بل زده کوونکي دې راوغواړي چې دا فعاليت سرته ورسوي. بيا دې دريم زده کوونکی راوغواړئ چې يوه اندازه لوبيا جلاء کړي او په هغه کې لسيز او يويز عليحده، عليحده وښيئي.

**٢ – مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ګروپونو وويشي بيا دې د کتاب (١٦) مخ ته متوجه کړي دوه لومړني شکلونه دې لومړي ګروپ ته ورکړي چې د شکلونو له مخې د هغو اړوند عدد تشخيص او رقمونه يې د جدول په اړوند مرتبو کې چې د هر شکل تر لاندې ورکړل شوي دي خپلو کتابچو ته نقل او وليکي.

په همدې ډول د دې مخ دوه، دويم شکلونه دې دويم ګروپ ته ورکړي. چې د شکلونو له مخې د هغو اړوند عدد تشخيص او رقمونه يې د جدول په اړوند مرتبو کې چې د هر شکل تر لاندې ورکړل شوی دي په خپلو کتاپچو کې په صحيح توګه وليکي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جريان څارنه کوي او پام دي ورته ورکړي چې زده کوونکو په جدول کې يويز او لسيز په صحيح او رښتيا توګه پيژندلي دي او که نه؟

**۳– ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکي ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو په نوی لوست کې د يويز او لسيز ځايونه تشخيص کړي دي او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو په حالت کې دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايې چې يو بنډل د لسيو زيات ده او که ۸ دانې لرګوټي؟

– څوک وايې چې د ۲۸ په عدد کې د ۸ رقم په کومه مرتبه کې او د ۲ رقم په په کومه مرتبه کې راځي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکولای شي لاندې عددونه د يوه جدول په واسطه په اړوند مرتبو کې وښئيي.

**۶۵، ۵۶، ۷۲، ۲۷، ۶۹، ۹۶**

**ذهنيت:**

د يوه عدد د مقامي قيمت په پوهيدو او د مرتبو په پيژندلو سره د زده کوونکو په ذهن کې بدلون رامنځ ته کيږي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د مرتبو په پوهيدو او د مقامي قيمت سره زياته بلدتيا د لږو او ډيرو سره پيژندګلوي پيدا کوي د ژوندانه په ورځنی معاملو کې کار ورڅخه اخلي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکي دې په څلورو ګروپونو وويشل شي بيا دي د کتاب د (۱۶) مخ پوښتنې هغوي ته وويشل شي او هر ګروپ ته دې وويل شي، د ګروپ هريو غړی دې په يوه جدول کې يويز او لسيز وښيئي

# عنوان: د عددونو جمع تر ۹۹ پورې

**لسم لوست، (۱۷ او ۱۸) مخونه**
**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه (موخې):**

– زده کوونکي دوه رقمي عددونه یو له بل ه سره جمع کړای شي.

– زده کوونکي د جمعې په یوه عملیه کې د جمعې اجزاوې او د جمعې حاصل وپېژندلای شي.

**اصطلاح ګانې:** جمع، د جمعې لومړی جزء، د جمعې دویم جزء، د جمعې حاصل.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لسیو بنډلونه او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکې د هر ګروپ د مخکنۍ ورځې ورکړل شوي کورنۍ دنده په ډېر ځیر سره وګوري د هر ګروپ اشتباه دې په تخته باندې فهرست شي او اشتباه ګانې دې ښاغلی ښوونکی صحیح کړي او بیا دی په انفرادي توګه له زده کوونکو څخه پوښتني وشي.

احمد دې ووایې: په ۴۹ کې څو لسه او څو یو دي؟ ۴ لسه او ۹ یو.

زلمی دې ووایې چې ۳ لسه او ۷ یو څو کیږي؟ ۳۷

محمود دې ووایې چې ۲ لسه زیات دي او که ۹ یو؟ ۲ لسه زیات دي.

– ښاغلی ښوونکی دې ۳ دانې لرګوټي، او د لسو ۲ بنډله لرګوټي په یوه ځای کې،۴ دانې لرګوټي او د لسو یو بنډل لرګوټی دې په بل ځای کې کېښېږدي. او یو زده کوونکی دې راوغواړي او هغه ته دې ووایې دا لرګوټې چې په دوو ځایونو کې ایښودل شوي دي سره یوځای یې کړه. کله چې زده کوونکی لرګوټي یو له بله سره یوځای کړل بیا دې له دویم زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي. چې دا لرګوټې مجموعاً یا ټوله څومره دي؟ زده کوونکی د یویزو دانې او د لسیزو بنډلونه شمیري ځواب وایې چې ۳ بنډله د لسیزو او ۷ دانې یو دانه یې لرګوټي دي.

**لسم لوست**
**دعددونو جمع اوتفریق تر ۹۹ پورې**

دلوست هدف: زده کوونکي دې دوه رقمي عددونه یوله بله سره جمع اوهم دې له دوه رقمي عدد څخه دوه رقمي عدد تفریق کړای شي.

لاندې حل شوي مثال په نظر کې ونیسئ دوه رقمي پوښتنې یوله بله سره جمع کړئ.

۱– ۱۲ چوغکې په یوې ونې کې ناستې وې. ۲۴ چوغکې نورې له هغوي سره یوځای شوي په ونه کې ټولې څو چوغکې دي د۲۴ زیاتوالی په ۱۲ باندې داسې لیکلای شو.

۱ ۲ ........................ دجمعې لومړی جز
+ ۲ ۴ ........................ دجمعې دویم جز
۳ ۶ ........................ دجمعې حاصل

۲–دشکل له مخې دجمعې اجزاوې او دجمعې حاصل معرفي کړئ اودهغوي عددي افاده ولیکئ او همدارنګه درکړل شوي پوښتنې جمع کړئ.




| | | |
|---|---|---|
| ۴۷ + ۲۰ = ۶۷ | ۴۰ + ۳۸ = ۷۸ | ۳۱ + ۱۵ = ۴۶ |
| ۸۰ + ۱۶ = ۹۶ | ۷۴ + ۲۵ = ۹۹ | ۶۳ + ۱۵ = ۷۸ |

۱۷

– ښاغلی ښوونکی دې د دوو تنو زده کوونکو لکه صابر او صبور نومونه واخلي او د ټولګي مخې ته دې راوغواړي، صابر ته دې د ٦ دانو په شمیر لرګوټي او ۲ د لسیو بنډلونه او صبور ته دې ۳ دانې لرګوټې او ۲ د لسیو بنډلونه ورکړي او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي د صابر سره ټوله څو لرګوټې دي. هغوی به بیا ځواب ووایي ۲٦ لرګوټي.

– ښاغلی ښوونکی دې صابر او صبور ته ووایې چې تاسو دواړه خپل لرګوټي محمود ته ورکړي. کله چې لرګوټي یې محمود ته ورکړل، بیا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې اوس د محمود سره ټوله څو لرګوټې دي. هغوی یې شمیری بیا ځواب وایې ۴ د لسیو بنډلونه او ۹ یو دانه یې یعني ۴۹ لرګوټي دي. ښاغلی ښوونکی دې د ریاضی عملیه د تختې په مخ باندې داسې ولیکی.

۲٦ ⟵ د صابر لرګوټې
+ ۲۳ ⟵ د صبور لرګوټې
۴۹ هغه لرګوټې چې محمودته ورکړل شوي دي

دلته ۲۶ د جمعې د لومړی جزء په نامه، ۲۳ د جمعې د دویم جزء په نامه او ۴۹ د جمعې د حاصل په نامه یادیږي.
تاسو تل په یاد ولرئ چې لومړی عدد ته د جمعې لومړی جزء، دویم عدد ته د جمعې دویم جزء، او د هغو دواړو مجموعه د جمعې د حاصل په نامه یادیږي.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۷) مخ ته راوګرزوي (۱) مثال چې په کتاب کې حل شوی دی هغه دې زده کوونکو ته تشریح کړي او په مثال کې دې یویز او لسیز هغو ته وروپیژني د جمعې اجزاوي او د جمعې حاصل دې ورته وښیئي.
– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په دوو ګروپونو باندې وویشي. د دویمې پوښتنې شمیر دې د هغو ترمنځ وویشل شي ترڅو د حل شوي مثال سره سم، لومړی جزء، دویم جزء او د جمعې حاصل د زده کوونکو په واسطه وروپیژندل شي او د زده کوونکو په ذهن کې ښه ځای ونیسي.

**کورنی دنده:**

د دې عملیو د جمعې حاصل په خپلو کتابچو کې ولیکئ، د جمعې اجزاوې او د جمعې حاصل معرفي کړئ.

| | |
|---|---|
| ۱– ۱۴ + ۲۱ = ۳۵ | ۲– ۱۳ + ۲۶ = ۳۹ |
| ۳– ۱۸ + ۲۰ = ۳۸ | ۴– ۱۷ + ۲۲ = ۳۹ |
| ۵– ۲۱ + ۲۷ = ۴۸ | ٦– ۲۲ + ۲۳ = ۴۵ |

ګرانو زده کوونکو راځئ چې د لومړی پوښتنې لپاره یوه کیسه جوړه کـــړو او هغه حل کړو.
زرمینې په خپل جیب کې ۱۴ افغانۍ درلودې او مور یې دښوونځي دبکسې لپاره ۲۱ افغانۍ نورې ورکړي اوس زرمینه څو افغانۍ لري.
حل:

۲۱
+ ۱۴
۳۵

تاسو ددویمې ګڼې پوښتنې لپاره یوه عبارتي کیسه جوړه کړئ او حل یې کړئ.

کیسه: د قیس پلار ۱۳ افغانۍ ورکړي او مور یې هم ۲٦ افغانۍ ورکړي. اوس قیس ټولې څوافغانۍ لري.
حل:

۱۳ افغانۍ
+ ۲۶ افغانۍ
۳۹ افغانۍ

۱۸

**۳– ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وپوښتي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایي چې د جمعې په یوه عملیه کې لومړی عدد په کوم نامه او دویم عدد په کوم نامه یادیږي؟
– څوک وایې چې د جمعې په یوه عملیه کې د جمعې حاصل زیات ده او که د جمعې لومړی جزء؟

**مهارت:**

زده کوونکي لاندې پوښتنې حل کړای شي او په هغو کې د جمعې لومړی جزء د جمعې دویم جزء او د جمعې حاصل وښودلای شي؟

۱۲
+ ۱۷

۱۷
+ ۱۲

۲۴ + ۱۳ =
۱۱ + ۲۵ =

**ذهنیت:**

د جمعې د اجزاو او د جمعې د حاصل په پوهیدو او پیژندلو سره زده کوونکي یو نوی فکر غوره کوي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د جمعې په عملیه کې د جمعې د اجزاو ترتیب په نظر کې نیسی په ورځنی ژوند کې له هغه څخه کار اخلي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکی دې په دري ګروپونو وویشل شي د کتاب د (۱۸) مخ پوښتنې چې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي دي داسې چې (۱ او ۲) پوښتنې دې لومړی ګروپ ته (۳ او ۴) پوښتنې دې دویم ګروپ ته، (۵ او ٦) پوښتنې دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې د کتاب د هدایت سره سم کار وکړي.

# عنوان: د جمعې په عملیه کې د بدلون (تبدیلی) قانون

**یوولسم لوست، (۱۹) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف (موخه):** زده کوونکی پوه شي که چیرې د جمعې د اجزاو ځایونه بدلون ومومي د جمعې حاصل بدلون نه کوي.
**اصطلاح ګانې:** قانون، عملیه، بدلون، د جمعې اجزاوې.
**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، قلمونه، کتاب او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنی دندې وکتل شي. او ودې لیدل شي چې زده کوونکو د لارښوونی سره سم او صحیح کار کړی دہ او که نه؟ هغه چا چې پوښتنې صحیح حل کړي دي د شاباش او آفرین کلمو په ویلو سره دې تشویق شي. او هغه چا چې اشتباه کړی ده په شفقت او صمیمیت سره دې لارښوونه ورته وشي. او پوښتنې دې ورته حل شي او بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

احمده د ۱۳ په عملیه کې د جمعې لومړی جزء کوم دہ؟ ۱۳

$$\begin{array}{r} ۱۳ \\ +\ ۱۵ \\ \hline ۲۸ \end{array}$$

محموده: په همدې عملیه کې د جمعې دویم جزء کوم ده؟ ۱۵
زلمیه: په همدې عملیه د جمعې کې د جمعې حاصل کوم ده؟ ۲۸
په همدې ډول له نورو زده کوونکو څخه دې پوښتنې وشي ترڅو ټول زده کوونکي برخه واخلي.

– ښاغلی ښوونکی دې دوه زده کوونکي لکه صابر او حبیب جان د ټولګی و مخې ته راوغواړي. صابر ته دې د ۸ په شمیر لرګوټي او حبیب جان ته دې د ۵ په شمیر لرګوټي ورکړي. او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي چې د صابر سره څو دانې لرګوټي دي؟ هغوی وایې ۸ دانې لرګوټي د حبیب جان سره څو دانې لرګوټي دي؟ هغوی به وواېي ۵ دانې لرګوټي، بیا دې صابر ته وواېي ته

یوولسم لوست

د جمعې په عملیې کې د بدلون (تبدیلي) قانون

هدف: زده کوونکي باید پوه شي که چېرې د جمعې د اجزاؤ ځایونه بدلون ومومي د جمعې حاصل بدلون نه کوي.

که چیرې دعددونو د جمعې کولو په وخت کې د عددونو ځایونه سره بدل کړو د هغو د جمعې په حاصل کې کوم بدلون نه راځي. دځایونو دا بدلون پــه جمــع کې د بدلون د خاصیت په نامه یادېږي.

تمرین یې کړئ اوپه خپله هغه ووینئ:

$$\begin{array}{r} ۴ \\ +\ ۵ \\ \hline ۹ \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۵ \\ +\ ۴ \\ \hline ۹ \end{array}$$

۴ + ۵ = ۹ ۵ + ۴ = ۹

اوس وواياست چې دعددونود جمعې په حاصل کې څه بدلون راغلــی دی.
څرنګه چې د جمعې په حاصل کې بدلون نه دی راغلی نو ویل کیږي چې د جمعې د اجزاؤ د ځایونو بدلون د جمعې په حاصل کې بدلون نه راوړي.
عددي جملې په دوه طریقو ولیکئ.

$$\begin{array}{r} ۲ \\ +\ ۳ \\ \hline ۵ \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۳ \\ +\ ۲ \\ \hline ۵ \end{array}$$

۲ + ۳ = ۵ ۳ + ۲ = ۵

۱۹

هم خپل لرګوټي حبیب جان ته ورکړه. کله چې لرګوټي حبیب جان ته ورکړل. له زده کوونکو څخه دې بیا پوښتنه وکړي، اوس د حبیب جان سره څو دانې لرګوټي دي؟ هغوی به وواېي ۱۳ دانې لرګوټي دی.
اوس دې ښاغلی ښوونکی بل زده کوونکي ته وواېي چې دا عملیه دې په دړه باندې ولیکې هغه راځی داسې یې لیکې:
۵+۸=۱۳

– ښاغلی ښوونکی دې حبیب جان ته وواېي، چې اوس ته خپل لرګوټي صابر ته ورکړه حبیب جان خپل لرګوټي صابر ته ورکوي. بیا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي حبیب جان څو دانې لرګوټي صابر ته ورکړل. هغه ځواب ورکوی ۵ دانې لرګوټي.
بیا دې پوښتنه وکړي چې اوس له صابر سره څو دانې لرګوټي دي هغوی ځواب ورکوي ۱۳ دانې لرګوټي، ښاغلی ښوونکی دې له یوه زده کوونکي څخه غوښتنه وکړي چې دا عملیه دې پر تختې ولیکی، هغه تختې ته راځي او داسې لیکي: ۱۳=۵+۸

ښاغلی ښوونکی دې دا عملیه زده کوونکو ته داسې تشریح کړي تاسو ولیدل چې یو وارې ۸ له ۵ سره جمع شول چې د جمعې حاصل ۱۳ شول او په دویم واری ۵ له ۸ سره جمع شول چې د جمعې حاصل بیا هم ۱۳ شول یعنی ۱۳=۵+۸   =۸+۵ دي.

او زده کوونکو ته دې ووايي په حقیقت کې که چیري د عددونو د جمع کولو په وخت کې د عددونو ځایونه یو له بله سره بدلون ومومي د جمعې په حاصل کې هیڅ بدلون منځ ته نه راځي او دا قانون ده چې د جمعې د بدلون د قانون په نامه یادیږي.

په همدې ډول د زده کوونکو دوه معلوم ګروپونه دې د ټولګی په دوو ګوټو یا کونجو کې ودروي. او بیا دې سره یوځای کړي او هغه عملیه دې د تختې په مخ باندې ولیکي او وروسته دې د ګروپونو ځایونه سره بدل کړي او بیا دې یو ځای کړي او د هغه د ریاضي عملیه دې هم په تخته باندې ولیکي په همدې ډول دې نور فعالیتونه سرته ورسوي ترڅو د جمعې عملیه د زده کوونکو په ذهن کې ځای ونیسي.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکې دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۹) مخ ته راوګرزوي شکلونه او تصویرونه چې په هغه مخ کې دي زده کوونکو ته دې تشریح کړي. او په دې برخه کې دې له زده کوونکو څخه په شفاهي توګه پوښتنې وکړي او هم دوه پوښتنې چې د کتاب په وروستی یا کښته برخې کې ورکړل شوي دي زده کوونکو ته دې هدایت ورکړي چې په ټولګی کې په دوه ډوله د هغو عددې جملې ولیکی او حل یې کړي او ودې وایې د جمعې په حاصل کې کوم بدلون راغلیځ ده او که نه؟

**۳– ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي. د ستونزو د شتوالی په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د ٦+۴ او ۴+٦ د جمعې په عملیو کې څه بدلون ویني؟

– څوک وایي چې د پورتنې جمعې په عملیو کې د جمعې په حاصل کې توپیر یا تفاوت څو دي؟

**مهارت:**

زده کوونکی د جمعې د بدلون (تبدیلی) قانون په اساس لاندې تش ځایونه ډک کړای شي.

۹ = ___ + ٦      ۱۲ = ___ + ۵

۹ = ٦ + ___      ۱۲ = ___ + ۷

**ذهنیت:**

په جمع کې د بدلون د دې قانون په پوهیدو سره زده کوونکي د نوي پوهی خاوندان کیږي او احساس د خوښی کوي.

**ارزښت:**

د دې نوي عملیې په پوهیدو سره د ورځني ژوند په معاملو کې کار ورڅخه اخلي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د لاندې شکلونو له مخې عددې عملیې ولیکي او حل یې کړي.

___ = ___ + ___      ___ = ___ + ___

# عنوان: د جمعې په عملیې کې د بدلون (تبدیلی) قانون

**(۲۰ او ۲۱) مخونه**

**وخت: د لوست دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف (موخه):** زده کوونکی پوه شي که چیرې د جمعې د اجزاو ځایونه بدلون ومومي د جمعې حاصل بدلون نه کوي.

**اصطلاح ګانې:** پرتله، د جمعې اجزاوي، د جمعې حاصل.

**د لوست مرستندوی مواد:** عددې کارتونه، قلمونه، کتابونه او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورني دندې دې وکتل شي. هغه شکلونه چې زده کوونکو ته ورکړل شوي دي د هغو دپاره یې د ریاضي افادې په سم او صحیح توګه یې لیکلی او حل کړي دي او که نه؟ که چیري اشتباه یې کړي وي هغه صحیح کړئ.

– ښاغلی ښوونکی د (۷ + ۸) د ریاضي افاده د تختې په مخ باندې ولیکئ او یو زده کوونکی راوغواړي او هغه ته ووایاست د جمعې د اجزاو ځایونه یو له بل سره بدل او د جمعې حاصل یې پیدا کړئ. که چیرې زده کوونکی وکولای شي ښه، او له هغه پرته یو داوطلب زده کوونکی دي راوغوښتل شي، ترڅو پوښتنه حل کړي.

– په همدې ډول یو بل زده کوونکی دې راوغواړي، ترڅو په خپله د تختې په مخ باندې د جمعې یوه افاده ولیکی او بیا دې یو دویم زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووایې د جمعې د اجزاو ځایونه یو له بله سره بدل کړه او د جمعې حاصل یې په لاس راوړه.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي د پنځو او شپږو تنو په ګروپونو سره داسې وویشي چې د پنځو تنو او شپږو تنو د

**عددي جملې ولیکئ:**

۱. ۷ هلکان د پتنګ الوزونې لوبې کوي.
۵ هلکان نور له هغوی سره یوځای شول.
ټوله څو هلکان د پتنګ الوزونې لوبې کوي؟
هلکان ۱۲ = ۵ + ۷

۲. ۵ هلکان د غرمې ډوډۍ خوري ۷ هلکان نور له هغوی سره یوځای شول. ټول څو هلکان دي چې د غرمې ډوډې خوري.
هلکان ۱۲ = ۷ + ۵

۳. تش ځایونه په مناسبه عددو سره ډک کړئ د جمعې داجزاؤ د هرې جوړې د جمعې حاصل یوله بله سره پرتله کړئ او ووایاست چې څه توپیر وینئ.

۱–ګنې بدلون:
۱۸ = ۱۲ + ۶
۱۸ = ۶ + ۱۲

۲– ګنې بدلون:
۴۲ = ۱۰ + ۳۲
۴۲ = ۳۲ + ۱۰

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۶ + ۱۲ = ۱۸ | ۱۲ + ۶ = ۱۸ | ۳۲ + ۱۰ = ۴۲ | ۱۰ + ۳۲ = ۴۲ |

۲۰

ګروپونو شمیر یو له بله سره مساوی وي، د پنځو تنوئیزو ګروپونو او شپږو تنوئیزو ګروپونو ځایونه دې وټاکي او په خپل ځایونو کې دې ودروي. او بیا دې هغو ته ووایې چې یو– یو ګروپ د پنځو تنو او یو– یو ګروپ د شپږو تنو دې سره یوځای شي. او له همدی ګروپونو څخه دې پوښتنه وکړي چې اوس ستاسو د ګروپ شمیر څو تنه دي؟ هغوی ځواب وایې (۱۱) تنه. او بیا دې ورته ووایې چې اوس دې د پنځو تنو ګروپونه د شپږو تنو د ګروپونو په ځایونو کې او د شپږو تنو ګروپونه دې د پنځو تنو د ګروپونو په ځایونو کې ودریږي. کله چې ودریدل له زده کوونکو څخه دې وپوښتي. څه بدلون مو ولیدل؟ هغوی به ځواب ووایې زمونږ ځایونه یو له بل سره بدل شول او ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایې دا دوه– دوه ګروپونه چې ځایونه یې سره بدل شوی دي یو له بله سره دي یو ځای شي. او بیا دې له همدې یو ځای شوي ګروپونو څخه پوښتنه وکړي چې اوس ستاسو شمیر څو تنه دي؟ هغوی بیا هم وایې

(۱۱) تنه. او ښاغلی ښوونکی دې دا پوښتنه له زده کوونکو څخه وپوښتي او له هغوی څخه دې ځواب په لاس راوړي.

کوم وخت چې ستاسو ځایونو بدلون وموندل،ولې د جمعې حاصل یا د ګروپونو د مجموعې شمیر بدلون ونکړ؟

او هم هغه کاغذي کارتونه چې د ښاغلی ښوونکی سره دي ورکړل شي چې د کارتونو د ځایونو په بدلون سره د جمعې عملیه سرته ورسوي او د دې عملیې د بدلون نتیجه ووایې.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۲۰ او ۲۱) مخونو ته راوګرزوي د پوښتنو عبارت دې په وار سره د زده کوونکو په واسطه ولوستل شي او ودې لیدل شي، چې زده کوونکی د پوښتنو عبارت په روان توګه لوستلای شي او که نه؟ او بیا دې د هرې پوښتنې ریاضیکی افاده د زده کوونکو په واسطه ولیکل شي او حل دې شي. او په پای کې د ې زده کوونکی په څلور ګروپونو وویشل شي. د (۱) ګنی د بدلون پوښتنې دې لومړی ګروپ ته د (۲) ګنی د بـــدلون پوښتنې دې دویـــم ګروپ ته، د (۳) ګنې د بدلون پوښتنې دې دریم ګروپ ته او د (۴) ګنې د بدلون پوښتنې دې څلورم ګروپ ته ورکړل شي چې په ټولګی کې ورباندې کار وکړي، تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړي او د جمعې د اجزاؤ د هرې جوړې د جمعې حاصل سره پرتله کړي. او ووایې چې څه توپیرویني؟

**۳- ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي. د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې چې د جمعې دویم جزء زیات ده او که د جمعې حاصل؟
- څوک به د جمعې په عملیې کې د بدلون (تبدیلی) قانون بیان کړي؟

۷۲ + ۱۳ = ۸۵

۱۳ + ۷۲ = ۸۵

۵۴ + ۲۴ = ۷۸

۲۴ + ۵۴ = ۷۸

| | |
|---|---|
| ۷۲ + ۱۳ = ۸۵ | ۱۳ + ۷۲ = ۸۵ |
| ۵۴ + ۲۴ = ۷۸ | ۲۴ + ۵۴ = ۷۸ |

**کورنۍ دنده:**

لاندې هر یوه شکل ته عددي جمله ولیکئ.

۱. ۲.



۳ + ۵ = ۸ ۵ + ۳ = ۸



**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د جمعې د بدلون د قانون څخه په کار اخستلو سره لاندې تش ځایونه ډک کړي.

۴۸ + ___ = ۴۸ ، ___ + ۴۸ = ۴۸

___ + ۱۷ = ۸۹ ، ۱۷ + ___ = ۸۹

**ذهنیت:**

د دې نوي عملیې په زده کولو سره زده کوونکي مینه او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د جمعې په عملیه کې د بدلون له دې قانون څخه په ورځنی ژوند کې کار اخلي.

**۴- کورنۍ دنده:**

د کتاب د (۲۱) مخ وروستنی پوښتنه چې د زده کوونکو د کورنی دندې په توګه په نظر کې نیول شوي ده. هر یو زده کوونکی دې د هر یوه شکل لپاره یوه عددې افاده یا جمله ولیکی او حل دې کړي.

## عنوان: مشق او تمرین

**مخ: (۲۲)**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف (موخه):** زده کوونکی وکړای شي عددونه یو له بله سره پرتله کړي. د <، > نښې په مناسب ځایونو کې ولیکي.
**اصطلاح ګاني:** ډېر زیات، دیر لږ، جمع.
**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لوبیا دانې، د نخودو دانې، عددې کارتونه، هغه کارتونه چې د <، > نښې ولري.

**۱ – فعالیتونه:**
– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دندې وګوري اشتباه او غلطی ګانې دې په ډره باندې ولیکي. بیا دې د اشتباه ګانو او غلطی ګانو صحیح ځوابونه له زده کوونکو څخه په لاس راوړل شي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح او د قناعت وړ ځوابونه زده کوونکو ته ووایې.
بیا دې زده کوونکي په دري ګروپونو وویشي، یو، یو زده کوونکی دې د ټولګی مخې ته راوغواړي په وار سره دې پوښتنې ورڅخه وشي.
له لومړی ګروپ څخه دې محمود دړې ته نژدې راشي د ۲۴+۱۵ او ۱۵+۲۴ افادې دې حل کړي او د ځوابونو فرق دې ووایې.
له دویم ګروپ څخه دې احمد راشي په دړه باندې دې ___+ ۷ او ___ + ۱۲ تش ځایونه داسی ډک کړي چې د جمعې حاصل یې یو له بله سره مساوی وي.
له دریم ګروپ څخه زلمی دې ووایې که چیری د جمعې د اجزاؤ ځایونه یو له بله سره بدلون وکړي د جمعې په حاصل کې بدلون راځی او که نه؟
– ښاغلی ښوونکی دې هغه کارتونه چې په هغو باندې د (<، >) نښې لیکل شوی دي زده کوونکو ته دې وښیي او له هغو څخه دې پوښتنه وکړي. چې دا نښې پیژنی، د مخکنی معلومات له مخې ویلای شي هو، بیا دې پوښتنه وکړي. په کوم وخت کې له دې نښو څخه کار اخستل کیږي. ځواب وایې د لږو او زیاتو عددونو یا مقدارونو په

**مشق اوتمرین :**
تاسو پوهیږي چې ٦ له ۵ څخه زیات او داسې ۵ < ٦ لیکـــل کیـــږي.
اوهم پوهیږئ چې ۷ له ۸ څخه لږ او داسې ۸ > ۷ لیکل کیږي دجمعـــې په عملیه کې په دې توګه په کار وړل کیږي.

مثال –

۸ + ۹ ☐ ۸ + ۷
۱۷ [>] ۱۵

دپورته مثال څخه په کار اخستنې سره دلاندې پوښتنو په تشو ځـــایونو کې مناسب عددونه اویا د < ، > نښې ولیکئ.

۲۵ + ۱۴ [<] ۱۲ + ۳۰ ۲۹ + [۲۰] > ۱۲ + ۳۵
۲۰ + ۳۷ [<] ۴۰ + ۱۸ ۳۸ + [۱۱] < ۲۵ + ۳۲
۴۵ + ۲۳ [>] ۳۳ + ۲۲ [۲۵] + ۳۲ > ۳۲ + [۲۱]

۲۲

منځ کې او یا د شیانو او عددونو د پرتله کولو له پاره.
– ښاغلی ښوونکی کولای شي داسې ۷+۹☐ ۷ + ٦ افاده په دړه باندې ولیکی او له زده کوونکو څخه وپوښتي، په دې افادو کې کوم یوه یې زیاته او کوم یوه یې لږ ده؟ ښائي ځنې زده کوونکي ځواب ووایې خو ښاغلی ښوونکی دې هغو ته ووایې تاسو د داسې افادو په پرتله کولو کې باید فکر وکړي چې لومړی د تش ځای یعنی ☐ دواړه خواوته د جمعې عملیه سرته ورسوي بیا د جمعې حاصل یو له بله سره پرتله کوئ. یعنی ۷ + ۹ ☐ ۷ + ٦ په حقیقت کې
۱٦ ۱۳
۱٦ او ۱۳ یو له بله سره پرتله کړی.
– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په وار سره راوغواړي ترڅو د <، > نښې له لرګو څخه جوړ کړي. او ښوونکی دې په خپل میز باندې د لوبیا او نخود مختلف مقدار یا اندازې کښیږدي او یوه زده کوونکی ته دې ووایې چې راشي د لوبیا او نخودو دانې وشمیري وروسته دې هغه مناسبه نښه چې له لرګې څخه یې جوړه ده په صحیح توګه کښیږدي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۲۲) مخ ته راوګروزی هغه مثال چې په دې مخ کې حل شوی دې زده کوونکو ته دې څرګند او تشریح کړي، بیا دې هغه پوښتنې چې د دې مخ په پای کې ورکړل شوي دې و هر ګروپ ته دې دوه، دوه پوښتنې ورکړی ترڅو هغوی د جمعې د عملیې د سرته رسولو وروسته، د عددونو په منځ کې د (<، >) نښې په مناسب ځای کې ولیکي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان څارنه کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د ۷۳ او ۳۷ عددونو په منځ کې کوم یو یې زیات او کوم یویې لږ ده؟

– څوک وایې چې د ۸۵ او ۵۸ عددونو په منځ کې د کوم یوه لسیز زیات او د کوم یوه لسیز لږ دي او څو دي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل او د <، > نښې یا عددونه په مناسب ځایونو کې ولیکی.

□+ ۱۷ > ۲۸، ۳۶ + □ < ۴۵

۱۳ + ۳۳ □ ۱۴ + ۲۳، ۲۲ + ۱۶ □ ۳۴ + ۲۲

**ذهنیت:**

د عددونو له پرتله کولو، خاصتاً د جمعې په عملیه کې د زده کوونکو ذهن بدلون مومي د زیات او لږ په پوهیدو سره د خپل اړتیا وړ شیان له بازار څخه اخلي او خوبښې ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د دې نوي عملیې په پوهیدو سره زده کوونکي په عملي توګه په ورځنی ژوند کې کار ورڅخه اخلي او خپل ورځنی ستونزي حل کوي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل او له ځانو سره دې راوړي.

۴۶ + □ < ۴۹ ، ۲۷ > ۲۵ + □

۶۸ □ ۵۷ + ۱۲ ، ۳۵ + ۵۴ □ ۴۴ + ۴۲

# عنوان: د جمعې د دريو جزو جمع کول

**دوولسم لوست، (۲۳ او ۲۴) مخونه**
**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف (موخه):** زده کوونکي وکولای شي د جمعې له دوو جزو څخه زيات يو له بله سره جمع کړي.
**اصطلاح ګاني:** دري جزء، عدد، جمع، مجموع.
**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوتې، د لوبيا دانې، د جوارو دانې او نور محيطي مواد.

**۱ – فعاليتونه:**
– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په ډېر غور سره وليدل شي، کومې اشتباه او غلطي ګانې چې صورت مونډلی ده د دړې په مخ باندې دې فهرست شي. بيا دې د زده کوونکو په واسطه په صحيح توګه حل شي، که چيری زده کوونکو ونشو کولاي، ښاغلی ښوونکی دې هغه حل او تشريح کړي او بيا دې په انفرادی توګه داسې پوښتنې وکړي:
– صابر دې ووايې: چې د ۶۷ او ۷۶ په هر يوه عدد کې څو لسيزه او څو يو يزه دي؟ کوم يو يې زيات او کوم يو يې کم دی؟
– صبور دې و دړې ته نژدې راشي ۱۳+۳۶ ☐ ۱۲ + ۳۵ افادې دې لومړی حل او بيا دې په تش ځای کې د > او يا < مناسبه نښه وليکی.
– محمود د تش ځاي دواړه خواوته داسې د جمعې عمليې وليکه چې يوې خوا ته يې زيات او بلې خواته يې لږ وي.
– ښاغلی ښوونکی دې په خپل ميز باندې په درې ځايونو کې په مختلف شمير سره يعنی د لوبيا ۲، ۳ او ۴ دانې جلاء، جلاء کېښيږدي. او زده کوونکي دې راوغواړي چې د هغو ټولو د جمعې حاصل پيدا کړي، که چيری زده کوونکی درې واړه مقدارونه سره يوځای کړل او وېې شميرل په دې صورت کې دې ښاغلی ښوونکی ورته ووايي. لومړی ۲ او ۳ سره يوځای کړئ بيا د هغو مجموع له ۴ سره جمع کړئ، او يا لومړی ۳ او ۴سره جمع کړئ بيا دې ۲ د هغو له مجموع سره جمع شي او يا دې لومړئ ۲ او ۴ سره جمع شي په پای کې دې ۳ د هغو له مجموع سره يو ځای شي چې په ټولو حالتونو کې د جمعې حاصل عيني شی

دوولسم لوست
د جمعې د دريو جزو جمع کول
**هدف:** زده کونکي د جمعې پوښتنې چې درې جزء ولري جمع کړی شي.
تاسو کولای شئ چې دوه عددونه سره جمع کړئ اوس راځـــئ چـــې درې عددونه سره جمع کړو.
مونږ کولای شو دا عددونه په کوم ډول چې غواړو سره جمع کړو. د جمع کولو لپاره عددونه ګروپ کوو.
د مثال په توګه:
لومړی کوم دوه عددونه جمع کوو؟ ولې؟
په دې تمرين کې لومړی هغه دوه عددونه وټاکئ چې يوله بله سره يې جمع کوئ د جمعې حاصل يې وليکئ بيا وروسته د جمعې حاصل له دريم عدد سره جمع کړئ.
**دزده کوونکوفعاليت:** ۳۵ تنو په ګروپ جوړولو سره کار وکړئ او هر زده کوونکي ته دې دکـــارټونو يوه قطی چې په هغه باندې ۱ – ۹ نمره لرونکې وي ورکړل شي هر زده کوونکی دې يـــو کـــارټ لـــه قطی څخه راوباسي او نورو زده کوونکو ته دې وښيي.
۲۳

کيږي. په دويم وار کې دې د ۲، ۴ او ۵ په شمير د جوارو دانې په جلاء، جلاء ځايونو کې کېښيږدي او يو بل زده کوونکی دې وغواړي او هغه ته دې ووايي چې د جمعې حاصل يا د ځوابونو شمير پيدا کړه، ښاغلی ښوونکی دې پاملرنه وکړي چې زده کوونکي د مخکنۍ لارښوونې سره سم چې د لوبيا په دانو کې ورته شوی ده کار کوي او که نه؟
له هغه پرته د لوبيا له يو ځای کيدو سره دې سم، فعاليت سرته ورسوي، په همدی ډول دې لرګوټې په دريو ځايونو کې کېښيږدي او يوه زده کوونکي ته دې ووايي چې هغه سره جمع کړي، ښاغلی ښوونکی دې دا فعاليتونه په ۴۵ دقيقو کې سرته ورسوي.

**۲– مشق او تمرين:**
ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۲۳) مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې په دري طريقو سره حل شوی ده، او د هغو د جمعې حاصل په دريو سره حالتونو کې عيني شئ ده لومړی دې په عملی توګه کار وکړي بيا دې

د هغو د رياضي عمليه د زده کوونکو په واسطه کار وشي او حل دې شي او هم زده کوونکي دې په ۳ تنه ئيزو ګروپونو کې کار وکړي او هر يوه زده کوونکی ته دې يو قطی چې په هغه کې له (۱−۹) پورې کارتونه وی ورکړل شي، هر زده کوونکی دې له قطی څخه کارت را وباسي او نورو زده کوونکو ته دې وښيي

زده کوونکي عددې جمله په ۳ طريقو سره ليکي، لومړي په خپله خوښه د دوو عددونو د جمعې حاصل پيدا کوي او بيا هغه لاس ته راغلی حاصل له دريم عدد سره جمع کوي او د جمعې حاصل پيدا کوي.

زده کوونکي دې په ۳ ګروپونو وويشل شي هغه پوښتنې چې د کتاب په پای کې د کورنۍ دندې په توګه ورکړل شوي دي په هغوی دې وويشل شي. چې لومړی د دوو عددونو د جمعې حاصل پيدا کړی بيا دې لاس ته راغلی حاصل له دريم عدد سره جمع کړي.

**۳− آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي وی چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندی پوښتني وکړي د ستونزو په شتوالی سره دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

− څوک وايي چې د دريو عددونو په جمع کولو کې لومړی کوم دوه عددونه جمع کوي؟

− څوک وايي که چيري لومړی دريم او دويم جز يو له بله سره جمع کړو او بيا د هغو حاصل له لومړی جز سره جمع کړو پوښتنه صحيح حل شوی ده او که غلط؟

**مهارت:**

زده کوونکي لاندې پوښتني په دريو طريقو سره حل کړای شي.

| | |
|---|---|
| ۴ | ۵ |
| ۵ | ٦ |
| + ۸ | + ۱ |

زده کوونکي دې د۳ عددونو، عددي جمله وليکي لومړی په زړه پورې ددوو غوښتل شوئ عددونو مجموعه پيداکوي وروسته دحاصل شوي عدد، عددي جمله له دريم عدد سره ليکي او د هغوی د جمعې حاصل پيداکوي.

**کورنۍ دنده:**

د دې لاندې عددونو د جمعې حاصل پيداکړئ او هغه عددونه چې لومړی يې جمع کوئ د هغوی په شاوخوا دايره وکاږئ.

۱−

۲۴ ، ۳۲ → ۵۶ ؛ + ۱۲ ؛ ۹۶ | ۵۶ + ۱۲ = ۹۶

۱۷ ، ۳۱ → ۴۸ ؛ + ۵۱ ؛ ۹۹ | ۴۸ + ۵۱ = ۹۹

۵۱ ، ۱۶ → ۱۰ ؛ + ۲۲ ؛ ۸۹ | ۱۰ + ۲۲ = ۸۹

۴۲ ، ۲۲ ، ۳۲ → ۷۴ ؛ ۹۶ | ۷۴ + ۲۲ = ۹۶

۰ ، ۲۴ → ۲۴ ؛ + ۳۵ ؛ ۵۹ | ۲۴ + ۳۵ = ۵۹

۱۵ ، ۳۳ → ۴۸ ؛ + ۲۱ ؛ ۶۹ | ۴۸ + ۲۱ = ۶۹

۲−

۲۱ + ۱۲ + ۲۳ = ۵۶ → ۳۳ + ۲۳ = ۵۶

۱۲ + ۲۵ + ۳۱ = ۶۸ → ۱۲ + ۵۶ = ۶۸

۲۴

**ذهنيت:**

زده کوونکی د دې پوهه په اخستلو سره په خپل نفس اعتماد پيدا کوي خوښی کوی د مرستی فکر ورسره پيدا کيږی او خپل فعاليتونه په ګډه سره سرته رسوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې پوهی، او مهارت په درلودلو سره په خپل ورځنی ژوند کې کار ورڅخه اخلي.

**۴− کورنۍ دنده:**

زده کوونکي په دريو ګروپونو باندې وويشی د ۲۴ مخ پوښتنې چې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوی دي په هغو دې وويشل شي. سبا ته دې په دري طريقو سره حل او له ځانو سره دې راوړي.

ښاغلي ښوونکی د مشق، تمرين او کورنۍ دنده دواړه په ۴۵ دقيقو کې سرته ورسوي.

# عنوان: تفریق

**دیارلسم لوست، (۲۵) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**موخه:** د تفریق د عملیې د اجراء کولو تقویت (د ګروپونو جلاء کول).

**اصطلاح ګانې:** تقویت، تفریق، پاتې شوی، د تفریق حاصل یا فرق.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د شمیرلو وړ ساده شیان او نور د چاپېریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکی په ګروپونو باندې وویشي د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي ترڅو په خپله زده کوونکي اشتباه ګانې او غلطۍ ګانې پیدا کړي او په خپل منځ کې دې د اشتباه ګانو او غلطۍ ګانو په برخه کې په آزاده توګه بحث او خبرې وکړي ښاغلی ښوونکی دې پام وکړي که چیرې هغوی په خپل بحث او خبرو کې صحیح ځواب ونشي ویلای، صحیح ځواب دې ورته ووایې او بیا دې له زده کوونکو څخه داسې پوښتنې وکړي:

– له لومړي ګروپ څخه زلمیه: کولای شي چې دري عددونه یو له بله سره جمع کړي؟ هو

– له دویم ګروپ څخه محمود: دري عددونه په څو طریقو یو له بله سره جمع کولای شي؟ په دریو طریقو.

– له دریم ګروپ څخه احمد: که چیرې دري عددونه په دري طریقو یو له بله سره جمع شي د جمعې په حاصل کې کوم فرق لیدل کیږي؟ نه.

– ښاغلی ښوونکی دې ۹ دانې لرګوټي یوه زده کوونکي ته ورکړي. کله چې زده کوونکي لرګوټي په خپل لاس کې واخیستل، هغه ته دې ووایي، له همدې ۹ دانو لرګوټو څخه یوازې ۳ دانې لرګوټي بیرته ماته راکړه. کله چې لرګوټي یې ښاغلي ښوونکي ته ورکړل شول بیا دې له نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي، اوس د نوموړي زده

**دیارلسم لوست**

**تفریق**

هدف: د تفریق د عملیې د اجراء کولو تقویت (د همجنسو ګروپونو جلاء کول).

له شکلونو څخه کار واخلئ ګروپونه جلا کړئ او عددي جملې یې ولیکئ د مثال په توګه په یوه ونه کې ۸ چوغکې دي له



هغې ونې ۲ چوغکې والوتلې اوس په ونه کې څو چوغکې پاتې شوي؟ ۸ − ۲ = ۶

اوس لیدل کیږي چې په ونه کې ۶ چوغکې پاتې دي چې دا ۶ د فرق یا د تفریق د حاصل په نامه یادیږي.

تمرین:

۱– له یوه ساتونکي سره ۱۵ بایسکلونه شته دي. ۹ بایسکلونه خپلو خاوندانو یوورل څو بایسکلونه پاتې دي؟

۱۵ − ۹ = ۶ بایسکلونه

۲– ۱۸ د پنسل قلمونه په میز باندې پراته دي. ۸ پنسلونه یې زده کوونکو واخیستل څو پنسلونه پاتې کیږي؟

۱۸ − ۸ = ۱۰ پنسلونه

۲۵

کوونکي په لاس کې څو دانې لرګوټي دي، هغوی یې شمیري او وایي، ۶ دانې لرګوټي، ولې ۶ دانې لرګوټي دي؟

هغو به ځواب ورکړي، ۹ دانې لرګوټي وه چې له هغو څخه یې ۳ دانې لرګوټي تاسو ته درکړل. په همدې ډول د ۱۵ په شمیر وړې ډبرې دې زلمي ته ورکړي. او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي چې د زلمي سره څو دانې وړې ډبرې دي. هغوی وایي ۱۵ وړې ډبرې دي او زلمي ته دې ووایې چې له دې ۱۵ وړو ډبرو څخه ۵ دانې وړې ډبرې خپل یوه ټولګیوال ته ورکړه. هغه ۵ دانې وړې ډبرې خپل ټولګیوال ته ورکوي ښاغلی ښوونکی دې له نورو زده کوونکو څخه وپوښتي، چې اوس د زلمي سره څو دانې وړې ډبرې دي؟

هغوی به ځواب ورکړي ۱۰ دانې وړې ډبرې. ولې ۱۰ دانې وړې ډبرې دي ۵ دانې یې خپل ټولګیوال ته ورکړې نو له هغه سره ۱۰ دانې پاتې شوې. دویم واري له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي دا چې له ۹ دانو لرګوټو

څخه ۳ دانې ماته راکړل ٦ لرګوټي پاتې شول، او یا زلمی ۱۵ دانې وړې ډېري درلودی ۵ دانې یې خپل ټولګیوال ته ورکړې ۱۰ دانې وړې ډېرې ورسره پاتې شوې، دا هر یوه عملیه په څه نامه یادیږي؟
که چیرې زده کوونکو وویلای شي ښه به شي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایې چې دې عملیې ته د تفریق عملیه وایي. یعنی که چیرې تاسو له ۱۲ افغانیو څخه ٦ افغاني کمی یا لږ کړئ په حقیقت ي د تفریق عملیه مو سرته رسولې ده.

**۲– مشق او تمرین:**
ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۲۵) مخ ته راوګرزوي په هغه شکل کې چې د الوتکو شمیر معلومیږي او له هغو څخه ۲ دانې الوتلی یا جلاء شوي دي او مثال دې زده کوونکو ته حل او تشریح کړي د ٦ = ۲ –۸ په عملیه کې دې زده کوونکو ته داسې ووایې، کله چې ۲ دانې والوتلې لیدل کیږي چې په ونه کې ٦ دانې نورې پاتې دي چې ٦ د تفریق د حاصل یا فرق په نامه یادیږي. او زده کوونکو ته دې ووایې د (۱) او (۲) ګڼې عبارتې پوښتنې ولولې او حل یې کړئ تاسو هریو د تفریق حاصل خپل ټولګیوالو ته اعلان کړئ که چیرې ستونزې مو درلودلې له هغه چاپیریال مواد څخه چې په لاس کې لرې کار واخلئ او په عملې توګه عملیه سرته ورسوئ.

**۳– آرزونه:**
د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د ۳=۳–٦ عملیه د کومې عملیې په نامه یادیږي؟

– څوک وایې چې د ۵=۲–۷ په عملیه کې د ۵ عدد په څه نامه یادیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي لاندې پوښتنې ولولې او حل یې کړای شئ.

– زه ۱٦ افغانۍ لرم په ۸ افغانۍ مې قلم او کتابچه را ونیول څو افغانۍ راسره پاتې دي؟

_____ = _____ – _____

۳٦ – ۱۴ = ?

**ذهنیت:**

د تفریق د عملیې په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومې خوښې ښکاره کوي د مسئلو په حل کې له نورو سره مرسته کوي.

**ارزښت:**

د تفریق د دې عملیې په پوهیدو سره زده کوونکی د تل لپاره په خپل ورځنی معاملو او ژوند کې کار اخلي.
مثلاً: که چیرې څوک یوه زده کوونکی ته ووایې چې ۳۸ چرګان مې درلودل ۱۳ یې مړه شول. څو چرګان پاتې دې؟ هغه ورته وایې چې ۲۵ چرګان.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی لاندې پوښتنې حل او سبا ته یې راوړي.

۲٦ – ۱۴ = ? ، ۲۳ – ۱۱ =?

۱۴ – ☐ = ۷ ، ۱٦ – ☐ = ۸

## عنوان: تفریق

**(۲٦) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف (موخه):** د تفریق د عملیې د اجراء کولو تقویت (د ګروپونو جلا کول).

**اصطلاح ګانې:** تفریق، پاتې، فرق، تقویت.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، قلمونه، زده کوونکي او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشي داسې چې هر ګروپ خپلې کورنۍ دندې په ګډه سره په خپل ګروپونو کې کار وکړي. په هر ګروپ کې دې هر یو د خپل ملګري اشتباه ګانې او غلطۍ ګانې پیدا کړي او ښاغلی ښوونکی ته دې ووايي، ښاغلی ښوونکی دې هغه د درې په مخ باندې فهرست کړي.

او اجازه دې ورکړي چې په خپله زده کوونکي صحیح ځوابونه پیدا کړي، د اشتباه په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی مرسته او لارښوونه وکړي بیا دې په ګروپي توګه لاندې پوښتنې وکړي.

**لومړی ګروپ:** ستاسو د ګروپ شمیر لس تنه دي، که چیرې په تاسو کې دوو تنو اشتباه کړي وي څو تنو مو پوښتنې صحیح حل کړي دي؟ ۸ تنو

**دویم ګروپ:** پرون ستاسو د ګروپ شمیر ۱۲ تنه وه او نن ۲ تنه ناسوب دي اوس څو تنه یاست؟ ۱۰ تنه

**دریم ګروپ:** ستاسو د ګروپ شمیر ۱۴ تنه او د دویم ګروپ شمیر ۱۰ تنه دي تاسو له دویم ګروپ څخه څو تنه زیات یاست؟ ۴ تنه

– ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکی د ټولګی مخې ته راوغواړي او هغه ته دې د ۲۵ دانو په شمیر لرګوټي ورکړي او ورته دې وايي چې له دې لرګوټو څخه ۱۴ دانې لرې یا کم کړه کله چې زده کوونکی له ۲۵ دانو

۳– ۲۵ هلکان مسابقه لري ۱۴ تنو یې تفریح وکړه څو تنه یې دمسابقي په حالت کې دي؟

هلکان ــ۱۱ــ = ــ۱۴ــ _ ــ۲۵ــ

۴– د لاندې پوښتنو په تشو ځایونوکې د <، > یا = مناسبه نښه ولیکئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۲۵ − ۱۱ | < | ۲۸ − ۷ | ۳۸ − ۱۴ | > | ۱۵ − ۰ |
| ۴۴ − ۲۳ | > | ۵۵ − ۴۱ | ۵۱ − ۳۰ | > | ۲۷ − ۱٦ |
| ٦۰ − ۳۰ | = | ۷۰ − ۴۰ | ۳۲ − ۲۲ | < | ۴۷ − ۱۵ |

**کورنۍ دنده:**

لاندې پوښتنې تفریق کړئ.

۱ – ۱۶ − ۷ = ــ۹ــ ۲ – ۲۳ − ۹ = ــ۱۴ــ

۲ – ۲۸ − ــ۱۵ــ = ۱۳ ۴ – ــ۲۲ــ − ۹ = ۱۳

۵ – د عبارتي پوښتنې یوه کیسه جوړه کړئ او د هغې عددي افاده ولیکئ.

احمد د ورى په لومړۍ ورځ په خپل بڼ کی ۵٦ نیالګي کینول اوله هغه څخه ۱٦ نیالګي د اوبو د لږوالی له امله وچ شوي دي د احمد د نیالګیو څخه څو نیالګي په بڼ کی شنه شوي دي ؟

**حل:** ۵٦ − ۱٦ = ۴۰

۲۶

لرګوټو څخه ۱۴ دانې لرګوټي لرې یا کم کړل هغه ته دې ووايي چې اوس له تا سره څو دانې لرګوټي دي، هغه لرګوټي شمیرى او ځواب ورکوي ۱۱ دانې لرګوټي، بیا دې یوه بل زده کوونکي ته ووايي چې راشه د دې فعالیت د ریاضي افاده یا عملیه په درې باندې ولیکه ښاغلی ښوونکی دې پام ورته وکړي چې زده کوونکي د ۱۱=۱۴-۲۵ عملیه په صحیح توګه لیکي، حل کوي او که نه؟ له هغه پرته مرسته او لارښوونه دې وکړي.

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې د ٦=٦-۱۲ افاده په دره باندې ولیکی او یو زده کوونکی دې راوغواړي او هغه ته دې هغه مواد چې ورسره شته ورکړي او هدایت دې ورته ورکړي چې دا افاده یا عملیه په موادو کې څه ډول تطبیق او یا حل کولای شي. که چیرې زده کوونکی له ۱۲ دانو قلمونو، یا کتابونو څخه ٦ یې لرې یا کم کړل او ووايي چې ٦ پاتې دي نو زده کوونکی دې په ښو کلمو سره تشویق شي. له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې مرسته ورسره وکړي.

**۲− مشق او تمرین:**

د زده کوونکو پام دې د کتاب (۲٦) مخ ته راوګرزول شي، ۳ ګڼه پوښتنه دی د یوه زده کوونکی په واسطه ولوستل شي، د پوښتنې د عبارت مفهوم دې د بل زده کوونکی په واسطه تشریح شي او بیا دې د دریم زده کوونکي په واسطه حل شي. باید ووایې چې څو تنه د توپ د لوبې د مسابقې په حال کې دي؟ د دې مخ (۴) پوښتنه چې ټوله (٦) پوښتنې دی و هر ګروپ ته دې دوه، دوه پوښتنې ورکړل شي چې هغوی له حل کولو وروسته په تش ځایونو کې د <، > او یا = نښو څخه یوه مناسبه نښه ولیکي. او له حل کولو وروسته ګروپونه خپل فعالیتونه یو له بل سره ګډ کړي په دې برخه کې خبري او مذاکري وکړي ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه کوي.

**۳− آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو د شتوالی په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

− څوک وایې چې د ۵=۳−۸ په افادې کې پاتې شوي عدد کوم یو دئ؟

− څوک د ۳=۲−۵ افادې لپاره یو عبارت جوړوي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړاي شي لاندې پوښتنې حل کړي د <، > او یا = نښې په مناسب ځایونو کې ولیکي.

۴ − ۲۸ ☐ ۵ − ۲۷

۴ + ۱۴ ☐ ۲ + ۱٦

٦ − ۲٦ ☐ ۵ − ۳٦

**ذهنیت:**

د دې عملیې په پوهیدو سره زده کوونکي په خپل نفس باور پیدا کوي او په بشپړ ډاډ سره به له نورو سره مرسته وکړي.

**ارزښت:**

زده کوونکي کولای شي د ورځني ژوند په معاملو کې کار ورڅخه واخلي د مثال په توګه هغوی د لاندې د تفریق د عملیې په ارزښت پوهیږي (یوه زده کوونکی ته ۱۰ افغانۍ ورکړل کیږی ترڅو د ٦ افغانیو په بیه سره یوه ډوډې را ونیسي. نو زده کوونکی نور ۴ افغانې له ډوډی پخوونکي څخه غوښتنه کوي).

**۴− کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی د کتاب په (۲٦) مخ کې ۵ پوښتنې د کورنۍ دندې په توګه په نظر کې نیول شوي دي (۱، ۲) ګڼې پوښتنې دې لومړی ګروپ ته، (۳، ۴) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته ورکړل شي چې حل یې کړي او دریم ګروپ ته دې هدایت ورکړي چې یوه عبارتې پوښتنه جوړ او د هغه عددې افاده ولیکی او حل یې کړي.

## عنوان: د تفریق عبارتې پوښتنې

**څوارلسم لوست، (۲۷) مخ**
**وخت: دوساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**موخه:** زده کوونکي له کیسو او عبارتونو څخه مفهوم واخستلای شي او د هغو د ریاضې افادې ولیکي.
**اصطلاح ګانې:** عبارتونه، مفهوم، تفریق.
**د لوست مرستندوی مواد:** د شمیرلو وړ ساده شیان او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی څرنګه چې زده کوونکي په تیره ورځ په دري ګروپونو ویشل شوي دي. هر ګروپ دې د یو بل کورنی دندې وګوري د هر یوه ګروپ اشتباه ګانې دې د بل ګروپ په واسطه وویل شي او په دړه باندې دې فهرست شي. کوشش دې وشي ترڅو له زده کوونکو څخه صحیح ځوابونه واوریدل شي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړه باندې تشریح او څرګند کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې یوه عبارتي پوښتنه لکه:

یو ګندونکی په یوه ورځ کې ۸ جوړې کالي ګندي چې له هغو څخه یې دري جوړې کالي خپلو خاوندانو ته ورکړل. اوس له لومړی ګروپ څخه څوک ویلای شي؟ چې له ګندونکی سره څو جوړې کالی پاتې دي؟ بیا دې له هم هغه ګروپ څخه یو داوطلب زده کوونکی راوغواړي ترڅو د ریاضی افاده یې په دړه باندې ولیکي او حل یې کړي که چیرې زده کوونکی له ستونزو سره مخامخ شي مرسته او لارښوونه دې ورته وشي.

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې د ۶ = ۳ – ۹ افاده په دړه باندې ولیکي.

– ښاغلی ښوونکی دې له دویم ګروپ څخه وغواړي ترڅو د دې افادې لپاره یو عبارت جوړ کړي ښایي چې زده کوونکي مختلف عبارتونه جوړ کړي. کله چې زده کوونکو صحیح عبارتونه جوړ کړل هغوی دې په ښو او

### څوارلسم لوست

### د تفریق عبارتي پوښتنې

هدف: زده کوونکي دې له کیسو او عبارت څخه مفهوم واخستلای شي او هم درياضي افاده وليکلای شي.

عبارتي پوښتنې ولولئ او حل یې کړئ اوپه ګډه کار وکړئ.

۱. په لمړي مېز باندې ۱۷ قلمونه دي په دوهم مېز باندې ۱۴ قلمونه دي.

په لمړي میزباندی څو دانې قلمونه زیات دي.

___۳___ قلمونه

۲. په لمړۍ الماری کې ۲۶ کاچوغې شته او په دوهمه الماری کې ۱۵ په شمېر کاچوغې شته.

په لمړۍ الماری کې څو دانې کاچوغې زیاتې شتوالی لري.

___۱۱___ کاچوغې زیاتې دي.

**عددي جملې یې ولیکئ او حل یې کړئ.**

مثال: حمید ۳۹ کوترې او جمیلې ۲۵ کوترې لیدلې دي.

حمید څو کوترې زیاتې لیدلې دي؟

کوترې ۱۴ = ۲۵ – ۳۹

۱. حمید ۳۸ دانې منې او زرغونه ۱۳ دانې منې لري

حمید څو دانې منې زیاتې لري؟

منې ___۲۵___ = ___۱۳___ – ___۳۸___

۲. ملالۍ ۲۰ چوغکې او ګلالۍ ۱۶ چوغکې لیدلې دي.

ملالۍ څو چوغکې زیاتې لیدلې دي؟

چوغکې ___۴___ = ___۱۶___ – ___۲۰___

۲۷

هڅوونکو کلمو وهڅول شي.

– ښاغلی ښوونکی دې د دریم ګروپ زده کوونکو ته هدایت ورکړي. ترڅو هغوی هر یو، یو عبارت جوړ کړي او هم د اړوند پوښتنې د ریاضي افاده یې ترتیب او حل کړی. که چیرې کوم یو زده کوونکی ستونزې ولري، د هم هغه ګروپ یوه زده کوونکی ته دې دنده ورکړي ترڅو مرسته ورسره وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې دویم واري زده کوونکي په څلورو ګروپونو وویشی. او بیا دې د زده کوونکو پام د کتاب (۲۷) مخ ته راوګرزوي. په دې صورت کې دې د عبارتې لومړی پوښتنه لومړی ګروپ ته، او د عبارتي دویم پوښتنه دې دویم ګروپ ته او همدارنګه د مخ د پای لومړی پوښتنه دې دریم ګروپ ته، او دویم پوښتنه دې څلورم ګروپ ته ورکړي. ترڅو د هغوی په واسطه ولوستل شي.

او په لوستلو کې مهارت پیدا کړي او بیا پوښتنې حل کړي. او هغه تش ځایونه چې د هری پوښتنې د ځواب

لپاره ورکړل شوي دي ډک کړي. باید وویل شي چې د کاچوغو، پنجو، چړو، منو، چوغکو په ځای د چاپیریال له موادو څخه کار واخستل شي.

**۳– آرزونه:**

ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان د ډاډېني لپاره، د پوهې او مهارت لاندې پوښتنې وکړي او صحیح ځواب دې په لاس راوړي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې د صحیح ځواب د پیدا کولو لپاره له هغو سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

– څوک د تفریق د عملیې لپاره یوه عبارتي پوښتنه وایې؟

– څوک د ۸ = ۵ – ۱۳ افادې لپاره یو عبارت جوړه وي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د لاندې عبارت لپاره د ریاضي یوه افاده ولیکی:

له ۱۳ چوغکو څخه ۵ چوغکي والوتلي اوس څو چوغکی پاتې دي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي د پورته پوهې او مهارت په پیدا کولو سره په خپل ځان باور پیدا کوي او خوښې ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د پورته پوهي او مهارت څخه په ورځنی ژوند کې کار اخلي لکه:

زده کوونکي د یوی کتابچې رانیولو لپاره بازار ته ځي په داسې حال کې چې له ځان سره ۲۰ افغانی لري او په ۱۵ افغانیو یوه کتابچه رانیسی. او خپل ۵ پاتې افغانی له هټیوال څخه بیرته غواړي او هغه له دې عملیې څه کار اخلي.

۵ = ۱۵ – ۲۰

**۴– کورنی دنده:**

ښاغلی ښوونکی هر یو زده کوونکی دې د ۴ = ۱۳ – ۱۷ او همدارنګه د ۵ = ٦ – ۱۱ افادو لپاره یو، یو عبارت یا کیسه جوړه کړي او له ځان سره دې راوړي.

## عنوان: عبارتي پوښتنې

**ځوارلسم لوست، (۲۷) مخ**
**وخت: ۴۵ دقيقې**

**موخه:** زده کوونکي وکړای شي کيسې او عبارت په روان توګه ولولي او له هغو څخه مفهوم واخستلای شي او هم د رياضي افاده يې وليکي.
**اصطلاح ګانې:** عبارتي، تفريق، مفهوم.
**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټې، د لوبيا دانې او نور د چاپيريال مواد.

**۱ – فعاليتونه:**
– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې وکتل شي، په رښتيا، دهدايت سره سم پوښتنې حل شوي دي او که نه؟ که چيرې غلطي او اشتباه صورت نيولې وي يا منځ ته راغلئ وي په خپله زده کوونکي دې په غلطی او اشتباه ګانو باندې په آزاده توګه خبري او مذاکري وکړي ترڅو زده کوونکي وکړای شي صحيح ځوابونه پيدا کړي. او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې مرسته ورسره وکړئ پوښتنې دې حل کړي. او بيا دې په انفرادي توګه له زده کوونکو څخه په لاندې توګه پوښتنې وکړي.
له لومړی ګروپ څخه احمده که چيری د چرګی ۱۴ هګۍ له بازار څخه را ونيسې او له هغه څخه ۴ هګۍ ماتې شي ويلای شي چې کورته دې د چرګی څو دانې هګی راوړي دي؟ احمد دې د ټولګی مخې ته راشي د لوبيا د دانو په واسطه دې په عملي توګه خپل ټولګيوالو ته وښيي.
له دويم ګروپ څخه: زلمی دې د ☐ = ۱۰ – ۱۲ افاده د لرګوټو په واسطه حل کړي. او په عملي توګه دې وښيي او بيا دې په دړه باندې حل کړي ځواب دې په لاس راوړي.
له دريم ګروپ څخه: صابره د لومړی ګروپ د پوښتنې د رياضي افاده په دړه باندې وليکه او حل يې کړه.

د خپل ګروپ سره کار وکړئ. له وړو تيرو يا عددي خط څخه کار واخلئ.

۱– لطيفې ۱۰ پنسلونه په کوټه کې کېښودل او يوشمېر پنسلونه نورهم په کوټه کې وو. چې ټول ۱۲ پنسلونه کېږي وواياست چې مخ کې په کوټې کې څو پنسلونه وو؟
۲ پنسلونه

۲– ننګيالي د اوبو ۱۳ جکونه کورته راوړل. چې په کور کې ټول د اوبو ۱۶ جکونه شول وواياست چې ترمخه په کورکې څو جکونه و؟
۳ جکونه

۳– خالد ۵ دانې شيريني لري او سليمه ۳ دانې شيريني، خالد څو دانې شيريني ګانې سليمې ته ورکړې اوس د هغوی ددواړود شيريني ګانو شمېر مساوي دی وواياست چې خالد به څو دانې شريني ګانې سليمې ته ورکړې وي.
۱ دانې شريني ګانې

۴– د ځمکې په مخ ۴ سطله دي هر سطل ۱۲ دانې ډېرې لري وواياست چې په هغه ځای کې سطلونه ډېر دي اوکه ډېرې؟
ډېري ډېری دي

**کورنۍ دنده:**
که چېرې د نن ورځې کار مو، ترسره نه کړای شو کار په کور کې سرته ورسوئ.

۲۸

**۲ – مشق او تمرين:**
ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۲۸) مخې ته راوګرزوئ. او زده کوونکو ته هدايت ورکړئ ترڅو پوښتنې د لرونکو موادو په واسطه (لوبيا، لرګوټې) په کار اخستنې سره حل کړي داسې چې (۱ او ۲) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ ته، (۳ او ۴) ګڼې پوښتنې دويم ګروپ ته او همدارنګه (۵) پوښتنه دريم ګروپ ته ورکړي. ترڅو په ټولګۍ کې حل او کار ورباندې وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو د جريان څارنه کوي.

**۳ – آرزونه:**
د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وپوښتي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې آیا کولای شو له قلمونو څخه کتابونه تفریق کړو؟

– څوک وایې چې له پنسلونو څخه پنسلونه تفریق کولای شو؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل او تش ځایونه ډک کړي.

۸ بایسکل = □ – ۱۵ بایسکل

□ کاچوغې = ٦ کاچوغې – ١٦ کاچوغې

۵ بکسونه = ۹ بکسونه – □ بکسونه

**ذهنیت:**

په روانه توګه د عبارتې پوښتنو لوستل او د هغو په مفهوم باندې پوهیدل زده کوونکی په خپل ځان باور پیدا کوي خوښی او رضایت ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د عبارت او کیسو څخه په مفهوم اخستلو سره د ژوندانه په ورځنې معاملو کې کار اخلي هغوی د دوه هم جنس شیان یو له بله تفریق کوي او د غیر هم جنس شیانو د تفریق کولو څخه ډډه کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

– زده کوونکي دې پوښتنې په خپلو کتابچو کې ولیکي له پرتله کولو وروسته دې د (<، > و =) مناسبه نښه په تش ځای کې ولیکي.

۸– ۲۸ □ ۵ – ۲۵

۴ + ۲۴ □ ۱۲ – ۳۷

– په یوه بن کې د منو ۱۴ ونې دي. د هغو ۵ ونې د وچ کالي په نسبت وچې شوې دي په بن کې د منو څو ونې پاتې دي؟

# عنوان: د جمعې او تفریق تر منځ اړیکی

**پنځلسم لوست، (۲۹ ،۳۰) مخونه**
**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**موخه:** زده کوونکي پوه شي که چیری د جمعې له حاصل څخه د جمعې یو جزء تفریق کړو د جمعې بل جزء حاصلیږی. او که چیری د تفریق حاصل له مفروق سره جمع کړو مفروق منه راکوي.

**اصطلاح ګاني:** اړیکی، د جمعې حاصل، د جمعې جزء د تفریق حاصل، مفروق، مفروق منه.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لوبیا داني، د جوارو داني، قلمونه او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه ولیدل شي هر هغه غلطې او اشتباه ګانې چې د ګروپ په واسطه په ګوته کیږي د دړي په مخ دې ولیکل شي. کوشش دې وشي هره غلطی او اشتباه چې د هر ګروپ په واسطه په ګوته شوي ده. صحیح ځوابونه دې په خپله هم هغه ګروپ ووایې. او له هغه پرته ښوونکی دې صحیح ځوابونه زده کوونکو ته تشریح کړي او بیا دې لاندې پوښتنې وکړي:

له لومړی ګروپ څخه: احمد دې داسې یوه عبارتې پوښتنه ترتیب کړی چې د ٦ = ٢ – ٨ د افادې مفهوم په کې بیان شي. که چیری احمد عبارتې پوښتنه جوړ کړای شي ښه به شي او له هغه پرته د لومړی ګروپ له بل زده کوونکي څخه دې غوښتنه وشي.

له دویم ګروپ څخه: یاسینه ۹ = □ – ١٦ پوښتنه د موادو په واسطه څرنګه حل کولای شي. که چیری یاسین یې حل کړای شي ښه به وي او له هغه پرته د دویم ګروپ د یوه داوطلب زده کوونکی څخه دې غوښتنه وشي چې حل یې کړي او د قناعت وړ وګرزي.

له دریم ګروپ څخه: زلمی که چیری په میز باندې ۱۷ قلمونه د پنسل وي او له هغو څخه زده کوونکي ۹ قلمونه واخلي څو قلمونه د پسنل پاتې کیږي؟ که چیري زلمي یې حل کړی ښه به وي، او له هغه پرته له یوه بل زده کوونکی څخه دې پوښتنه وشي.

پنځلسم لوست

د جمعې او تفریق تر منځ اړیکي

هدف: زده کوونکي دې پوه شي که چېرې د جمعې له حاصل څخه د جمعې یوجز تفریق کړو د جمعې بل جز حاصلیږي اوکه چېرې د تفریق حاصل له مفروق سره جمع کړو مفروق منه راکوي.

تاسو پوهیږئ چې جمع اوتفریق یوله بله سر ه اړیکي لري لاندې مثال ته پاملرنه وکړئ. مثال:

تاسو۳ کتابونه لرئ ۴ کتابونه مو نور را ونیول اوس تاسو څو کتابونه لرئ؟

حل: ۷ کتابونه = ۳ + ۴

تاسو ۴ کتابونه لرئ ۳ کتابونه مو نور را ونیول ټول څو کتابونه لرئ؟

۷ کتابونه = ۴ + ۳

په همدې ډول که چېرې تاسو ۷ کتابونه ولرئ او ۳ کتابونه خپل ملګري ته ورکړئ اوس به تاسو څو کتابونه ولرئ؟ ۴ کتابونه = ۳ – ۷

اوس تاسو ۷ کتابونه لرئ او ۴ کتابونه موخپل ملګري ته ورکړل اوس تاسو څو کتابونه لرئ؟ ۳ کتابونه = ۴ – ۷

تاسو د جمعې او تفریق د دوو عملیو په سرته رسولو سره ددواړو عملیو ترمنځ اړیکي وپیژندلې څرنګه چې ۷=۴+۳ د جمعې یوه عملیه ده او ۳=۴–۷ د تفریق یوه عملیه ده. چې په حقیقت کې د جمعې له حاصل څخه د جمعې یوجز تفریق شو او د جمعې بل جز لاس ته راغلی دی.

۲۹

– ښاغلی ښوونکی دې ۵ دانې لرګوټې په یوه ځای کې او ۴ دانې لرګوټې دې په بل ځای کې کښیږدي.



او یو زده کوونکی دې د ټولګی مخې ته راوغواړي او هدایت دې ورته ورکړي چې لرګوټې یو له بل سره یو ځای کړي او ویې شمیری. کله چې زده کوونکی هغه سره یوځای کړل او ویې شمیرل وایې چې ۹ دانې لرګوټې دي. بیا ورته ووایه چې د هغه د ریاضی افاده ولیکه ښایې چې هغه ۹ = ۴ + ۵ ولیکي. بیا دې له یوه بل زده کوونکی څخه غوښتنه وشي چې راشي له دې ۹ دانو لرګوټو څخه ۵ دانې یې کمې کړي. زده کوونکی راځي له هغه څخه ۵ دانې لرګوټې اخلي او لرئ کوي. پوښتنه دې وشي څو دانې یې پاتې دي؟



لرګوټې وینی او شمیري بیا ځواب وایې ۴ دانې لرګوټې پاتې دي. او ورته ودې ویل شي اوس د هغه د ریاضی افاده ولیکه ښایې چې هغه ۴ = ۵ – ۹ ولیکي.

په همدې ډول یو دریم زده کوونکی دې راغوښتل شي او هدایت دې ورته ورکړي چې له دې ۹ دانو لرګوټو څخه

۴ دانې يې کم کړه، زده کوونکی راځي ۴ دانې لرګوټي کموي، او لرئ کوي.



کله چې زده کوونکی دا کار سرته ورسوي هغه ته دې وويل شي چې د رياضی افاده يې وليکه هغه د ۵=۴−۹ افاده ليکي.

په همدې ډول د لوبيا او جوارو په واسطه نور فعاليتونه سرته ورسوي ترڅو ټول زده کوونکی برخه واخلي. او له زده کوونکو څخه دې وپوښتي تاسو چې د جمعې او تفريق دا عمليې سرته ورسولي د هغو تر منځ مو کومه رابطه پيدا کړه؟ که چيرې زده کوونکو وويل، ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې داسې ورته تشريح کړي.

تاسو وليدل چې ۹ = ۴ + ۵ شول بيا يو واري ۵ له ۹ څخه تفريق شول چې ۴ يې د تفريق حاصل شول او دويم واري د ۴ رقم له ۹ څخه تفريق شول چې د تفريق حاصل يې ۵ شول. تاسو مخ کې لوستلي دي او ورباندې پوهيږې چې ۴ او ۵ دواړه د جمعې اجزاوې، او ۹ د جمعې حاصل ده. دلته مو وليدل چې يوواري د جمعې لومړی جزء تفريق شو، دويم جزء په لاس راغلی او بل واري د جمعې دويم جزء تفريق شو چې د جمعې لومړی جزء په لاس راغی.

**۲− مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۲۹) مخ ته راوګرزوي. د کتاب حل شوي مثال چې د جمعې او تفريق تر منځ اړيکی دي تشريح کړي. ترڅو زده کوونکي په موضوع باندې ښه پوه شي چې د شيانو او چاپيريال موادو په واسطه د دواړو عمليو ترمنځ اړيکی مشق او تمرين کړي ترڅو موضوع د زده کوونکو په ذهن کې ځای ونيسی. او بيا دې زده کوونکي په دري ګروپونو وويشي د (۲۹) مخ د نظر وړ پوښتنې دې د هغو تر منځ وويشل شي ترڅو په خپله زده کوونکی عددې جمله وليکی په داسې حال کې چې (۱، ۲) ګڼې پوښتنې دې لومړی ګروپ ته (۳) پوښتنه دې دويم ګروپ ته او (۴) پوښتنه دې دريم ګروپ ته ورکړل شي چې کار ورباندې وکړی او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جريان څارنه کوي.

**۳− ارزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی پوه شي چې خپل هدف ته رسيدلئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې د پوهی او مهارتې پوښتنې وکړي ترڅو قناعت يې حاصل شي.

**عددي جمله وليکئ اوهغه جمع، يا تفريق يې کړئ.**

۱− احمد ۵ منې درلودې او مريمې ۴ منې احمد ته ورکړې احمد ټولې خو منې لري؟

منې ۹ = ۴ + ۵

۲− احمد ا و مريمه ۹ منې لري، مريمې خپلې ۴ منې واخستلې له احمد سره څو منې پاتې دي.

منې ۵ = ۴ − ۹

۳− سارا ۱۳ بکسه واخيستل او ګلالۍ ۱۴ بکسه واخيستل هغوی ټول څو بکسونه اخيستي دي؟

بکسونه- ۲۷ = ۱۴ + ۱۳

۴− په کورکې ۲۷ بکسونو شتوالی درلود اوشريفې ۱۴ بکسونه له هغو څخه واخيستل، اوس څو بکسونه پاتې دي؟

بکسونه ۱۳ = ۱۴ − ۲۷

۳۰

**پوهه:**

− څوک وايې د ۲۸ = ۱۱ + ۱۷ په افاده کې د جمعې لومړی جزء، دويم جزء د جمعې حاصل کوم دي؟

− څوک وايې د ۲۸=۱۱+۱۷ او ۱۷=۱۱−۲۸ دوو افادو ترمنځ څه اړيکی شتوالی لري؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي د شيانو او چاپيريال موادو په واسطه د جمعې او تفريق دوو عمليو ترمنځ اړيکي د ۹ = ۴ − ۱۳ په افاده کې وښيې.

**ذهنيت:** زده کوونکی د پورتنې مهارت په اجراء کولو سره د جمعې او تفريق دوو عمليو ترمنځ اړيکو په پوهيدو سره خوشحاله کيږي، او روحاً تقويه کيږي.

**ارزښت:** زده کوونکي د جمعې او تفريق دوو عمليو ترمنځ اړيکو څخه په خپل ورځنی ژوند کې کار اخلي.

**۴− کورنۍ دنده:**

**الف:** شريف ۱۲ کورنۍ چرګان درلودل ۵ چرګان يې نور راونيول اوس هغه ټوله څو چرګان لري؟

**ب:** که چيرې شريف د خپل ټولو چرګانو څخه ۱۲ چرګان خپل تره ته ورکړي څو چرګان له هغه سره پاتې کيږي.

د پورتنيو دواړو پوښتنو تر منځ اړيکی څه شئ ده وواياست؟

# عنوان: د جفت او تاق عددونو پېژندنه

**شپاړسم لوست، (۳۱) مخ**
**وخت: ۴۵ دقيقې**

**موخه:** زده کوونکي بايد جفت او تاق عددونه وپيژني.
**اصطلاح گاني:** عددونه، جفت، تاق.
**د لوست مرستندوی مواد:** لرگوټي، قلمونه، کتاب، زده کوونکي او نور د چاپيريال مواد.

**۱ – فعاليتونه:**
– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنی دنده دې وکتل شي هغه چا چې پوښتنې صحيح او ټک حل کړي وي په ښو او تشويقي کلمو سره دې تشويق شي او هغه چا چې غلطي او اشتباه کړي وي په ډيره صميميت سره دې لارښوونه ورته وشي. او هر هغه چا چې خپله کورنی دنده راوړی نه ده. د نه راوړلو سبب دې وپوښتل شي، او تشويق دې شي چې په راتلونکې کې بی پروايئ ونکړي، بيا دې په وار سره له گروپونو څخه پوښتنې وشي.
له لومړي گروپ څخه: محمود دې ووايي د ۸=۳+۵ په افاده کې کوم يو يې د جمعې لومړی جزء کوم يې د جمعې دويم جزء او هم کوم يې د جمې حاصل ده؟
له دويم گروپ څخه: صابر که چيري د جمعې له حاصل څخه د جمعې لومړی جزء تفريق کړو، دجمعې کوم جزء د تفريق حاصل جوړوي؟
له دريم گروپ څخه: زلميه که چيرې د جمعې له حاصل څخه د جمعې دويم جزء تفريق کړو د جمعې کوم جزء د تفريق حاصل جوړوي؟
– ښاغلی ښوونکی دې په خپل ميز باندې ۴ ټوکه کتابونه کښيږدي، او ۴ تنه زده کوونکی دې د ټولگی مخې ته راوغواړي او ودې دروي، بيا دې زده کوونکو ته ووايې. تاسو هر يو، يو کتاب واخلئ، زده کوونکی هر يو يې، يو، يو کتاب اخلي، بيا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي، کوم زده کووونکی پاتي دئ چې کتاب يې اخستی نه وي. هغوی ځواب ورکوی نه، بيا دې وپوښتي، کوم

شپاړسم لوست

د جفت او تاق عددونو پېژندنه

هدف: زده کوونکي بايد جفت او تاق عددونه وپيژني.

د دې مخ ښي خواته ۴ دانې شمعې او ۴ پتنگان دي چې هر پتنگ ته يوه شمعه رسيږي. يوه شمعه اويو پتنگ يوه جوړه جوړوي. اويوه جوړه د۲ دعدد په واسطه ښودل کيږي نو د۲ عدد يو جفت عدد دی، دمخ کيڼې خواته ۳ پتنگه او۲ شمعې دي. څرنگه چې په شکلونو کې ليدل کېږي دوه پتنگه ددوو شمعو په شاوخوا څرخېږي او يو پتنگ يوازې پاته کېږي، دايو له بله سره مساوي نه دي (بشپړې جوړې نه جوړوي) نو د۳ عدد يو تاق عدد دي.



**د زده‌کوونکو فعاليت:** زده کوونکي دې جفت اوتاق عددونه د يو رقمي عددونو په واسطه لکه ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، او ۹ د جوړو په جوړولو سره لکه: يو زده کوونکی اويو کتاب، يو ز ده کوونکی يو قلم، يوقلم او يوه کتابچه، په ټولگي کې جفت اوتاق عددونه تشخيص اوتوپير کړاي شي.

۳۱

کتاب زيات پاتې دی. هغوی وايي نه ده پاتې.
په همدی ډول ٦ دانې لرگوټي دې د ټولگی مخې ته کښيږدي او يو زده کوونکی دې را وغواړي چې راشي له دې لرگوټو څخه دوه، دوه دانه ئيزه جوړې، جوړې کړي. زده کوونکی راځي د لرگوټو څخه جوړې، جوړه وي، بيا دې پوښتنه وکړي څو جوړې شوې هغه به ووايي ۳ جوړې، بيا دې وپوښتي کوم لرگوټی له جوړې پرته يعنی يوازې پاتې دئ، هغه ځواب ورکوي، نه دئ پاتې، د دويم واري لپاره دې ۵ دانې لرگوټي په خپل ميز باندې کښيږدي او له يو بل زده کوونکی څخه دې غوښتنه وکړي چې د مخ کې په ډول لرگوټي جوړې، جوړې کړه، هغه به لرگوټي جوړې کړي خو ويني چې يو لرگوټي بی جوړې يعنی يوازې پاتې دئ.
په همدې ډول ۸ زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته يو ځای ودروي. بيا دې هغوی ته هدايت ورکړي چې ۲، ۲ تنه سره جوړه شئ، کله چې جوړه شول، بيا دې له نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي آيا کوم يو تن بی جوړې

پاتې دئ او که نه؟ هغوی ځواب ورکوي پاتې نه دئ. بیا دې ۹ تنه زده کوونکي راوغواړي او هدایت دې ورکړي چې بیا هم ۲، ۲ تنه سره جوړه شئ. هغو جوړه کیږي. بیا دې وپوښتي، کوم یو د تاسو څخه بې جوړي یعنی یوازي پاتې یاست؟

ښایې په خپله زده کوونکی وواېي هو زه پاتې یم. بیا دې ښاغلی ښوونکی داسې وواېي هغه عددونه چې ۲، ۲ جوړه کیږی او کوم یو عدد نه پاتې کیږی جفت عددونه دي لکه: (۲،۴،۶،۸،۰۰۰) او هغه عددونه چې ۲، ۲ جوړه نه شول او یوازي، یو د هغو څخه پاتې کیږی تاق عددونه دي لکه: (۱، ۳، ۵، ۷، ۹، ۰۰۰).

**۲- مشق او تمرین:**

د زده کوونکو پام دې د کتاب (۳۱) مخ ته راوګرزوي، د شمعو او پتنګانو شکل او تصویرونه دې زده کوونکو ته تشریح شي ترڅو هغوی د شکلونو او تصویرونو له مخې جفت او تاق وښيې.

**۳- آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې د ۳ او ۲ په عددونو کې کوم عدد جفت او کوم یو یې تاق دئ؟
- څوک وایې د ۴ او ۶ په عددونو کې کوم یو یې جفت عدد او کوم یو یې تاق دئ؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکولای شي په لاندې عددونو کې جفت او تاق عددونه جلاء، جلاء ولیکي.

۳،۲،۴،۵،۷،۹،۸،۱،۶

**ذهنیت:**

د جفت او تاق په جوړولو سره د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راځي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د جفت او تاق عددونو په پوهیدلو او پیژندلو سره زده کوونکي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار اخلئ د مثال په توګه که چیری زده کوونکو ته وویل شي چې د سپورت په میدان کې ۳، ۳ جوړه یا ۲، ۲ جوړه ودریږئ هغوی کولاي شي خپل شمیر معلوم کړي.

**۴- کورنی دنده:**

هر یو زده کوونکی دې ۳ جفت عددونه او ۳ تاق، تاق عددونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او د هغو سره دې سم شیان له ځانو سره راوړي.

## عنوان: د جفت او تاق عددونو پېژندنه

**شپاړسم لوست، (۳۲) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**موخه:** زده کوونکي وکړای شي جفت او تاق عددونه وپېژني.

**اصطلاح ګاني:** جفت، تاق، دوه برخې، مساوی، غیر مساوي.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لوبیا دانې، د جوارو دانې او نور د چاپېریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکی دې په درې ګروپونو وویشل شي. د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، هر هغه اشتباه ګاني چې د ګروپونو په واسطه ویل کیږي د درې په مخ باندې دې فهرست شي کوشش دې وشي ترڅو صحیح او سم ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا شي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه زده کوونکو ته په درړه باندې ولیکي او بیا دې په وار سره له ګروپونو څخه لاندې پوښتنې وپوښتل شي.

لومړی ګروپ: ۴ تنه د تاسو څخه دې جوړه، جوړه شي کوم تن پرته له جوړې یعني یوازې پاتې دئ او که نه؟

دویم ګروپ: ۷ تنه د تاسو څخه دې جوړه، جوړه شي کوم تن پرته له جوړی یعني یوازي پاتې دئ او که نه؟

دریم ګروپ: وواياست چې د ۳ او ۴ په منځ کې کوم یو یې جفت او کوم یو یې تاق دئ؟

– ښاغلی ښوونکی دې د ۱۰ په شمیر لرګوټې په خپل میز باندې کښېږدي او له لومړی ګروپ څخه دې یو زده کوونکي وروغواړي او هغه ته دې ووایې چې دا لرګوټې په دوو مساوي برخو، جلاء، جلاء کښېږده.

زده کوونکی هغه دوه برخې کوي بیا دې پوښتنه وکړي، هره برخه څو دانې دي؟ هغه وایې هره برخه پنځه دانې دي، بیا دې وپوښتي برخې یو له بله سره مساوي دي او که لږ یا زیاتي دي. زده کوونکي ځواب ورکوي یو له بله سره مساوي دي، بل واري دې ۱۱ دانې لوبیاوې په خپل میز باندې کښېږدی او د دویم ګروپ یو زده کوونکي دې وغواړي هدایت دې ورکړي چې د لوبیا دانې په دوو مساوي برخو جلاء، جلاء کښېږده. زده کوونکي هغه په دوو برخو جلاء کوی، ویني چې یوه دانه لوبیا زیاته پاتې ده.

– ښاغلی ښوونکی دې له نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي آیا دواړه برخې سره مساوي دي، کومه یوه پاتې ده او که نه؟ زده کوونکی هغه یوه دانه یوی برخې ته ورکوي او بیا یې شمیری، ویني چې یوه برخه پنځه دانې، او بله برخه شپږ دانې دي.

– ښاغلی ښوونکی دې ووایي چې دا یو له بله سره مساوي نه دي، تاسو د جفت او تاق مثالونه د موادو او شیانو په جوړه کولو، یا برخو کولو کې ښه لیدلاي شئ لکه لاندی چوکات.

له دې لوست څخه پوهېدلای شو چې د (۲، ۴، ٦ او۸) عددونــه جفــت عددونه او د (۱، ۳، ۵، ۷ او۹) عددونه تاق عددونه دي.
نو ټول هغه عددونه چې دیویز رقمونه یــې ۰، ۲، ۴، ٦ او۸ وي جفــت عددونه او ټول هغه عددونه چې دیویز رقمونه یــې ۱، ۳، ۵، ۷ او۹ وي تاق عددونه بلل کیږي. په همدې ډول تاسو جفت اوتــاق عددونــه دوړو ډبرو په جوړه کولو سره په ښه توګه لیدلای شئ.




کوچنی ډبرې وکاروئ او چارت ډک کړئ.

| | یوکتار د دې کوچنیو ډبرو په اندازه سره جوړ کړئ | آیا دوه مساوي برخې جوړولای شی؟ | جفت عدد، دي او که تاق؟ |
|---|---|---|---|
| ۱ | ۱۲ | هو | جفت |
| ۲ | ۱۳ | نه | تاق |
| ۳ | ۱۴ | هو | جفت |
| ۴ | ۱۵ | نه | تاق |
| ۵ | ۱٦ | هو | جفت |
| ٦ | ۱۷ | نه | تاق |
| ۷ | ۱۸ | هو | جفت |
| ۸ | ۱۹ | نه | تاق |

۳۲




– ښاغلی ښوونکی ښایې چې زده کوونکی د مساوی او غیر مساوي ګروپونو په تشخیص کې ستونزې ولري. تاسو د مختلفو شیانو څخه په کار اخستلو سره لکه کتاب او زده کوونکي، قلم او زده کوونکي او نور شیانو په جوړه کولو سره، جفت او تاق عددونه ورپیژندلای شي.

– او همدارنګه لرګوټي، د جوارو دانې، یا وړې ډبرې په عملې توګه په دوو مساوی برخو او یا غیر مساوی برخو جلاء د تاق او جفت نتیجه دې زده کوونکو ته ووایې. کوشش دې وشي چې د تقسیم عملیه کار ونشي.

**۲– مشق او تمرین:**

د زده کوونکو پام د کتاب (۳۲) مخ ته راوګرزوئ لومړی چوکاټ چې په هغه کې د وړو ډبرو مساوي او غیر مساوي برخې دي زده کوونکو ته دې حل شي. او دویم چوکاټ چې له ۱ څخه تر ۸ پورې شمیره لري او هرې شمیرې ته مخامخ د وړو ډبرو شمیر په عدد سره ورکړل شوي ده. زده کوونکی دې جدول په خپلو کتابچو کې رسم کړې دا چې کوم یو یې دوه مساوي برخې جوړولای شي او کوم یې دوه مساوي برخې جوړولاي نشي، د هو، یا نه د کلیمو په واسطه دې ځواب ورکړل شي د تاق او جفت عددونه دې هم تشخیص کړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي. د ستونزو په صورت کې دې مرسته ورسره وشي.

**پوښتنه:**

– څوک وایې هغه عددونه چې د یویزو رقم یې ۰، ۲، ۴، ٦ و ۸ وي تاق عددونه دي او که جفت؟

– څوک وایې هغه عددونه چې د یویزو رقم یې ۱، ۳، ۵، ۷ و ۹ وي تاق عددونه دي او که جفت؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي په لاندې شکلونو کې د برخو له مخې جفت او تاق عددونه تشخیص کړي.





**ذهنیت:** د جفت او تاق په پوهیدلو او پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي خوښي او رضایت ښکاره کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي کولاي شي د مساوي برخو جوړلو څخه په ورځنۍ ژوند کې کار واخلي. او په ورځنۍ ژوند کې خپل او د نورو ستونزي حل کړي مثلاً: (که چیرې یوه زده کوونکي ته وویل شي چې ۸ ټوکه کتابچې له خپل ورور سره په مساوی برخو جلاء کړه هغه کولای شي چې ۴ دانې په خپله واخلي او ۴ کتابچې خپل ورورته ورکړي).

**۴–کورنۍ دنده:**

هر یو زده کوونکی دې لاندې عددونه په خپل کتابچه کې ولیکي، جفت او تاق عددونه دې جلاء، جلاء ولیکي.

۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۷، ۱٦، ۱۸، ۱۹، ۲۲، ۲۰، ۲۱

## عنوان: مشق او تمرین جفت او تاق عددونه

**(۳۳– ۳۴) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه يي)**

**هدف (موخه):** زده کوونکي د پوښتنو په حل کولو کې جفت او تاق عددونه وپيژني.

**اصطلاح ګاني:** جفت، تاق، عددونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د چاپيريال د شميرلو وړ ساده شيان.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې وکتل شي، اشتباه ګانې دې د دړي په مخ باندې فهرست شي کوشش دې وشي چې صحيح ځوابونه د زده کوونکو څخه په لاس راوړل شي. او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په دړه باندې وليکي ترڅو ټول زده کوونکي يې وليدلای شي. او له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وشي.

احمده: دړې ته راشه، د دړې په مخ باندې درى جفت عددونه وليکه.

زلميه: دړې ته نژدې راشه دوه جفت عددونه، او دوه تاق عددونه په دړې باندې وليکه.

محمود: دړې ته نژدې راشه څلور تاق عددونه په دړه باندې وليکه.

په همدې ډول دې له زده کوونکو څخه نورې پوښتنې وشي، کوشش دې وشي چې ټول زده کوونکي برخه واخلي.

– ښاغلی ښوونکی يو شمير زده کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړه چې د ټولګي مخې ته ودريږي. بيا دې يوه زده کوونکی ته ووايې، چې راشي خپل ټولګيوال په دوو برخو وويشي. کله چې زده کوونکي خپل ټولګيوال د ټولګي

په لاندې شکلونو کې کوم يويې جفت اوکوم يو يې تاق دی؟




تاق    جفت    تاق    تاق

جفت او يا تاق عددونه وليکئ.

۱. ۵۵ تاق    ۲. ۷۳ تاق    ۳. ۴۲ جفت

۴. ۳۴ جفت    ۵. ۱۷ تاق    ۶. ۲۶ جفت

**کورنۍ دنده:**

لومړی درې جفت عددونه وليکئ بيا وروسته درې تاق عددونه وليکئ

جفت عددونه: ۱۲    ۲۴    ۵۶

تاق عددونه: ۱۷    ۴۵    ۸۹

۳۳

مخې ته دوه برخې کړل، بيا دې له يوه بل زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي چې دا برخې مساوي دي او که غير مساوي دي؟ ښايې چې ځواب يې مساوي وي او يا غير مساوي وي.

همدارنګه څو دانې لرګوټې دې په خپل ميز باندې کښيږدي او يو زده کوونکی دې وغواړي او هغه ته دې ووايې لرګوټې په دوو برخو جلاء کړه. زده کوونکی راځي هغه په دوو برخو جلاء کوي.

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې دا جلاء شوی برخې مساوی دي او که غير مساوي، ښايې چې زده کوونکي د جلاء شوي موادو له مخې ځواب ووايې، چې مساوي دي يا غير مساوي دي. که چيري د زده کوونکو ځواب صحيح وي په ښو او تشويق کوونکو کليمو سره دې تشويق شي. او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځواب ووايي.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو وویشي بیا دې د هغو پام د کتاب (۳۳) مخ ته راوګرزوي داسې چې لومړی ګروپ د شکلونو او تصویرونو له مخې، جفت او تاق پیدا کړي او په هغه تش ځایونو کې چې د هر شکل تر لاندې دي تاق یا جفت عدد ولیکي.

دویم ګروپ دې د دې مخ د (۱) ګڼې پوښتنه چې عددونه ورکړل شوي دي له عددونو سره دې جفت یا تاق ولیکي.

دریم ګروپ دې هم د دې مخ د (۳) ګڼې پوښتنه چې عددونه ورکړل شوي دې له عددونو سره دې د جفت یا تاق مناسبه کلمه ولیکي. او ښاغلی ښووونکی دې د کار د جریان څارنه وکړي، بیا دې د زده کوونکو پام د کتاب (۳۴) مخ ته راوګرزوي د (۱ او ۲) ګڼې پوښتنې دې لومړي ګروپ ته، (۳ او ۴) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته او همدارنګه د (۵ او ٦) ګڼی جدولونه دې دریم ګروپ ته ورکړي چې په ټولګی کې په ګروپی ډول کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو څارنه وکړي.

**۳- آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دی له هغو سره مرسته وکړي.

**پوښته:**

- څوک وایې چې ۹ دانې لرګوټي تاق دي او که جفت؟
- څوک وایې چې د ۱۲ عدد جفت ده او که تاق؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي په لاندې عددونو کې د جفت او تاق عددونه جلاء، جلاء ولیکي.

**۵۴، ۳۳، ۱۹، ۴۲، ۲۷، ۲٦، ۱۷، ۳۴، ۲۳**

**مشق او تمرین:**

۱- له ۷۰، ۵۴،۴٦، ۳۳، ۲۳، ۱٦، ۱۵ عددونو څخه جفت عددونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

۲- له ۷۵، ٦۰، ۴۲، ۳۸، ۲۵، ۲۲، ۱۸ عددونو څخه تاق عددونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

۳- ټول جفت عددونه چې د ۳ او ۱۵ ترمنځ دي ویې‌لیکئ؟

۴- ټول تاق عددونه چې د٦ او۲۲ ترمنځ شته دي ویې لیکئ؟

۵- لاندې جدول په خپلو کتابچو کې په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵۰ | ۴۸ | ۴٦ | ۴۴ | ۴۲ | ۴۰ | ۳۸ | ۳٦ | ۳۴ | ۳۲ | ۳۰ |

٦- لاندې جدول خپلو کتابچوکې په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۹ | ۱۷ | ۱۵ | ۱۳ | ۱۱ | ۹ | ۷ | ۵ | ۳ | ۱ |

۳۴

**ذهنیت:**

د جفت او تاق عددونو په پوهیدو او پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي کولای شي د مساوي برخو په جلاء کولو سره عدالت او انصاف تطبیق کړي او په ورځنۍ ژوند کې کار ورڅخه واخلي مثلاً که چیری هغوی ته وویل شي چې قلمونه په مساوي توګه واخلي یا کتابچې په مساوي توګه واخلي هغوی دا عمل په ډیره ښه توګه سرته رسوي.

**۴- کورنۍ دنده:**

هر یو زده کوونکی دې په دوه رقمي عددونو کې څلور جفت عددونه او پنځه تاق عددونه په خپلو کتابچو کې ولیکی او له ځان سره دې راوړي.

# عنوان: د دوه رقمي عددونو جمع کول له یوه رقمي عددونو سره (چې حاصل ولري)

**اووه لسم لوست، (۳۵) مخ**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**موخه:** زده کوونکي باید دوه رقمي عددونه له یوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري جمع کړای شي.

**اصطلاح ګاني:** جمع، حاصل، دوه رقمي، یو رقمي.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، ورې ډبري او نور د چاپيريال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو وویشي بیا دې د یوه ګروپ کورنۍ دنده د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، هغه اشتباه ګاني چې د زده کوونکو په واسطه ویل کیږي د درس په مخ باندې دې ولیکل شي، کوشش دې وشي چې اشتباه ګاني په خپله د زده کوونکو په واسطه صحیح شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح او د قناعت وړ ځوابونه په توره دره باندې حل کړي او په وار سره دې له ګروپونو څخه پوښتنې وشي.

لومړی ګروپ: ټوله هغه جفت عددونه چې د ۳ او ۱۴ په منځ کې دي کوم دي؟ په وار سره یې په توره درې باندې ولیکئ.

دویم ګروپ: ټوله هغه تاق عددونه چې د ۴ او ۱۶ په منځ کې دي کوم دي؟ په وار سره یې په دره باندې ولیکئ.

دریم ګروپ: د ۱۷، ۱۴، ۱۳، ۱۲، ۱۸ او ۹ په عددونو کې کوم یې تاق او کوم یې جفت دي.

ښاغلی ښوونکی! دې د ۱۸ دانو په شمیر لرګوټي چې په هغو کې ۸ داني یو دانه یې او یو د لسګ بنډل وي د میز په یوه ګوټ باندې، او ۷ داني لرګوټي د میز په بل ګوټ باندې کښېږدي، بیادې یوه زده کوونکی ته ووایي، میز ته دې نژدې راشي ادا لرګوټي چې په دوو مختلفو ځایونو کې جلا ایښودل شوي دې سره یو ځای دې کړي. زده کوونکی راځی هغه یو ځای کوي، له دویم زده کوونکی څخه دې غوښتنه وکړي چې راشي لرګوټي وشمیرئ، او شمیر دې نورو زده کوونکو ته ووایي هغه راځي، لرګوټي شمیري او وایي ۲۵ داني لرګوټي دي، له دریم زده کوونکی څخه دې پوښتنه وکړي چې ووایي، اوس څو بنډله د لسیزو او څو یو دانه یي دي، د لرګوټو له مخي به ووایي چې یو بنډل د لسیزو او ۱۵ داني یو دانه یي دي بیا دې ښاغلی ښوونکی داسې تشریح کړي چې په ۱۵ یو دانه یي کې یو لسیز او ۵ یو دانه یي دي، د لسیز بنډل جوړ ؤ چې په حقیقت کې ادا بنډل د لسیز له حاصل څخه عبارت ده. چې د مخکنۍ لسیز له بنډله سره یو ځای کیږي او د لسیزو دوه بنډله لاس ته راځي. په دې حساب ټوله دوه

دریم فصل

د دوه رقمي عددونو جمع

اوولسم لوست

د دوه رقمي عددونو جمع کول له یوه رقمي عددونو سره (چې حاصل ولري)

هدف: زده کوونکي باید دوه رقمي عددونه له یوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري جمع کړای شي.

مثال: غواړو چې د۱۶ عدد د۷ له عدد سره چې حاصل لرونکي دي جمع کړو.

۱۶ + ۷ = ۲۳

پوهېږو چې د۱۶ عدد له ٦ یودانه یي او د لسو یوه بنډل څخه جوړ شوی دی کله چې ۷ یودانه یي له هغه سره جمع شي د یو دانه یي شمېر ۱۳ کېږي چې د هغو یودانه یي څخه یو د لسي بنډل لاس ته راځي او ۳ یودانه یي پاتې کېږي په دې ډول د ټولو لرګیو شمېر دوه بنډله د لسیو او درې یودانه یي ته رسېږي. چې د ۲۳ عدد حاصلیږي. څرنګه چې ۳ یو دانه یي د یویزو په مرتبه کې او ۲ لسي د لسیزو په مرتبه کې لیکل کېږي نو له همدې امله ویل کېږي چې د جمعي عملیه حاصل لرونکې ده.

| لسیز | یویز |
|---|---|
| (۱) | |
| ۱ | ٦ |
| + | ۷ |
| ۲ | ۳ |

۱۳

د پورتني مثال له حل کولو څخه په استفادې سره لاندې پوښتنې جمع کړئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| (۱) ۱۷ | (۱) ۲۵ | (۱) ۳۹ | (۱) ۴۵ | (۱) ۵۴ |
| + ۹ | + ۸ | + ۶ | + ۸ | + ۷ |
| ۲۶ | ۳۳ | ۴۵ | ۵۳ | ۶۱ |

۳۵

بندله د لسيز او ۵ يو دانه يې دي، چې بيا هم ټوله ۲۵ لرګوټې کيږي، په همدې ډول له وړو ډبرو يا نورو موادو څخه دې کار واخلي کولای شي په داسې يو شکل کې وښيې.




**۲–مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۳۵) مخ ته راوګرزوئ هغه مثال چې د ګوګړو د لرګوټو په واسطه زده کوونکو ته حل شوی ده په صحيح او ښه توګه يې تشريح کړه ترڅو زده کوونکي د يويزو او لسيزو د مرتبو په نظر کې نيولو سره هغه پوښتنې چې د کتاب د دې مخ په وروستې يا کښته برخې کې ورکړل شوي دي خپلو کتابچو ته نقل او حل يې کړي. او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي، چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وشي.

**پوهه:**

– څوک وايې چې د ۷ + ۱۵ په عمليه کې لومړی کوم دوه عددونه يا مرتبې سره جمع کيږي؟

– څوک وايې چې د ۷ + ۱۶ په عمليه کې لسيز څو دي او يويز يې څو دي ولې؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړائ شي په لاندې پوښتنو کې لکه حل شوی مثال حاصل پيدا کړي او له وروستی مرتبې سره جمع کړي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۵ | ۴٦ | ۳۷ | ۲۹ | (۱) ۱۷ |
| + ۸ | +۱۴ | + ٦ | + ۵ | + ۹ |
| | | | | ۲٦ |

**ذهنيت:** د دوه رقمي عددونو جمع کول له يوه رقمي عدد سره چې حاصل ولري د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راوړي رضايت او خوښی شکاره کوي.

**ارزښت:** د جمعې د دې عمليې په پوهيدو او پيژندلو سره، زده کوونکي د ورځنی ژوند په معاملو کې کار اخلي.

مثلاً:که چيري يو زده کوونکی ۱۵ افغانۍ ولري، او ورور يې نوري ۸ افغانۍ هغه ته ورکړي هغه کولای شي ووايې چې څو لسيه او څو يوه افغانيزه لري.

**۴–کورنۍ دنده:**

زده کوونکي لاندې پوښتنې حل او له خپل ځان سره يې راوړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۳۷ | ۲۸ | ۴۷ |
| + ٦ | + ۹ | + ۳ |

## عنوان: د دوه رقمي عددونو جمع کول له یوه رقمي عددونو سره (چې حاصل ولري)

**اووه لسم لوست، (۳۶) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقه یې**

**موخه:** زده کوونکي باید دوه رقمي عددونه له یوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري جمع کړای شي.

**اصطلاح ګانې:** جمع، دوه رقمي، یو رقمي، حاصل لرونکي.

**د لوست مرستندوي مواد:** لرګوټي او نور د چاپیریال د شمیرلو وړ مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په ګروپي ډول په غور سره وکتل شي. کومې اشتباه ګانې چې شوي دي په دره باندې یې فهرست کړه. بیا کوشش وکړه چې صحیح ځوابونه په خپله زده کوونکي ووایې او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه زده کوونکو ته ووایي. وروسته په ګروپي ډول لاندې پوښتنې وکړه.

له لومړي ګروپ څخه: څوک وایي چې د ۵ + ۲۷ د جمعې عملیه حاصل لري او که نه؟ که چیرې حاصل لري څو ده؟

له دویم ګروپ څخه: څوک وایي چې د ۳ + ۲۴ په عملیه کې حاصل، شته دئ او که نه؟ که چیری وي څو دي؟

له دریم ګروپ څخه: څوک توري درې ته راځي ترڅو د ۸ + ۵۷ پوښتنه حل کړي او حاصل یې نوروته وښیې؟

– ښاغلی ښوونکی دې د ۱۹ دانو په شمیر لرګوټي په یوه ځای کې او ۶ لرګوټي دې په بل ځای کې داسې کښیږدي:



په ټولګي کې دزده کوونکو فعالیت:

شکلونوته وګورئ او عددي افاده یې ولیکئ .



۱۷ + ۷ = ۲۴



۱۸ + ۸ = ۲۶

کورنۍ دنده : لاندې پوښتنې جمع کړئ .

(۱) ۳۶ + ۷ = ۴۳

(۱) ۴۵ + ۹ = ۵۴

(۱) ۵۷ + ۳ = ۶۰

۳۶

بیا دې یو زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووایې چې دا لرګوټې سره یوځای کړه لسیز او یویز په هغو کې وښیه. زده کوونکی راځي هغه سره یوځای کوي بیا دې وپوښتې، څو بنډله لسیز او څو داني، یویز دي؟ زده کوونکي د لسیز بنډلونه او د یویز دانې داسې ترتیب کوي:



او وایي دوه بنډله د لسیز او پنځه یو دانه یې دي، کله چې زده کوونکی ونشي کړای چې ووایې نو د یوه داوطلب زده کوونکی څخه دې وغوښتل شي چې راشي او دا فعالیت سرته ورسوی. بیا دې یو دریم زده کوونکی راوغواړي چې د هغه د ریاضي افاده ولیکي او حل یې کړي. ښاغلی ښوونکی دې پاملرنه وکړي چې زده کوونکی د ریاضي افاده په صحیح او سمه توګه لیکلای او

حل کولای شي او که نه؟ که چیری ستونزي ولري له هغه سره دې مرسته وکړي.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکې په دوو ګروپونو وویشي او بیا دې د هغوی پام د کتاب (۳٦) مخ ته راوګرزوي لومړی شکل دې لومړی ګروپ ته ورکړی چې د شکل له مخې عددې افاده یې ولیکی.

همدارنګه دویم شکل دې دویم ګروپ ته ورکړي چې د شکل له مخې د هغه عددې افاده ولیکي. او هغوته دې وویل شي چې د شکلونو له مخې د لسیو بنډلونه جوړ او د جمعې حاصل پیدا کړئ.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو پوه او مهارت حاصل کړی ده او که نه؟ یا د ښاغلی ښوونکی هدف سرته رسیدلی ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې د ۳٦ او ۴۷ په عددونو کې څو یویز او څو لسیز دي؟
- څوک وایې د ۲۷ + ۸ د جمعې په حاصل کې څو یویز او څو لسیز لیدل کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکې وکړائ شي د شکل له مخې عددې افاده یا عملیه ولیکي.

☆☆☆☆☆ ☆☆☆☆☆ ☆☆☆☆☆ + ☆☆☆☆ ☆☆☆ = ☆☆☆☆☆ ☆☆☆☆☆ ☆☆☆☆☆ ☆☆☆☆☆ ☆☆

**ذهنیت:**

زده کوونکي د شکل له مخې د ریاضي د افادې په لیکلو سره په خپل ځان او نفس باور پیدا کوي او خوښی کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکې د یویزو او لسیزو په پوهیدو سره په خپل ورځنۍ ژوند کې کار ورڅخه اخلي لکه: منصور په خپل جیب کې ۸ افغانی لري او پلار یې ۲۸ افغانۍ نوري هغه ته ورکوي چې ٦ دانې ډوډی راوړي. هغه خپلی افغانۍ د ۲۸ افغانیو سره جمع کوي ٦ یوه افغانیزه او دري لسیه چې له ۳٦ افغانیو څخه عبارت دي له ځانه سره لري نو په ډاډینی سره د ډوډی پخولو ځای ته ځي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکې دې لاندې پوښتنې خپلو کتابچو ته نقل او حل کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۳٦ | ۴۵ | ۵۷ |
| + ۷ | + ۹ | + ۳ |

# عنوان: د دوه رقمي عددونو جمع کول له دوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري

**اتلسم لوست، (۳۷) مخ**

**وخت: ۴۵ دقيقه يي**

**موخه:** زده کوونکي دې دوه رقمي عددونه له دوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري جمع کړاي شي.

**اصطلاح ګاني:** جمع، عددونه، دوه رقمي، حاصل.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، او د چاپيريال نور د شميرلو وړ مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په دريو ګروپونو وويشل شي د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. او هر هغه ګروپ چې کومې اشتباه ګانې وايي، د درس په مخ باندې دې فهرست شي. کوشش دې وشي چې صحيح ځوابونه د زده کوونکو څخه واوريدل شي، او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په دره باندې زده کوونکو ته تشريح کړي. او بيا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: که چيرې د ۹ او ۳۵ عددونه يو له بله سره جمع کړو د ۹ عدد کوم عدد تر لاندې ليکل کيږي؟

دويم ګروپ: که چيرې وغواړو د ۴ او ۱۳ عددونه يو له بله سره جمع کړو کولای شو چې ۴ د لسيزو له رقم سره جمع کړو؟

دريم ګروپ: څوک د ٦ + ۱۸ عمليه په يوه جدول کې د درې په مخ باندې جمع کوي؟

– ښاغلی ښوونکی دې يو بنډل د لسځ او ۷ يو دانه يي په شمير سره لرګوټي په يو ځای کې، يو بنډل د لسځ او ٦ يو دانه يي لرګوټي دې په بل ځای کې کښيږدي او يو زده کوونکی دې راوغواړي او هغه ته دې ووايي راشه، ادا لرګوټي سره يو ځای کړه او خپل ټولګيوالو ته يې وښيه، چې څو بنډله د لسيزو او څو يويز کيږي.

زده کوونکی راځي هغه سره يوځای کوي او له يويزو څخه يو بنډل د لسيزو جوړوي، بيا به ووايي چې ۳ بنډله د لسيزو او ۳ داني يو دانه يي لرګوټي دي. که چيرې زده کوونکي ځواب ونشي ويلای يو بل زده کوونکی دې راوغوښتل شي ترڅو ادا فعاليت سرته ورسوي. د دې فعاليتونو د سرته رسولو وروسته ښاغلی ښوونکی دې د دوو رقمي عددونو د جمع لپاره د درې په مخ باندې داسې يو جدول رسم کړي. او زده کوونکو ته دې ووايي د دوو رقمي عددونو د جمعې کولو په وخت کې يويز تر يويز لاندې او لسيز تر لسيز لاندې ليکل کيږي.

**اتلسم لوست**

**د دوه رقمي عددونو جمع کول له دوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري**

هدف: زده کوونکي دې دوه رقمي عددونه له دوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري جمع کړاي شي؟

لومړی مثال: غواړو چې د ۱۵ دوه رقمي عدد له ۱٦ دوه رقمي عدد سره جمع کړو دتير شوي لوست څخه پوهيږو چې د۱۵ عدد له ۵ يودانه يي او يوه لسي بنډل څخه جوړ شوی دی. په همدې ډول د۱٦ عدد له ٦ يوه دانه يي او يوه لسي څخه منځ ته راغلی دی.

| لسيز | يويز |
|---|---|
| ① | |
| ۱ | ۵ |
| + ۱ | ٦ |
| ۳ | ۱ |

۱۵ +۱٦ =

دوهم مثال:

۲٦ +۱۸

| لسيز | يويز |
|---|---|
| ① | |
| ۲ | ٦ |
| + ۱ | ۸ |
| ۴ | ۴ |

۱۴

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکې لاندې پوښتنې په خپلو کتاپچو کې حل او له خپل ځانو سره راوړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۹۵ | ۵۴ | ۷٦ |
| + ۳٦ | + ۱۸ | + ۳۷ |

۳۷

| لسيز | يويز |
| --- | --- |
| (١) | |
| ١ | ٧ |
| ١ + | ٦ |
| ٣ | ٣ |

لومړی یویز سره جمع کړئ که چیری د یویزو د جمعې حاصل (١٠) یا زیات له (١٠) څخه شي د هغو یویز د جمعې د حاصل د یویزو په ځای کې لیکو او یو، لس د حاصل په توګه په کړئ (حلقي) کې د لسیزو دپاسه لیکو. وروسته لسیز سره جمع کوو او حاصل هم له هغو سره جمع کوو او د لسیزو په ځای کې لیکو. په همدې ډول نوری پوښتنې دې د زده کوونکو په واسطه حل شي.

**٢– مشق او تمرین:**

زده کوونکي دې په دوو ګروپونو وویشل شي بیا دې د هغو پام د کتاب (٣٧) مخ ته راوګرزول شي لومړی مثال دې لومړی ګروپ ته دویم مثال دې دویم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو په خپل منځ کې په ګډه سره کار ورباندې وکړي، بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن راشي مثالونه دې د تورې درې په مخ باندې تشریح کړي، که چیری هغوی ستونزی ولري ښاغلی ښوونکی دې له هغو سره مرسته، او لارښوونه وکړي.

**٣– آرزونه:**

ښاغلی ښوونکی دې د خپل ډادینه لپاره د پوهې او مهارت لاندې پوښتنې وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د ٤٧ په عدد کې د ٧ مرتبه زیات ده او که د ٤؟

– څوک د ١٦ + ٢٧ د افادې د جمعې په حاصل کې د یویزو او لسیزو د مرتبو نومونه اخلي وواياست چې هر یویې څو، څو دي؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي د ٩ + ٢٣ افاده د لرګوټو په واسطه په عملی توګه جمع کړي.

**ذهنیت:** زده کوونکي د دوو رقمي عددونو له جمع کولو څخه چې حاصل ولري خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي په ورځنی ژوند کې له همدارنګه پوښتنو سره مخامخ کیږي چې د پوهې او مهارت څخه په کار اخستلو سره هغه حل کوي.

مثلا: احمد په خپل بڼ کې د مڼو ١٥ نیالګی لري د هغه پلار نور ١٧ نیالګی په بڼ کې کینول اوس ټوله د مڼو څو دانې نیالګی دي؟.

**٤– کورنی دنده:**

زده کوونکې لاندې پوښتنې په خپلو کتاپچو کې حل او له خپل ځانو سره راوړي.

| | | |
| --- | --- | --- |
| ٩٥ | ٥٤ | ٧٦ |
| ٣٦ + | ١٨ + | ٣٧ + |

# عنوان: د هغو دوه رقمي عددونو د جمعې مشق او تمرين چې حاصل ولري

**اتلسم لوست، (۳۸ و ۳۹) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**موخه:** زده کوونکي دوه رقمي عددونه له دوه رقمي عددونو سره چې حاصل ولري جمع کړای شي.

**اصطلاح ګاني:** عددونه، دوه رقمي، حاصل، يويز، لسيز.

**د لوست مرستندوی مواد:** د شميرلو وړ ساده مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په دوو ګروپونو وويشل شي، د هر ګروپ کورنۍ دنده دې په ځير سره وکتل شي، د ګروپونو اشتباه ګاني دې په دړه باندې فهرست شي. که چيری اشتباه ګاني يو بل ته ورته وي ښاغلی ښوونکی دې د هغو صحيح ځوابونه په دړه باندې تشريح کړي او که چيري اشتباه ګانو توپير درلود، نو صحيح ځوابونه دې له زده کوونکو څخه په لاس راوړل شي بيا دې لاندې پوښتنې وپوښتل شي.

له لومړي ګروپ څخه: زلمی دې ووايي د دوه رقمي د جمع کولو په عمليه کې لومړی کومې مرتبې يو له بله سره جمع کيږي او وروسته کومې مرتبې يو له بل سره جمع کيږي؟

له دويم ګروپ څخه: محمود دې ووايي که چيري د دوه رقمي عددونو د جمع کولو په عمليه کې د يويزو د جمعې حاصل يو دوه رقمي عدد شي د لسيزو مرتبه يې ليکئ او که څرنګه؟

– ښاغلی ښوونکی دې دري بنډله د لسيو او ۵ يو دانه يې لرګوټي يوه زده کوونکي ته دوه بنډله د لسيو او ٦ يو دانه يې لرګوټي دې بل زده کوونکي ته ورکړي او د ټولګي مخې ته دې ودريږي، بيا دې هغوی دواړو ته ووايي چې

د هغه دوه رقمي عددونو مشق او تمرين چې حاصل ولري.

(لومړی) يويز سره جمع کړئ. (دوهم) بيا ګروپ (حاصل ونيسي) جوړ کړئ.

(دريم) لسيز جمع کړئ.

۴۶ + ۳۵

(۱) ۴۶ + ۳۵ = ۱ ... (۱۱)

(۱) ۴۶ + ۳۵ = ۸۱

تاسو ولې لومړی يويز سره جمع کوئ؟

د پورته مثال څخه په کار اخستني سره لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| ۱. | [۱] ۶ + ۱ = ۸ | ۳ + ۷ = ۰ |
| | [ ] ۲ + ۳ = ۵ | ۷ + ۱ = ۸ |
| | [۱] ۳ + ۱ = ۵ | ۹ + ۵ = ۴ |
| | [۱] ۳ + ۲ = ٦ | ۷ + ۹ = ٦ |
| ۲. | [۱] ۲ + ۶ = ۹ | ۹ + ۶ = ۵ |
| | [۱] ۴ + ۱ = ٦ | ۷ + ۸ = ۵ |
| | [۱] ۶ + ۲ = ۹ | ۵ + ۷ = ۲ |
| | [ ] ۳ + ۲ = ۵ | ۱ + ۲ = ۳ |

۳۸

تاسو دواړه خپل لرګوټي محمود ته ورکړئ، کله چې لرګوټي محمود ته ورکوي، هغه ته دې ووايې له تا سره څو دانې يوه دانه يې او څو بنډله د لسيو لرګوټي دي. هغه لرګوټي او بنډلونه شميري او وايي يوولس دانې يو دانه يې او پنځه بنډله د لسيو دي، دويم وارې دې ورته ووايي چې له يوولس يو دانه يې څخه څو بنډله د لسيو جوړولای شي، هغه به ووايي چې يو بنډل د لسيو جوړيږي او يوه دانه يې پاتې کيږي، اوس ټوله څو بنډله د لسيو او څو يو دانه يې دي؟ هغه لرګوټيويني او وايي چې ٦ بنډله د لسيو او يو، يوه دانه يې ده، بيا دې ښاغلی ښوونکی له يوه بل زده کوونکي څخه وغواړي چې د دې فعاليت د رياضي افاده په دړه باندې وليکي او حل يې کړي که چيرې ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې وشي او ښاغلی ښوونکی دې داسې تشريح کړي، د دوه رقمي عددونو د جمع کولو په وخت

کې لومړی یویز سره جمع کړئ که چیری حاصل ولري، حاصل ونیسی. بیا لسیز سره جمع کړئ او نیولئ حاصل هم د لسیزو سره جمع کړئ. او همدارنګه د (۳۸) مخ مثال چې په چوکاټ کې دئ تشریح دې شي.

**۲– مشق او تمرین:**

زده کوونکي دې په دوو ګروپونو وویشل شي او د هغو پام دې د کتاب (۳۸) مخ ته راوګرزول شي. په دې صورت کې دې د (۱) ګڼې پوښتنه لومړی ګروپ ته او د (۲) ګڼې پوښتنه دې دویم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو د حل شوي مثال سره سم حاصل په نظر کې ونیسي او په ګروپې ډول کار وکړي. او کوشش دې وشي چې د دوه رقمي عددونو د جمع کولو په وخت کې یویز د یویز تر لاندې او لسیز د لسیزو تر لاندې ولیکل شي.

او په دویم وارې دې د زده کوونکو پام د کتاب (۳۹) مخ ته راوګرزوی عبارتي پوښتنې د ګروپونو تر منځ وویشئ تر څو هغوی د عبارت په مفهوم پوه شي، د ریاضي افاده یې ترتیب کړي او پوښتنې حل کړي.

**۳– آرزونه:**

ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان د ډاډمن کیدو لپاره له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

**پوښته:**

–څوک وایي چې د ۱۹ او ۱۷ د جمعې په حاصل کې څو بندله د لسیزو لاس ته راځي؟

– څوک وایي چې په ۱۹ کې څو لسیز او څو یویز همدارنګه د ۱۷ په عدد کې څو یویز او څو لسیز دي او کوم یوېې زیات ده؟

**مهارت:** زده کوونکی وکړائ شي ۱۷+ ۱۹ افاده د محیطي موادو په واسطه جمع کړي.

**د خپل یوه ټولګیوال سره کار وکړئ:**

۱– په الماری کې ۱۴ صندوقه شربت دي. یوه سړي ۳۸ صندوقه نور په هغه الماری کي کیښودل. اوس په الماری کې د شربت څو صندوقه دي؟ ۱۴+۳۸=۵۲

۲– ګلالۍ دوه سفري بکسونه لري چې دروندوالی یې ۳۴ کیلوګرامه دی، په لاندې بکسونو کې د ګلالۍ سفري بکسونه کوم دي او هر یو یې څو کیلوګرامه دی؟ ۱۶+۱۸=۳۴




۳– په یوه کارتن کې د شربت ۳۶ بوتله دي، آیا دوه کارتنه شربتونه د ۷۰ زده کوونکو لپاره بس کوي؟ ۳۶+۳۶=۷۲

**کورنۍ دنده:**

یوه عبارتي پوښتنه ولیکئ او په هغه کې دوه رقمي عددونه وکاروئ او حل یې له ځان سره راوړئ.

۳۹

**ذهنیت:** زده کوونکي د پورته عملیې په سرته رسولو او د چاپیریال موادو په کار وړلو سره خوښي ښکاره کوي او په ځان باور پیدا کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي په خپل ورځنۍ ژوند کې له اخستل شوی پوهی څخه کار اخلي او خپل ستونزې حل کوي همدارنګه له دې پوهې څخه د نورو مختلفو مضمونو لپاره چې لوستلي دي په سمه توګه کار اخلي لکه د دري د مضمون د الفبا توري چې شمیر یې ۳۴ دي، کولای شي ووایي چې څو یویز دي او څو لسیز.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې یوه عبارتي پوښتنه چې په هغه کې د دوه رقمي له عدد څخه کار اخستل شوي وي په خپلو کتابچو کې ولیکی او حل دې له خپلو ځانو سره راوړي.

# عنوان: د جمعې د دریو جز جمع کول چې حاصل ولري

**نولسم لوست، (۴۰) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**موخه:** زده کوونکي د دریو عددونو د جمعې حاصل چې حاصل لرونکي دي پیدا کړای شي.

**اصطلاح ګانې:** جمع، د جمعې درې جزء، یویز، لسیز.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي د لسونو بنډلونه، او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي ګروپونه دې په وار سره هغه عبارتې پوښتنې چې دوی په خپله ترتیب او لیکلی دي ولولي، ښایي چې عبارتونه مختلف وي او توپیر ولري د ګروپونو زده کوونکي دې په وار سره و درېي ته راوغوښتل شي ترڅو خپل عبارتي پوښتني حل کړي او هغه چا چې د عبارت د جوړولو، وسه نه درلودل مرسته او لارښوونه دې ورسره وشي بیا دې لاندې پوښتني وکړي.

لومړی ګروپ: یوسف دې د ۴۶ او ۳۸ دوه عددونه په درې باندې جمع کړي او د جمعې حاصل دې د عددونو په کارت کې وښيي.

دویم ګروپ: جلال دې د وړو ډبرو څخه په کار اخستنې سره د ۷۵ او ۳۶ عددونه د خپل ټولګوالو مخې ته جمع کړي او د هغو د جمعې حاصل چې له څو لسیو او څو یو دانه یې څخه جوړ دي ووايي.

دریم ګروپ: فیصل دې د جلال د پوښتنې ځواب د لرګوټو څخه په کار اخستنې سره د لسیزو په بنډلونو او یویزو په یوه دانه یې سره جلاء کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې ۱۵ دانې لرګوټي چې یو بنډل د لسو او ۵ یو دانه یې دي په یوه ځاي کې او ۱۶ دانې لرګوټي چې یو بندل د لسو او ۶ یو دانه یې دي په بل ځای کې او همدارنګه ۲۵ دانې لرګوټي چې دوه بنډله د لسو او ۵ یو دانه یې دي په یوه دریم ځای کې، په خپل میز باندې دې کښیږدي بیا دې یو زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووايي دا لرګوټي چې په درې

**نولسم لوست**

**د جمعې د دریو جزو جمع کول چې حاصل ولري**

هدف: زده کوونکي د دریو عددونو د جمعې حاصل چې حاصل لرونکي دي پیداکړای شي.

په یوه ښونځي کې ۲۷ هلکان مطالعه کوي، ۳۴ هلکان درياضي کورنۍ کار سرته رسوي او ۱۸ هلکان رسامي کوي ټول څو هلکان دښوونځي درسی فعالیتونه سر ته رسوي.

اوس د جمعې درې جزه یوله بله سره جمع کوو. د دې منظور لپاره لاندې حل په پام کې نیسو.

| په لومړي ګام کې یویز جمع کړئ | په دوهم ګام کې حاصل ونیسئ | په دریم ګام کې لسیز جمع کړئ |
|---|---|---|
| | (۱) | (۱) |
| ۲۷ | ۲۷ | ۲۷ |
| ۳۴ | ۳۴ | ۳۴ |
| +۱۸ | +۱۸ | +۱۸ |
| | ۹ (۱۹) | ۷۹ |

۷۹ هلکان دښوونځي کار کوي.

۱– د خپل ټولګیوال سره یوځای کار وکړئ جمع یې کړئ که چېرې اړتیاوې حاصل ونیسئ د جمعې حاصل پیداکړئ.

| لسیز | یویز |
|---|---|
| [۱] | |
| ۳ | ۲ |
| ۱ | ۸ |
| +۴ | ۲ |
| ۹ | ۲ |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| [۱] | |
| ۱ | ۸ |
| ۲ | ۱ |
| +۱ | ۷ |
| ۵ | ۶ |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| [ ] | |
| ۶ | ۲ |
| ۱ | ۴ |
| +۲ | ۳ |
| ۹ | ۹ |

| لسیز | یویز |
|---|---|
| [۱] | |
| ۴ | ۷ |
| ۱ | ۰ |
| +۲ | ۶ |
| ۸ | ۳ |

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړي او له ځانو سره دې راوړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۴۹ | ۴۵ | ۲۰ |
| ۳۲ | ۱۷ | ۳۷ |
| +۱۸ | +۱۹ | +۴۲ |

۴۰

مختلف ځایونو کې ایښودل شوي دي سره یوځای یعنی جمع کړه، ښوونکی دې، دې ته پام ونیسي چې آیا زده کوونکی یویز له یویز او لسیز له لسیز سره یوځای کوي او که نه؟ که چیرې دا فعالیت په صحیح توګه سرته ورسوي ښه تر ښه، او له هغه پرته مرسته دې ورسره وشي. بیا دې یوه زده کوونکی ته ووايي راشه دا لرګوټي حساب کړه، چې څو دانې یو دانه یې او څو لسیه دي، زده کوونکی راځي هغه شمیرې او وایي څلور بنډله د لسیو او ۱۶ یو دانه یې دي بیا دې ورته وویل شي چې د ۱۶ څخه څو بنډله د لسیو جوړولای شي.

هغه لس دانې جلاء کوي وایي چې یو بنډل د لسئ او ۶ یو دانه یې کیږي، او پوښتنه دې ورڅخه وشي چې اوس ټوله څو دانې لرګوټي کیږي، هغه لرګوټي شمیرې او وایي ۵ بنډله د لسیو او ۶ یو دانه یې دي چې ټوله ۵۶ کیږي.

– ښاغلی ښوونکی دې له یوه زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي چې اصلاً څلور بنډله د لسیو، وه اوس څرنګه ۵ بنډله د لسیو شول، او له کومې خوا شول، که چیرې زده کوونکی ځواب ووایي ښه به وي او له هغه پرته ښاغلی شوونکی دې

ووايې چې يو بنډل د لسيو، د يويزو حاصل ؤو، کله چې د ۴ بنډلونو سره يو ځای شول نو ۵ بنډله د لسيو يې جوړ کړل، بيا دې زده کوونکي په وار سره راوغواړي ترڅو دا عمليه په دړه باندې وليکي. ښايې چې ځينې زده کوونکي ستونزې ولري چې لومړۍ، د دوو لومړنيو اجزاو د يويزو د مرتبو د جمعې حاصل پيدا او بيا يې نتيجه د دريم جز د يويزو له مرتبې سره جمع کړي او د حاصل د لرلو په صورت کې، حاصل د لسيزو له مرتبې سره جمع کړي. ښاغلی ښوونکی دې پوښتنه داسې تشريح کړي.

په لومړی واري يويز سره جمع کړئ د هغو يويز د يويز تر لاندې وليکئ او لسيز يې حاصل ونيسئ.
په دويم واري لسيز سره جمع کړئ چې په نتيجه کې د جمعې د دی يو جزء د جمعې حاصل په لاس راځي.

| | |
|---|---|
| | ۱ |
| | ۱۵ |
| | ۱٦ |
| ۱٦ | + ۲۵ |
| | ۵٦ |

**۲- مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۴۰) مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې په کتاب کې د جمعې د دريو جزء جمع کول دي تشريح دې کړي او زده کوونکو ته دې بشپړ معلومات ورکړل شي. بيا دې د دې مخ دري نوري پوښتنې په دريو ګروپونو وويشل شي ترڅو زده کوونکي په ګروپي ډول کار ورباندې وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه کوي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته ورسره وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايې چې د دريو جزو په جمع کولو کې لومړۍ کومې مرتبې يو له بله سره جمع کيږي؟

– څوک وايې که چيری په جمع کې درې جزء د جمعې په يوه پوښتنه کې درکړل شوي وي په هم هغه پوښتنه کې د دوو جز د جمعې حاصل زيات ده؟ او که د دري جزو د جمعې حاصل؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۲۳ | ۵٦ | ۴۹ |
| ۲۱ | ۲۵ | ۱۲ |
| + ۱۷ | + ۳۰ | + ۱۳ |

**ذهنيت:** زده کوونکي د داسې عملېې په سرته رسولو سره چې دري جزء ولري د رياضی له زده کولو سره مينه او علاقه پيدا کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي د داسې عملېې په پوهيدو سره خپل ورځنۍ ستونزې حل کوي مثلاً زده کوونکی د چای، بوري او خوړې د رانيولو لپاره بازار ته ځي په ۲۲ افغانيو چای د ۳۵ افغانيو بوره او د ۴۲ افغانيو خوړه رانيسې نوموړی زده کوونکی د پيسو په ورکولو کې له ستونزو سره نه مخامخ کيږي د رياضې افاده يې داسې ليکي.

۲۲
۳۵
+ ۴۲
۹۹

جمع کوي چې بايد ټولې ۹۹ افغانۍ هټيوال ته ورکړي.

**۴–کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړي او له ځانو سره دې راوړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۴۹ | ۴۵ | ۲۰ |
| ۳۲ | ۱۷ | ۳۷ |
| + ۱۸ | + ۱۹ | + ۴۲ |

## عنوان: د دریو جزو د جمع کول چې، حاصل ولری

**(۴۱) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکې ددریو عددونو دجمعې حاصل چې حاصل ولري پیداکړاي شي.

**اصطلاح ګاني:** دري جزء، جمع، حاصل، یویز او لسیز

**د لوست مرستندوی مواد:** د چاپیریال د شمیرلو وړ ساده مواد

### ۱ – فعالیتونه:

– ښاغلي ښوونکی! زده کوونکي دې په دري ګروپونو وویشل شي. بیا دې د یوه ګروپ کورنۍ دنده د بل ګروپ په وا سطه وکتل شي، هغه اشتباه ګاني چې د یو ګروپ په واسطه پید اکیږي، یا ویل کیږي په دړه باندې دې فهرست شي، کوشش دې وشي چې اشتباه ګانې د زده کوونکو په واسطه اصلاح او صحیح شي، د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی صحیح ځوابونه په دړه باندې تشریح کړي، بیا دې په وار سره له ګروپونو څخه پوښتنې وشي.

لومړی ګروپ: که چیرې د جمعې ددریو جزو د جمع کولو په وخت کې د یویزو د جمعې حاصل یو دوه رقمې عدد شي، د هغو لسیز هم لیکئ او که څرنګه؟

دویم ګروپ: ستاسو ددري واړو ګروپونو زده کونکي چې مخکې په ګروپونو ویشل شوي یاست څو دي؟ او په هغه کې څویونږ او څو لسیز دي؟

دریم ګروپ: ۳۱+۴۲+۱۶ دریو جزو د جمعې په عملیه کې، د یویزو د جمع کولو وروسته، حاصل شته دئ او که نه؟

– ښاغلي ښوونکي دې د ۲۴، ۲۲ او ۲۸ په شمیر لرګوټي په دریو مختلفو ځایونو کې چې د لسیو بنډلونه او یوه دانه یي لرګوټي ولري کښیږدي او یوه زده

له خپل یوه ټولګیوال سره کار او جمع یې کړئ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| .۲ | ۵۱ | ①۱۶ | ①۴۸ | ①۵۶ | ۱۲ | ۳۰ |
| | ۲۳ | ۲۰ | ۲۱ | ۲۷ | ۲۵ | ۲۴ |
| | +۱۳ | +۶ | +۲ | +۴ | +۵۱ | +۲۰ |
| | ۸۷ | ۴۲ | ۷۱ | ۸۷ | ۸۸ | ۷۴ |
| .۳ | ①۲۷ | ①۳۵ | ①۴۷ | ۲۳ | ①۱۵ | ۲۲ |
| | ۴۳ | ۲۱ | ۱۲ | ۲۳ | ۴۷ | ۱۳ |
| | +۱۴ | +۲۵ | +۷ | +۲۳ | +۳۵ | +۴۲ |
| | ۸۴ | ۸۱ | ۶۶ | ۶۹ | ۹۷ | ۷۷ |

.۴ ۲۵ + ۳۷ + ۲۵ = ۸۷ .۵ ۳۶ + ۱۸ + ۱۲ = ٦٦

**کورنۍ دنده:**

کوچنیان مرۍ په تار کې اچوي چې په مارکیټ کې یې وپلوري هر تار څو قیمت لري؟




.۲ ٦۱ افغانۍ .۳ ۸۹ افغانۍ .۴ ٦۷ افغانۍ

۴۱

کوونکی ته دې ووایي چې راشي دا لرګوټي سره یو ځاي یعني جمع کړي.

– ښاغلي ښوونکي دې پاملرنه وکړي چې زده کوونکي د یویز له یوځاي کولو وروسته د لسي بنډل جوړوي او که نه؟ که چیرې د لسئ بنډل جوړ کړي ښه تر ښه ، او له هغه پرته ښاغلي ښوونکي دې یادونه وکړي کله چې لرګوټي لس یا له لسو څخه زیاتیږي له هغو څخه دلسو یوبنډل جوړؤو، چې دلسیو له بنډلونو سره یوځاي ایښودل کیږي چې په حقیقت کې د لسو دا بنډل د یویزو حاصل بلل کیږي.

### ۲– مشق او تمرین:

ښاغلي ښوونکي دي د زده کونکو پام د کتاب ۴۱ مخ ته را وګرزوي.

د (۲) ګڼې پوښتنه دې لومړي ګروپ ته ، د (۳) ګڼې پوښتنه دې دویم ګرپ ته او د (۴) ګڼې پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړي، تر څو زده کوونکي په ګروپي ډول کار

وکړي او ښاغلي ښونکي دې د کار د جريان څارنه وکړي د ستونزر په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳– ارزونه:**

**ددې لپاره چي ښاغلي ښوونکي پوه شي آيا خپل هدف ته رسيدلئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دي لاندې پوښتنې وکړي.**

**پوهه:**

**– څوک په شفاهي توګه د ۹، ۵ او ۴ د جمعي حاصل وايې؟**

**– څوک وايې چي د ۵، ۴ او ۵ له دريو عددونو څخه لومړي د کوم دوو عددونو جمع کول آسانه دي؟**

**مهارت:**

**زده کوونکې وکړای شي لاندې د جمعې پوښتنې چې دري جزء لري له ستونزو پرته حل کړائ شي.**

| | | |
|---|---|---|
| ۱۴ | ۲۸ | ۱۸ |
| ۲۷ | ۳۱ | ۴۳ |
| + ۳٦ | + ۱۵ | + ۳۲ |

**ذهنيت:**

**زده کوونکي د هغو پوښتنو له حل کولو څخه چې دري جزء لري خوند اخلي.**

**ارزښت:**

**زده کوونکي په خپلو ورځنۍ معاملو کي خپل ستونزي حل کوي لکه ( په يوه بڼ کي ۱۳ ونې د آلو، ۱۵ ونې د توت او ۱۸ ونې د منو د اوبو د نشتوالی له کبله وچې شوي، ټولي څو ونۍ وچۍ شوي دي؟ زده کوونکي د پورته پوهي او مهارت په اخيستلو سره د ( ۱۳ + ۱۸ + ۱۵ ) افاده ليکی او د هغو ځواب چي ټولې ۴٦ ونې دي پيداکوي.**

**۴– کورنۍ دنده:**

**ښاغلي ښوونکی: زده کوونکې دې د ۴۱ مخ د پاي يا وروستۍ څلور پوښتنې خپلو کتابچو ته نقل او حل کړي اوله خپل ځانو سره دې راوړي د هرې مرۍ بيه په رسم شوي شکل کي ورکړل شوي ده.**

# عنوان: د دوه رقمې عددونو د جمعې کولو مشق او تمرین

**(۴۲ او ۴۳) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**موخه:** زده کوونکي وکړای شي د دوه رقمې عددونه د شیانو یا جنسونو د بیه له مخې جمع کړي.

**اصطلاح ګانې:** جمع، جنسونه یا شیانو، بیه، افغانۍ.

**د لوست مرستندوی مواد:** قلم، کتاب، کتابچه او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلي ښوونکي دې زده کوونکي په دري ګروپونو وویشي بیا دي دیوه ګروپ کورنۍ دنده د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. کومې اشتباه ګانې چي زده کوونکي په ګوته کوي په دړه باندې دې ولیکل شي، او داو طلب زده کوونکي دې راوغوښتل شي د مریو د بیه له مخې، د مرۍ لرونکي د هر تار په بیه کي چي اشتباه شوي ده صحیح دي کړي. او ښاغلي ښوونکي دې له زده کوونکي سره مرسته اولارښوونه ورته وکړي، او بیا دي په ګروپي ډول له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.

لومړي ګروپ: د مستطیل ډول مرۍ بیه څو افغانۍ دي ؟

دویم ګروپ: دمثلث بیه مرۍ بیه څو افغانۍ دي؟

دریم ګروپ: د دایري ډوله مرۍ بیه څو افغاني دي؟

– ښاغلي ښوونکي دي څلور شیان لکه قلم، کتاب، کتابچه او پنسل په میز باندي کښیږدي او بیا دي ددړي په مخ باندي داسې ولیکي.

| قلم | کتاب | کتابچه | پنسل |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱۶افغانۍ | ۲۵ افغانۍ | ۲۰ افغانۍ | ۸ افغانۍ |

څرنګه چي هر یوه شئ ته په افغانۍ سره قیمت ورکړ شوئ ده. نو بیا دې له یوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي، زه ۲۸ افغانۍ لرم له پورته شیانو څخه کوم دوه شئي اخیستلاي شم، ښه فکر وکړه. که چیري زده کوونکي کتابچه او پنسل وویل ښه تر ښه، له هغه پرته ښاغلي

### د دوو رقمي عددونو د جمعې مشق او تمرین

حبیب ۹۳ افغانۍ لري هغه په دې افغانیو له لاندې شیانو څخه کوم دوه شیان رانیولای شي.










۴۹ افغانۍ    ۴۸ افغانۍ    ۴۵ افغانۍ    ۴۰ افغانۍ

حدس ووهئ ترڅو درته معلوم شي چې ستاسو حدس صحیح دی او که نه؟

| د دې دواړو جنسونو قیمت زیاتیږي: کوشش وکړئ داسې شی واخستلای شئ چې قیمت یې لږ وي. | زه نږدې یم خو قیمت یې اوس هم زیات دی کوشش وکړئ داسې شی واخلئ چې بیاهم لږ قیمت ولري. | تاسو پوره پیسې لرئ چې دا دوه شیان واخلئ. |
| --- | --- | --- |
| ۴۹ افغانۍ<br>۴۸ افغانۍ<br>۹۷ افغانۍ | ۴۹ افغانۍ<br>۴۵ افغانۍ<br>۹۴ افغانۍ | ۴۹ افغانۍ<br>+ ۴۰ افغانۍ<br>۸۹ افغانۍ |

حبیب جاکټ اوکرتۍ را نیولای شي.

له خپل ګروپ سره خبرې وکړئ.

۱– حبیب په ۹۳ افغانیو نور کوم دوه شیان را نیولای شي؟

مرسته: هلته درې نور امکانات شته.

پطلون او جاکت    جاکت او بوټ    پطلون او بوټ

حل یې کړئ او فکر وکړئ

۲– جمیله ۸٦ افغانۍ لري هغه غواړي چې له پورته شیانو څخه دوه شیان را ونیسي هغه کوم دوه شیان را نیولای شي؟

جمیله پطلون او جاکت را نیولای شي.

۴۲

ښوونکي دې ووایي په پورته راکړل شو قیمتونو کې کوم دوه قیمتونه یو له بل سره جمع کړو چي د جمعې حاصل ۲۸ شي، ښائي چي زده کوونکي ووایي ۲۰ افغانۍ او ۸ افغانۍ دي.

په همدې ډول احمد ته دي ووایې، ته ۴۱ افغانۍ لري قلم او کتاب اخستلاي شئ. هغه فکر کوي او ځواب پیدا کوي، که چیري ځواب پیدانکړي ښاغلي ښوونکی کولاي شي د قلم او کتاب قیمتونه یو له بله سره جمع کړي.

په همدې ډول ټولو زده کوونکو ته دي ووایې که چیري هریو د تاسو ٦۵ افغانۍ ولري څو امکان لري چي له پورته شیانو څخه دري شیان واخلي، زده کوونکي دې د لوبې په ډول کار وکړي. او ښاغلي ښوونکي دې څارنه کوي چي هر یو څو امکان پیداکولاي شي، او نور امکانات دې ښاغلي ښوونکي ووایې.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې دزده کوونکو پام د کتاب (۴۲) مخ ته را وګرزوي، د کتاب په مثال کې، د کرتې، بوټ، پطلانه او جاکت قیمتونه په واضح او روښانه توګه زده کوونکو ته ورکړل شوي دي، ټول امکانات دي په ګروپې ډول پیداکړي، او پام دې وکړي چې کوم ګروپ زیات امکانات پیدا کولای شي، هغه ګروپ دې تشویق کړي ددې مخ د (۱ او ۲ ) ګڼې پوښتنې دې ښاغلي ښوونکي حل کړي ( ښاغلی ښوونکی دې پام ونیسي چې د جنسونو او شیانو قیمتونه له یاد شوو پیسو څخه زیات نشيء، که چیري قیمت یې کم یا لږ کیږی هغه هم په امکاناتو کې شامل دي) . په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۴۳ ) مخ ته راوګرزوي د (۳ ) ګڼې پوښتنه دې لومړی ګروپ ته، ( ۴ او ۵ ) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته او همدارنګه (٦ او ۷ ) ګڼې پوښتنې دې دریم ګروپ ته ور کړي تر څو پوښتنې په ټولګی کې حل کړي او ښاغلی ښوونکي دې د کار مراقبت وکړي.

دشیانو قیمت ته په کتلو سره لاندي پوښتنو ته ځواب وکړي.

| | | |
|---|---|---|
| ناوه کی | جورابي | قلم |
| ۲۹ افغانی | ۴۹ افغانی | ۴۲ افغانی |
| کتاب | عینکی | موټرکی |
| ۳۵ افغانی | ۳۰ افغانی | ۲۵ افغانی |

۳– جمیله ٦۹ افغانی لري هغه غواړي چې دوه شیان واخلي هغه کوم شیان اخســتلای شي.

جمیله _ناوه کی او کتاب_ اخیستلای شي.

۴– جمیله په ٦۹ افغانیو نور کوم دوه شیان اخیستلای شي.

جمیله _ قلم او موټرکی _ اخیستلای شي.

۵– جمشید ٦۰ افغانی لري هغه غواړي له پورته شیانو څخه دوه شیان واخلی هغه کوم شیان اخیستلای شي.

جمشید موټر کی او ناوه کی اخیستلای شي.

٦– جمشید په ٦۰ افغانیو نور کوم دوه شیان اخیستلای شي؟

جمشید عینکی او موټر کی اخیستلای شي.

**کورنی دنده:** جمیله غواړي چې درې شیان واخلي. آیا پوره پیسې ورته لري؟ تاسو څرنګه پوهیږي؟

۴۳

**۳– ارزونه:**

ښاغلي ښوونکی دي د خپل ځان د ډاډيني لپاره له زده کوونکو څخه لاندي پوښتنې وکړي.

**پوهه:**

– څوک ددا سي دوو عددونو نومونه اخلي چي د جمعي حاصل یې د ۹۰ او ۱۰۰ تر منځ وي؟

– څوک وایي آیا په ٦۵ افغانیو یو بکس چې قیمت یې ۵۰ افغانی او یوه کتابچه چې قیمت یې ١٦ افغانی وي رانیولای شو او که نه؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي د خپلو پیسو سره سم خپل د اړتیا وړ شیان راونیسي.

**ذهنیت:**

زده کوونکی د پورته مهارت په درلودلو او فکر کولو سره په ځان او نفس باور پیداکوي او خوبنې ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د پوهې او مهارت په پیداکولو سره په ورځنی ژوند کې کار اخلي.

**۴–کورنی دنده:**

ښاغلی ښوونکی زده کوونکي دي د (۴۳ ) مخ د کورنی دندې په برخه کې فکر وکړي او ځوابونه دي د خپل ځانو سره راوړي.

## عنوان: له دوه رقمي عدد څخه د يوه رقمي عدد تفريق كول، چې په هغه كې عدد پور (قرض) اخيستل وي

## شلم لوست : (۴۴ او ۴۵) مخونه

**وخت:** دوه ساعته (۴۵ دقيقه يې)

**موخه:** زده کوونکي له دوه رقمي عدد څخه د يوه رقمي عدد چې په هغه کې پور اخيستل وي تفريق کړای شي.

**اصطلاح ګاني:** تفريق، دوه رقمي، يو رقمي، پوراخيستل.

**دلوست مرستندوی مواد:** يو دانه يې لرګوټي، د لسيو بنډلونه، او نور د چاپيرال مواد.

**۱ – فعاليتونه**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په دري ګروپونو وويشئ، د زده کوونکو کورنی دنده دې په ځير سره وکتل شي. هغه چاچې کورنی دنده په صحيح تو ګه حل کړې دي په ښو او تشويق کوونکو کلمو سره دې تشويق شي. او هغه چا چې اشتباه ګاني کړې دي په ډير صميميت او شفقت سره دې لاربښوونه ورته وشي. او بيا دې لاندې پوښتنې وشي.

له لومړي ګروپ څخه احمده: که چيرې ۴۵ افغانۍ ولرې کوم دوه شيان چې د هغوی بيه له ۴۵ افغانيو څخه زياته نشي را نيولای شې؟

له دويم ګروپ څخه زلمي: که چيرې د جوراابو بيه ۴۹ افغانۍ اود قلم بيه ۴۲ افغانۍ وي په ۸۵ افغانيو دواړه شيان رانيولای شې؟

له دريم ګروپ څخه يوسف: که چيرې د يوه ټوک کتاب بيه ۲۸ افغانۍ، د يوه قلم بيه ۲۰ افغانۍ او د يوې کتابچې بيه ۱۵ افغانۍ وي او ته ۵۰ افغانۍ ولرې آيا تاسو دري واړه شيان رانيولای شئ؟ او که دوه شيان رانيولای شئ؟

–ښاغلي ښوونکی د ۲۴ په شمير لرګوټي چې دوه بنډله د لسو او ځلور يو دانه يې دي په خپل ميز باندې کښيږده، بيا يوه زده کوونکی ته ووايه راشه له دې لرګوټو څخه د ۹ په شمير لرګوټي کم کړه، څرنګه چې تاسي پوهيږئ يويز له يويز څخه تفريق کوو.





### څلورم فصل

### د دوه رقمي عددونو تفريق

### شلم لوست

**له دوه رقمي عدد څخه ديوه رقمي عدد تفريق كول، چې په هغه كې پور(قرض) اخيستل وي**

هدف: زده کوونکي له دوه رقمي عدد څخه ديوه رقمي عدد چې په هغه کې پور اخيستل وي تفريق کړای شي.

مثال: تاسو ۲۱ قلمونه لرئ، غواړي چې د هغو څخه ۸ قلمونه خپل ورورته ورکړئ آيا په آسانه سره دا کار کولای شئ څرنګه؟




په شکل کې ليدل کيږي چې يوه دانه او دوه بنډلونه د لس ګونوشته دي تر هغه وخت پورې له هغو څخه ۸ خپل ورورته ورکولای نشئ. په دې صورت کې بايد دلسيو يوبنډل خلاص کړي دمثال په تو ګه:




اوس چې ټوله يوولس يودانه يې قلمونه او يو بنډل د لسيو دی له هغو څخه ۸ دانې قلمونه خپل ورور ته ورکړئ چې په پای کې ۳ دانې يودانه يې او يو بنډل د لسي پاته کيږي چې ۱۳ قلمونه کيږي په رياضي کې د تفريق دا عمليه داسې ښودل کيږي.

| | | |
|---|---|---|
| ⑪① | | |
| ۲۱ | ← | مفروق منه |
| ۸ − | ← | مفروق |
| ۱۳ | ← | دتفريق حاصل |

چې لوی عدد ته مفروق منه، کوچنی عدد ته مفروق او پاتې شوي عدد ته د تفريق حاصل وايي.

۴۴

کله چې زده کوونکي راځي اووينې چې يويز ځلور دانې لرګوټي دي او ۹ دانې لرګوټي له هغه څخه کم کيدای نشي ښائي چې ووايي ښاغلي ښوونکی دا خو تفريق کيدای نشي، بيا دې له نورو زده کوونکو څخه و پوښتل شي.څرنګه کيږي ؟ ښائي داسې زده کوونکي وي چې ځواب وويلای شي، او که چيرې ونشي ويلای ښاغلی ښوونکی دې ووايي ددې فعاليت د سرته رسولو د پاره يو بنډل د لسو په يويزو يعنې په يو دانه يې بدلوو او بنډل په لاندې توګه خلاصوؤ:



بيادې يوه زده کوونکی ته ووايي چې اوس د يويزو لرګوټو شمير څو دانې دي، هغه لرګوټې شميرې اووايي چې ۱۴ دانې لرګوټي دي، اوس کولای شو چې د ۱۴ دانو لرګوټو څخه ۹ دانې لرګوټې کم کړو؟ زده کوونکی ځواب وايي هو، احمد دې راشي ۹ دانې لرګوټي دی کم کړي، کله چې احمد ۹ دانې لرګوټي کم کړل بيا دې له محمود څخه پوښتنه وکړئ اوس ټوله څو دانې



لرګوټي پاتې دي، هغه ځواب ورکوي چې پنځه دانې یو دانه یې او یو بنډل د لسو پاتې دي. چې ټوله ۱۵ لرګوټي کیږي بیا دې ښاغلی ښوونکی داسې ووایي: ګرانو زده کوونکو کله چې د تفریق په عملیه کې یو شئ له بل شئ څخه کم کړو، خواه مخواه لومړی شئ باید له هغه شئ څخه زیات وي چې ورڅخه کمیږي. ځکه تاسو ولیدل تر څو چې مو د لسو یو بنډل خلاص نکړل، مونږ و نشو کړای چې د ۴ لر ګوټو څخه ۹ لرګوټي کم کړو.

**۲ – مشق او تمرین:**

ښاغلي ښوونکی دي د زده کوونکو پام د کتاب (۴۴) مخ ته راوګرزوي، هغه مثال چې په کتاب کې حل شوي دئ زده کوونکو ته دي تشریح اوواضح کړي، د چاپیریال موادو څخه په کار اخستو سره د زده کوونکو په واسطه دې کار وکړي. او په هغه کې دې زده کوونکو ته د مفروق منه، مفروق او د تفریق د حاصل د کلیمو مفهوم تشریح شي. تر څو د زده کوونکو په ذهن کې ځاي ونیسي. بیادي د زده کوونکو پام د کتاب ۴۵ مخ ته راو ګرزوي، څلور لومړنې پوښتني دي لو مړی ګروپ ته، او څلور دویمي پوښتني دې دویم ګروپ ته او څلور دریمي پوښتني دې دریم ګروپ ته ورکړي چې په ټولګی کې کار ورباندې وکړي ښاغلي ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت وکړي آیا زده کوونکی د پور اخستلو څخه کار اخلی او که نه؟

**۳ – ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوې لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دی لاندې پوښتنې وکړي، د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه :**

– څوک وایې چې د تفریق په یوه عملیه کې مفروق منه زیات ده او که مفروق؟

– څوک وایي چې د تفریق په یوه عملیه کې مفروق منه زیات ده او که د تفریق حاصل؟

**مهارت:**

زده کوونکی لاندې پوښتنې د پور یا قرض اخستلو په صورت کي حل کړائ شي.

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ | ۳۶ | ۶۳ |
| – ۷ | – ۹ | – ۸ |

**مشق او تمرین: له دوه رقمي عدد څخه دیوه رقمي عــددتفریق کــول دپــور (قرض) اخیستلو په صورت کې .**

**لاندې پوښتنې تفریق کړئ.**

| | | | |
|---|---|---|---|
| (۲)(۱۲) | (۱)(۱۷) | (۱)(۱۶) | (۱)(۱۴) |
| ۳۲ | ۲۷ | ۲۶ | ۲۴ |
| – ۵ | – ۹ | – ۸ | – ۷ |
| ۲۷ | ۱۸ | ۱۸ | ۱۷ |
| (۴)(۱۷) | (۴)(۶) | (۳)(۱۵) | (۲)(۱۸) |
| ۵۷ | ۵۱ | ۴۵ | ۳۸ |
| – ۸ | – ۶ | – ۸ | – ۹ |
| ۴۹ | ۴۵ | ۳۷ | ۲۹ |
| (۸)(۱۵) | (۷)(۱۲) | (۶)(۱۰) | (۵)(۱۴) |
| ۹۵ | ۸۲ | ۷۰ | ۶۳ |
| – ۷ | – ۶ | – ۱ | – ۹ |
| ۸۸ | ۷۶ | ۶۹ | ۵۴ |

۴۵

**ذهنیت:**

د پور اخستلو د عملیې په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت :**

زده کوونکی ددې عملیې په پوهیدو سره د ورځنۍ ژوند په معاملو کې کار اخلي ( مثلا هغوي زده کوي چې څرنګه کولای شي له ۵۰ افغانیو څخه ٦ افغانۍ په مصرف ورسوي. ځکه کله چې هټیوال ته ۵۰ افغانۍ ورکړي هغه باید پوه شي چې هټیوال باید د لس افغانیو یو لوټ په یوه افغانیزو بدل کړي او هغه ۴۴ افغانۍ بیرته ورکړي).

**۴ – کورنۍ دنده:**

هریو زده کوونکی دي لاندې پوښتنې حل او له ځان سره راوړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۲٦ | ۱۷ | ۳۲ |
| – ۸ | – ۹ | – ۷ |

## عنوان: له دوه رقمي عددونو څخه د دوه رقمي عددونو تفریق(د پور اخستلو په صورت کې)

### یوویشتم لوست: (۴۶)مخ

**وخت: دو ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**موخه:** زده کوونکي له دوه رقمي عدد څخه ددوه رقمي عدد چې په هغه کې پور اخستل وي تفریق کړای شي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، تفریق، پوراخستل، یویز او لسیز.

**دلوست مرستندوی مواد:** لرګوټي او نور د چاپیریال د شمیرلو وړ مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي دې په دري ګروپونو وویشل شي، بیادي د یوه ګروپ کوربنی دنده دبل ګروپ په واسطه وکتل شي. هر هغه اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه په ګوته کیږي ددرې په مخ باندې دې فهرست شي، کوښښ دې وشي چې اشتباه ګانې د زده کوونکو په واسطه صحیح او اصلاح شي، او له هغه پرته ښاغلي ښوونکی دې اشتباه ګانې اصلاح او تشریح کړي بیادې لاندې پوښتنې وکړي.

له لومړي ګروپ څخه احمده: له یوه رقمي عدد څخه دوه رقمي عدد تفریق کولای شې؟

له دویم ګروپ څخه زلمې: له کوچني عدد څخه لوي عدد تفریق کولای شې؟

له دریم ګروپ څخه محمود: د تفریق په یوه عملیه کې د تفریق حاصل زیات دی او که مفروق منه؟

– ښاغلی ښوونکی دې ۳ بنډله د لسو او ۵ یو دانه یې په شمیرلرګوټي په خپل میز باندې کښیږدي بیا دې یوه زده کوونکی ته ووایي چې راشي له دې لرګوټو څخه ۱۸ دانې لرګوټي کم کړي. زده کوونکی راځي ښاغلي ښوونکی دې پاملرنه وکړي چې زده کوونکی یویز له یویز او لسیز له لسیز څخه تفریق کوي او که نه؟

ښاغلی ښــــوونکی دې مرسته وکړي اوودې وایي چې یویز له یویزو او لسیز له لسیزو څخه تفریق کړئ. بیابه زده کوونکی دې ته متوجه شي چې له ۵ یویزو څخه ۸ یویز کم کولای نشو نو څــه بـایـد وکړو. که چـیري زده کوونکی وکړای شي نو ښه به وي او له هغه پرته له نورو زده کوونکو څخه دې پوښتنه وشي، ښائي داسې زده کوونکی پیدا شي او ووایې چې د لسو یو بنډل خلاصؤوله یویزو سره یې یو ځای کووچې ۱۵ یو دانه یې لرګوټي کیږي وروسته له هغه څخه ۸ کموو، چې ۷ یو دانه یې پاتې کیږي بیا د ۲ لسیز بنډلونو څخه یو بنډل د لسو کموو چې یو بنډل د لسو پاتې کیږي او په عملي تو ګه دې د زده کوونکی په واسطه داسې کار وشي.



په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې نور فعالیتونه د موادو څخه په کار اخستو سره د زده کوونکو په واسطه سرته ورسوي. ترڅو زده کوونکی د پور اخستلو په مفهوم پوه شي. او په عمل کې له هغه څخه کار واخلي.

**یو ویشتم لوست**

**له دوه رقمي عددونو څخه د دوه رقمي عدد تفریق (د پور اخستلوپه صورت کې)**

هدف: زده کوونکي له دوه رقمي عدد څخه ددوه رقمي عدد چې په هغه کې پور اخیستل وي تفریق کړای شي.

لومړی مثال: د تاسو اورلګیت ۴۵ لرګوټي لري او غواړئ چې داورلګیت ۱۸ دانې خپل ورور ته ورکړي داکار څرنګه سرته رسوی شي؟

| لسیز | یویز |
|---|---|
| ۴ | ۵ |
| –۱ | ۸ |
| ۲ | ۷ |

پوهیږو چې ۴۵ د لسیو څلور بنډلو او ۵ یودانه یي څخه جوړ شوی دی او د ۱۸ عدد له یوه بنډل لسي او ۸ یوه دانه یي څخه حاصل شوی دی.

اوپه دې هم پوهیږو چې د تفریق په عملیه کې یویز له یویز او لسیز لــه لســیز څخه منفي کوو. څرنګه چې د لوی عدد (مفروق منه) د یویزو رقم ۵ یودانه یي دی او له هغه څخه د ۸ یو دانه یي عدد منفي کیدای نشي نو د لسي یوبنــډل خلاصوو او په لسو یودانه یي بدلوو.




لس یودانه یي چې له ۵ یو دانه یي سره یوځای شي ۱۵ یودانه یي حاصلیږي او د لسیو له بنډلو څخه دلسیو درې بنډله پاتې کیږي. د۱۵ یودانه یي څخه چې ۸ یودانه یي منفي کړو ۷ یو دانه یي پاتې کیږي اوله دریو لسیو څخه چې یو بنډل د لسیو منفي شي ۲ بنډله پاتې کیږي چې د تفریق د دې عملیې په نتیجــه کــې ۲۷ لرګوټي پاتې کیږي.

۴۶

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۴۶) مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې په کتاب کې حل شوی دئ د زده کوونکو په واسطه دې په دړه باندې تشریح شي. که چیري زده کوونکی ونشو کړائ ښاغلی ښوونکی دې د موادو څخه په کار آخستو سره تشریح کړي او زده کوونکو ته دې وواېي د تفریق په عملیه کې هم یویز تر یویز لاندې او لسیز تر لسیز لاندې لیکل کیږي. او همدارنګه په لومړی وار کې یویز له یویزو څخه تفریق کیږي اود تفریق د حاصل تر لاندې د یویزو په ځای کې لیکل کیږي. که چیري اړتیا وي پور دې واخستل شي په دویم واري لسیز له لسیزو څخه تفریق کیږي.

**۳- ارزونه:**

ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان د ډاډ من کیدو لپاره لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي:

**پوهه:**

- څوک واېي چې ۲۵ یو دانه یې زیات دي او که دری بنډله دلسو؟
- آیا له دری بنډلو د لسو څخه ۲۵ یو دانه یې تفریق کیدای شي؟

**مهارت:**

زده کوونکی په عملي توګه وکړائ شي د ۱۵ - ۶۰ افادې د تفریق حاصل پیداکړي.

او هم زده کوونکي وکړائ شي د ۵۶ - ۷۲ افادې د تفریق حاصل پیداکړي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي د پورته مطلب په پوهیدو سره په خپل ځان باور پیدا کوي او خوند اخلي.

**ارزښت:**

زده کوونکي په ورځنی ژوند کې خپل ستونزي حل کوي.

د مثال په توګه یو زده کوونکی د ۲۰ افغانیو دوه لوټ یعنې ۴۰ افغانی د دووکیلوګرام کچالو درانیولو لپاره بازارته وړي. او د ۲۵ افغانیو په بیه سره دوه کیلو ګرامه کچالو رانیسي هغه کومه پوه چې له دې لوست څخه یې په لاس راوړي ده باید پوه شي چې:

| | |
|---|---|
| ③ | ⑩ |
| ۴ | ۰ |
| - ۲ | ۵ |
| ۱ | ۵ |

۱۵ افغانی له هتیوال څخه بیرته اخلي

**۴- کورنی دنده:**

زده کوونکي لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل او له ځانو سره راوړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۸۶ | ۳۱ | ۷۳ |
| - ۴۷ | - ۲۵ | - ۳۷ |

## عنوان: له دوه رقمې عددونو څخه د دوه رقمې عددونو تفریق د پور اخستلو په صورت کې

**(۴۷، ۴۸) مخونه**

**وخت :دوه ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**موخه:** زده کوونکي وکړاي شي له دوه رقمې عددونو څخه دوه رقمې عددونه د پور اخستلو په صورت کې تفریق کړي.

**اصطلاح ګانې:** دوه رقمې، مفروق منه، مفروق، د تفریق حاصل ، یویز ، لسیز.

**د لوست مرستندوي مواد:** لرګوټې، د چاپیریا نور مواد.

**۱- فعالیتونه :**

– ښاغلی ښوونکی: زده کوونکی دې په دري ګروپونو وویشل شي د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه و کتل شي، کومې اشتباه ګانې چې د هر زده کوونکی په واسطه په ګوته کیږي ددرې په مخ باندې دې فهرست شي کوشش دې وشي، هر زده کوونکی چې کومه اشتباه پیداکړیده صحیح ځواب دي هم دهم هغه زده کوونکۍ په واسطه پیدا شي.

ښاغلی ښوونکی دي متوجه وي ښائي ځیني زده کوونکی په صحیح پوښتنه باندې د اشتباه فکر وکړي زده کوونکو ته اجازه ورکړي چې د پوښتنو په برخه کې خپل تر منځ آزاد بحث او مذاکره وکړي. کومه پوښتنه چې زده کوونکی یې نشي حل کولاي ښاغلئ ښوونکی دې د هغه صحیح ځواب تشریح کړي بیا دې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړي ګروپ دي ووایي د ۲۵ او ۱٦ په عددونو کې کوم عدد له کوم عدد څخه تفریق کوو؟

دویم ګروپ د ؟= ۲۵ – ۱۷ د تفریق عملیه صحیح ده او که غلطه؟

دریم ګروپ د ؟= ۱۸–۱۲ او ؟= ۱۲–۱۸ د تفریق په عملیو کې کومه یوه یي صحیح ده؟

ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکۍ و درې ته راوغواړي

دا عملیه په ریاضې کې داسې اجراء کوو

| يويز | لسيز | |
|---|---|---|
| (۱۵) | (۳) | |
| ۵ | ۴ | ← مفروق منه |
| ۸ | –۱ | ← مفروق |
| ۷ | ۲ | ← دتفریق حاصل |

دوهم مثال:

| | |
|---|---|
| ۳۴ | ← مفروق منه |
| – ۱٦ | ← مفروق |
| ۱۸ | ← دتفریق حاصل |

په پورتني شکل کې نشو کولاى سمدلاسه د۳۴ له عدد څخه د۱٦ عــدد تفریق کړو. ترڅو چې یو بندل دلسي په یوه دانه یې بدلي نکړو نولــه دې امله یولسي په یوه دانه یې باندې بدلوو او وروسته عملیه سرته رسوو.

په دې شکل کې لیدل کیږي چې ۱۴ یو دانه یې او ۲ لسئ حاصل شــوي دي که چیري له ۱۴ یودانه یې څخه ٦ یودانه یې منفي شي ۸ یودانه یې پاتي کیږي اوله ۲ لسیو څخه چې یو لسي منفي شي ۱ لسي پاتي کیږي دمثال په توګه :

| يويز | لسيز | |
|---|---|---|
| (۱۴) | (۲) | |
| ۴ | ۳ | ← مفروق منه |
| ٦ | –۱ | ← مفروق |
| ۸ | ۱ | ← دتفریق حاصل |

۴۷

او هغه ته دي ووایي د ۴۵ له عدد څخه د ۱۸ عدد تفریق کول په یوه جدول کې چې د یویز او لسیزو ښوونکی وي تفریق کړه.

که چیري زده کوونکی وکړائ شي ښه به وي، له هغه پرته یو داو طلب زده کوونکۍ دې راوغوښتل شي تر څو پوښتنه حل کړي، بیا دي ښاغلی ښوونکی دویم مثال په دره باندې داسي تشریح کړي. د دوو رقمې عددونو د تفریق په عملیه کې یوېز د یویزو لاندې او لسیز د لسیزو لاندې لیکو. که چیري د مفروق منه یویز د مفروق له یویز څخه کوچنۍ وي دمفروق منه له لسیزو څخه یو لسئ پور اخلو اوله یویزو سره یي یو ځاي کوو، وروسته له هغه یویز له یویزو څخه تفریق کوو، په دویم واري کي د مفروق منه له پاتې لسیزو څخه د مفروق لسیز تفریق کوو. لکه مخامخ شکل ته پاملرنه وکړئ

| | |
|---|---|
| ۳۴ | ← مفروق منه |
| ۱٦ – | ← مفروق |
| | ← دتفریق حاصل |

مونږ نشو کولاي د ۴ له عدد څخه د ٦ عدد تفریق کړو تر څو د لسو بنډل په یو دانه یې سره بدل نکړو په دې صورت کې یو لسیځ په ۱۰ یو دانه یې بدلوو، بیا د تفریق عملیه سرته رسوو.
تاسو په علمي توګه ولیدل تر څو چې یو لسیځ په یو دانه یې بدل نشو، تفریق مو و نشو کړای.

| لسیز | یویز | |
|---|---|---|
| (۲) | (۱۴) | |
| ۳ | ۴ | ← مفروق منه |
| ۱− | ٦ | ← مفروق |
| ۱ | ۸ | ← د تفریق حاصل |

د ریاضي په افاده کې مو هم د ۴ له عدد څخه د ٦ عدد تفریق ونشو کړای کله چې د لسیزو څخه پور واخستل شو او له ۴ سره یو ځای شو ۱۴ په لاس راغلل بیا مو ٦ ورڅخه تفریق کړ، د پور له اخستلو وروسته ۲ لسیه پاتې کیږي، یو لسي چې ورڅخه تفریق شو نو یو لسیځ پاتې کیږي.

**۲- مشق او تمرین:**
ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب ۴۸ مخ ته راوګرزوئ هغه پوښتنې چې د دوو رقمي عددونو د تفریق د مشق او تمرین لپاره در کړل شوي دي، (۱) پوښتنه دې لومړي ګروپ ته، (۲) پوښتنه دې دویم ګروپ ته او همدارنګه (۳) پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شئ چې پوښتنې په ټولګی کې حل کړي او په هغوی کې مفروق منه، مفروق او د تفریق حاصل وښیي، او ښاغلی ښوونکی دې د کار مراقبت وکړي.

**۳- ارزونه:**
ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان د ډاډمن کیدو لپاره له زده کوونکو څخه د پوهې او مهارت لاندې پوښتنې وکړي.
**پوهه:**
- څوک وایي د ?= ۱۷-۵٦ په افاده کې کوم یو مفروق منه او کوم یو مفروق ده؟
- **آیا** د ? = ۱۵-۳۴ په افاده کې د ۱۵ عدد ته مفروق او د ۳۴ عدد ته مفروق منه ویلای شو؟ تاسو څه فکر

**مشق او تمرین: ددوو رقمي عددونوتفریق.**
عددونه تفریق کړئ او په هغوی کې مفروق منه، مفروق او د تفریق حاصل وښایاست.

| | د تفریق حاصل | مفروق | مفروق منه | د تفریق حاصل | مفروق | مفروق منه | د تفریق حاصل | مفروق | مفروق منه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| .۱ | ۱۸ | ۳۱ | ۴۹ | ۳۹ | ۲۵ | ٦۴ | ٦۷ | ۱۴ | ۸۱ |
| .۲ | ۵۰ | ۱۲ | ٦۲ | ۷ | ۱۵ | ۲۲ | ۳۷ | ۳٦ | ۷۳ |
| .۳ | ۳۷ | ۱۹ | ۵٦ | ۲۹ | ۹ | ۳۸ | ۸۷ | ۷ | ۹۴ |

**کورنۍ دنده:**
تفریق یې کړي.

.۱ ٦۹ − ۴۹ = ۲۰    ۴۵ − ۳۵ = ۱۰
.۲ ۵۴ − ۳۴ = ۲۰    ۷۷ − ۱۸ = ۵۹
.۳ ۸۳ − ۴۴ = ۳۹    ۹۱ − ٦٦ = ۲۵

۴۸

کوي؟
**مهارت:**
زده کوونکی وکړای شي د تفریق پوښتنې چې په هغه کې د مفروق د یویزو رقم د مفروق منه د یویزو له رقم څخه لوي وي یعني پور اخستلو ته اړتیا ده په آسانۍ سره حل کړي.
**ذهنیت:**
زده کوونکی د پورته مهارت په پیداکولو او پوهیدلو سره چې د تفریق په عملیه کې سرته رسوي د ریاضي سره مینه او علاقه پیداکوي.
**ارزښت:**
د تفریق د داسې پوښتنو په حل کولو سره زده کوونکي د خپل ژوند ورځنې ستونزې حل کوي.
**۴- کورنۍ دنده:**
ښاغلی ښوونکی د ۴۸ مخ (۱) ګڼه پوښتنه لومړي ګروپ ته او د هغه (۲) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او (۳) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته د کورنۍ دندې په توګه ورکړي چې په خپلو کتابچو کې یې حل کړي.

# عنوان:د دوه رقمي عددونو د تفريق مشق او تمرين

**(۴۹) مخ**

**وخت: دو ساعته (۴۵ دقيقه يي)**

**هدف:** زده کوونکی وکړائ شي دوه رقمي عددونه ددوه رقمي عددونو څخه تفريق کړي

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، يويز،لسيز، تفريق.

**د لوست مرستندوی مواد:** د چاپيړيال د شميرلو وړ ساده شيان او مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی: زده کوونکی دې په دري ګروپونو وويشل شي بيا دې ديوه ګروپ کورنۍ دنده د بل ګروپ په واسطه وکتل شي هره اشتباه چې د کوم ګروپ له خوا ويل کيږي ددري په مخ دې فهرست شي. ښاغلی ښوونکی! کوشش دې وشي چې صحيح ځوابونه له زده کوونکو څخه واوريدل شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په دره باندې تشريح کړي. او لاندې پوښتنې دې وپوښتل شي.

له لومړي ګروپ څخه صابر دې درې ته نژدې راشي، د ?=۱۴–۱۸ پوښتنه دې حل کړي.

له دويم ګروپ څخه رفيع الله دې درې ته نژدې راشي د ?=۱۵–۱۲ پوښتنه دې په عملي توګه د موادو په واسطه حل کړي.

له دريم ګروپ څخه محمود دې درې ته نژدې راشي د ۷۸ په عدد کې دې يويز او لسيز په جدول کې وښيي.

– ښاغلی ښوونکی دې يو زده کوونکی ددرې مخې ته راوغواړي او هغه ته دې ووايي چې د ۴۸ له عدد څخه د ۳۵ عدد په يوه جدول کې تفريق او تشريح يې کړه. که چيرې زده کوونکی عددونه يوتر بل لاندې داسې چې يويز د يويز لاندې او لســيز تر لسيزو لاندې وليکي او بيا يويز له يويزو او لسيز له لسيزو څخه تفريق کړي ښه تر ښه، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې دا جدول رسم او پوښتنه دې ددرې په مخ تفريق کړي (ليدل کيږي چې پور اخستلو ته اړتيا نشته).

| لسيز | يويز |
|---|---|
| ۴ | ۸ |
| – ۳ | ۵ |
| ۱ | ۳ |

مشق او تمرين: ددوو رقمي عددونو تفريق.

تاسو دوه رقمي عددونه تفريق کولای شئ.

لومړی: ⑤① ~~۵~~ ~~۱~~ – ۲۹

دوهم: ⑤① ~~۵~~ ~~۱~~ – ۲۹ = ۲ ؛ ۱۱ – ۹ = ۲

دريم: ⑤① ~~۵~~ ~~۱~~ – ۲۹ = ۲۲ ؛ ۴ – ۲ = ۲

معنا يې دا ده چې ۲۲ = ۲۹ – ۵۱

د خپل ټولګيوال سره په ګډه کار وکړئ،تفريق يې کړئ که چېرې اړتياوې پور واخلئ.

۱.

| لسيز | يويز | لسيز | يويز | لسيز | يويز | لسيز | يويز |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ☐ | ☐ | ☐ | ☐ | ۳ | ۱۵ | ۵ | ۱۸ |
| ۷ | ۳ | ۸ | ۷ | ۴ | ۵ | ۶ | ۸ |
| – ۲ | ۱ | – ۵ | ۷ | – ۳ | ۸ | – ۴ | ۹ |
| ۵ | ۲ | ۳ | ۰ | | ۷ | ۱ | ۹ |

۲.

| لسيز | يويز | لسيز | يويز | لسيز | يويز | لسيز | يويز |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۸ | ۱۵ | ۶ | ۱۸ | ۵ | ۱۳ | ۳ | ۱۵ |
| ۹ | ۵ | ۷ | ۸ | ۶ | ۳ | ۴ | ۵ |
| – ۲ | ۶ | – ۴ | ۹ | – ۲ | ۷ | – ۱ | ۸ |
| ۶ | ۹ | ۲ | ۹ | ۳ | ۶ | ۲ | ۷ |

په چوکاټ کې دکارشوي مثال نه په کار اخيستو سره لاندې پوښتنې حل کړئ.

۳.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۹۷ | ۶۷ | ۴۳ | ۳۶ | ۹۰ |
| – ۷۸ | – ۳۸ | – ۵ | – ۱۷ | – ۷۱ |
| ۱۹ | ۲۹ | ۳۸ | ۱۹ | ۱۹ |

۴۹

– ښاغلی ښوونکی دې يو دويم زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووايي چې په يو جدول کې د ۶۳ له عدد څخه د ۲۷ عدد تفريق او تشريح کړه.

| لسيز | يويز |
|---|---|
| ⑤ | ⑬ |
| ٦ | ٣ |
| – ٢ | ٧ |
| ٣ | ٦ |

که چيرې زده کوونکی دې ته متوجه شو چې د مفروق منه يويز د مفروق له يويزو څخه کوچنی د ه ښه به وي له هغه پرته د يوه داوطلب زده کوونکی څخه دې غوښتنه وشي چې راشي او پوښتنه حل کړي، کله چې زده کوونکي پوښتنه صحيح حل کړه تشويق دې شي، او د اشتباه په صورت کې دې مرسته او لارښوونه ورته وشي، بيا دې له يوه دريم زده کوونکی څخه پوښتنه وشي چې د لومړي او دويم پوښتنو د حل تر منځ څه توپير ليدل کيږي، که چيرې زده کوونکی وويلای شي، ښه به وي، له هغه پرته له يوه بل زده کوونکی څخه دې وپوښتل شي، ښايي چې زده کوونکی ځواب ووايي، که چيرې ونشي ويلای، ښاغلی ښوونکی دې ځواب ووايي په لومړي پوښتنه کې د مفروق منه يويز د مفروق له يويز څخه لوي ؤ. او پور اخستلو ته اړتيا نه وه. په داسې حال کې چې

په دویم پوښتنه کې د مفروق منه یویز د مفروق له یویز څخه کوچنی دئ. او پور اخستلو ته اړتیا شته چې یو لسئ، د لسیزو له مرتبې څخه پور اخستل کیږي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکی زیات مشق او تمرین ته اړتیا لري تر څو دوه رقمې عددونو په تفریق کولو کې مهارت پیدا کړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی!د زده کوونکو پام د کتاب ۴۹ مخ ته راوګرزوئ او د مثال د حل کولو مرحلې یا ګامونه زده کوونکو ته تشریح کړئ. مثلاً:

لومړی: (۴)(۱۱)
۵ ۱
– ۲ ۹

دویم: (۴)(۱۱)
۱۱
– ۹
۲
۵̸ ۱̸
۲ ۹
۲

دریم: (۴)(۱۱)
۴
– ۲
۲
۵̸ ۱̸
۲ ۹
۲ ۲

لیدل کیږي چې د مفروق منه یویز د مفروق له یویز څخه کوچنی دئ له لسیزو څخه یو لسیئ پور اخلو چې (۱۱) کیږي له ۱۱ څخه چې ۹ کم کړو ۲ پاتې کیږي د ۲ عدد د تفریق د حاصل د یویزو په ځاي کې لیکو، په مفروق منه کې چې ۴ لسه پاتې دي او په مفروق کې ۲ لسه دي له هغو څخه یې کموو، چې ۲ پاتې کیږي اود تفریق د حاصل دلسیزو په ځاي کې لیکو.بیا دي ښاغلی ښوونکی د کتاب (۱) حل شوي مثال تشریح کړي او پاتې پوښتنې چې (۱) ګڼه پوښتنه دې لومړي ګروپ ته ، ۲ ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او ۳ ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړي چې په ګروپي ډول په ټولګې کې کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې دکار دجریان مراقبت وکړي.

**۳– ارزونه:**

ښاغلی ښوونکی دې د هدف د لاسته راوړلو لپاره له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې د ۸۹ په عدد کې د ۹ رقم په کومه مرتبه کې قرار لري؟

– آیا د ۸۸ په عدد کې دواړه ۸ عیني قیمت لري؟ څه فکر کوي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړاځ شي د دوه رقمې عددونو د تفریق پوښتنې چې پور اخیستل وي په آسانې سره حل کړي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي د پوهې او مهارت په اخستلو سره خوښي کوي، په ځان او نفس باور پیدا کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د پورته پوهې او مهارت په درلودلو سره، خپل اود خپل کورنی ورځنی ستونزې حل کوي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکی دې د ۴۹ مخ (۳) ګڼه پوښتنه خپلو کتابچو ته نقل او حل کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۷۴ | ۸۱ | ۹۷ |
| – ۳۷ | – ۲۵ | – ۶۹ |

# عنوان: ددوه رقمي عددونو مشق او تمرين

**(۵۰) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکی وکړای شي له دوو رقمي عددونو څخه دوه رقمي عددونه تفریق کړي.
**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، مفروق منه، مفروق، د تفریق حاصل.
**د لوست مرستندوی مواد:** د چاپیریال د شمېرلو وړ شیان.

**۱ – فعالیتونه:**
– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دندې دې وکتل شي، هغه چا چې پوښتنې صحیح او سم حل کړي دي په تشویق کوونکو کلمو سره دې تشویق شي او هغه چا چې اشتباه کړې ده، اشتباه ګانې دې په دړه باندې فهرست شي کوشش دې وشي چې صحیح ځوابونه له زده کوونکو څخه واوریدل شي اوله هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه تشریح کړي. بیا دې لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه و پوښتل شي.
لومړي ګروپ: کله چې له لسیزو څخه یویزو ته پور اخستل کیږي په لسیزو کې کوم بدلون راځي؟
دویم ګروپ: که چیرې له لسیزو څخه یویزو ته پور واخستل شي لسیز کمیږي که نه؟
دریم ګروپ: کله چې له لسیزو څخه یویزو ته پور اخستل کیږي د یویزو مرتبه په کومه اندازه سره زیاتیږي؟
ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکې و دړې ته نژدې راوغواړي او هغه ته دې هدایت وکړي چې په خپله دې ددوورقمي د تفریق د عملیې یوه پوښتنه په دړه باندې ولیکي او حل دې کړي. که چیرې زده کوونکی ولیکلای شي ښه به وي، له هغه پرته له یوه داوطلب زده کوونکې څخه دې غوښتنه وکړي تر څو د دوو رقمي د تفریق عملیه په دړه باندې ولیکي او حل یې کړي.که چیرې داوطلب زده کوونکی په صحیح او سمه توګه حل او تشریح کړل ښه تر ښه، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې یوه پوښتنه په

حل یې کړي:
د تفریق عملیه سر ته ورسوئ.

۴.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۴۲ | ۸۵ | ۲۰ | ۴۶ | ۳۹ | ۸۳ |
| – ۱۹ | – ۲۰ | – ۱۳ | – ۲۵ | – ۱۲ | – ۲۴ |
| ۲۳ | ۶۵ | ۰۷ | ۲۱ | ۳۷ | ۵۹ |

۵.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۸۳ | ۴۰ | ۵۶ | ۷۸ | ۹۳ | ۵۲ |
| – ۲۴ | – ۲۵ | – ۴۷ | – ۱۹ | – ۶۱ | – ۳۷ |
| ۵۹ | ۱۵ | ۰۹ | ۵۹ | ۳۲ | ۱۵ |

قوانین تعقیب او تفریق یې کړئ قانون او قاعده پیداکړئ او ورک شوي عددونه ولیکئ.

۶.

| د۱۷ عددله لاندې عددونو څخه تفریق کړئ | |
|---|---|
| ۶۸ | ۵۱ |
| ۴۹ | ۳۲ |
| ۷۳ | ۵۶ |
| ۳۱ | ۱۴ |
| ۵۵ | ۳۸ |

۷.

| تفریق یې کړئ | | |
|---|---|---|
| مفروق منه | مفروق | دتفریق حاصل |
| ۳۷ | ۱۹ | ۱۸ |
| ۹۳ | ۷۷ | ۱۶ |
| ۶۳ | ۴۳ | ۲۰ |
| ۷۰ | ۵۲ | ۱۸ |
| ۵۸ | ۴۰ | ۱۸ |

**کورنۍ دنده:** حل یې کړئ.
صادق د ریاضي د پوښتنو د حل لپاره د کاغذ ۳۷ پاڼې درلودې چې یوڅه شـــمېر د دې پاڼو څخه یوه کوچنۍ موږک وخوړلې، چې ۱۹ پاڼې یې پاتې دي د موږک خوړلـــو پـــاڼو شمیر معلوم کړئ؟

(۲)(۱۷) ~~۳۷~~ – ☐ = ۱۹ ⟶ (۲)(۱۷) ~~۳۷~~ – ۱۹ = ۱۸ ⟶ (۲)(۱۷) ~~۳۷~~ – ۱۸ = ۱۹

۵۰

دړه باندې زده کوونکو ته حل کړي، د مثال له حل کولو وروسته ښاغلی ښوونکی دې یو بل زده کوونکی و دړې ته راوغواړي او د ؟ = ۴۹ – ۷۸ په ډول پوښتنه دې ورکړي تر څو حل یې کړي که چیرې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**
ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ګروپونو وویشي. دهغو پام دې دکتاب (۵۱) مخ ته راوګرزوي، (۴) ګڼه پوښتنه دې لومړي ګروپ ته، (۵) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته ورکړي چې په ګروپي ډول په ټولګی کې کار ورباندې وکړي، او ښاغلی ښوونکی دې دکار د جریان مراقبت وکړي. همدارنګه په همدې مخ کې په (٦) ګڼه پوښتنه کې دوه جدولونه درکړل شوي دي، لومړۍ جدول دې لومړی ګروپ ته او دویم جدول دې دویم ګروپ ته ورکړي، په لومړي وار کې دې د هر جدول په برخه کې زده کوونکو ته یو څه معلومات ورکړل شي.

يعنی لاربنوونه دې ورته وشي، بيادي زده کوونکی په ګروپې ډول د جدول په حل کولو پيل وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه کوي.

**۳- ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ من شي چې زده کوونکو نوې لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لاربنوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي د تفريق په يوه عمليه کې په کوم صورت کې مونږ دلسيزو له مرتبې څخه پور اخلو؟

– څوک د ۴۹=۳۲– ۸۱ د تفريق په عمليه کې د مفروق منه، مفروق اود تفريق د حاصل نومونه اخلي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي دلاندې شکلونو له مخې درياضي افاده وليکي:



**ذهنيت:**

زده کوونکی د تفريق د دوه رقمي پوښتنو له حل کولو څخه چې پور ا خستل په کې وي خوند اخلي.

**ارزښت:**

زده کوونکی په ورځنې ورکړه او راکړه کې خپل ستونزې حل کوي.

مثلاً: که چيري يو زده کوونکی د بورې د اخستلو لپاره د ۴۰ افغانيو په درلودلو سره بازار ته ولاړ شي که چيري د يوې کيلو ګرام بورې بيه ۳۶ افغانۍ وي هغه دخپلې پوهې او مهارت په درلودلو سره بوره رانيسي او ۴ افغانۍ نوري بيرته له هټيوال څخه اخلي.

**۴- کورنۍ دنده:**

د موږک په واسطه د صادق د کاغذ خوړلو قصه، چې هغه يو ضرر رسوونکی شي ده، زده کوونکو ته دې تشريح شي، زده کوونکی دې هغه پوښتنه په خپلو کتابچو کې حل او له ځانو سره دې راوړي.

حل: ښاغلي ښوونکي کولاي شي ۳۷ کوچنۍ ډبرې د يو زده کوونکي په واسته په ميز باندې وشميري او له بل زده کوونکي څخه وغواړي له هغو څخه پاتې ۱۹ کوچنۍ دبرې کمي کړي چې په نتيجه کې ۱۸ ډبرې پاتې کيږي چې د موږک په واسطه دخوړل شوو ورقو شمير ښيې.

```
 ②⑰
  ۳۷
- ۱۹
-----
  ۱۸
```

د موږک په واسطه خوړل شوي ورقي

# عنوان: د جمعې او تفریق د عملیو ازمول دیو بل په واسطه

**دوه ویشتم لوست:(۵۱) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکی دجمعې عملیه دتفریق په واسطه او د تفریق عملیه دجمعې په واسطه وازمولای شي. او برسیره پر هغه د مفروق منه، مفروق او د تفریق د حاصل په کلیمو هم پوه شي.

**اصطلاح ګانې:** آزمول، د جمعې عملیه، د تفریق عملیه، د جمعې لومړی جزء، د جمعې دویم جزء، د جمعې حاصل، مفروق منه، مفروق اود تفریق حاصل.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټې او د چاپیریال دشمیرلو وړ مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، هر هغه اشتباه ګانې چې د ګروپونو له خوا ویل کیږي په دړه باندې دې فهرست شي، کوشش دې وشي چې د اشتباه ګانو ځوابونه دزده کوونکو ځخه په لاس راشي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړه باندې تشریح کړي او بیا دې لاندې پوښتنې له زده کوونکو ځخه وشي.

لومړی ګروپ: کوم فرق یا توپیر چې د مفروق منه او مفروق ترمنځ شته دئ بیان یې کړئ.

دویم ګروپ: کوم فرق یا توپیر چې د مفروق منه او د تفریق د حاصل تر منځ شته دئ بیان یې کړئ.

دریم ګروپ: د لومړی ګروپ او دویم ګروپ ځوابونه صحیح دی او که غلط که چیري غلط وي صحیح یې کوم دي؟

– ښاغلی ښوونکی دې دوه زده کوونکی زلمي او محمود د ټولګی مخې ته راوغواړي زلمۍ ته دې ۲۵ دانې لرګوټې چې ۵ یویز او ۲ لسیز لري ورکړي او محمود ته دې ۳۲ لرګوټې چې ۲ یویز او دري لسیز کیږي ورکړي او بیا دې هغو ته ووایې تاسو دواړه خپل لرګوټې و احمد ته ورکړئ. کله چې لرګوټې احمد ته ورکړي صابر ته دې ووایې چې اوس له احمد سره څوداني لرګوټې دي؟

**دوه ویشتم لوست**

**د جمعې او تفریق د عملیو آزمول د یو بل په واسطه**

هدف: زده کوونکي د جمعې عملیه د تفریق په واسطه او د تفریق عملیه د جمعې په واسطه امتحان کړای شي او برسیره پر هغه د مفروق منه، مفروق او د تفریق حاصل کلمې هم هدف ده،

د دې دپاره چې پوه شو د جمعې عملیه صحیح سرته رسیدلې اوکه غلطه د جمعې پوښتنه حل او د لاندې عملیې په واسطه یې آزمویو.

مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| دجمعې لومړي جز ← | ۷۵ | مفروق منه | ۹۳ |
| دجمعې دویم جز ← | + ۱۸ | مفروق | − ۱۸ |
| دجمعې حاصل ← | ۹۳ | دتفریق حاصل | ۷۵ |

امتحانول:

| | |
|---|---|
| ۹۳ | مفروق منه |
| − ۷۵ | مفروق |
| ۱۸ | دتفریق حاصل |

یعني د جمعې د پوښتنې د صحیح والي لپاره د جمعې له حاصل ځخه د جمعې یو جز تفریق کوو که چیرې د جمعې بل جزء لاس ته راشي د جمعې پوښتنه صحیح ده. که چیرې د جمعې بل جزء لاس ته رانشي نو پوښتنه غلطه جمع شوې ده. لاندې پوښتنې حل او امتحان یې کړئ.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۷۲ | ۴۸ | ۷۳ | ۴۵ | ۷۳ | ۵۹ | ۹۲ | ۶۳ |
| − ۲۴ | + ۲۴ | − ۴۵ | + ۲۸ | − ۱۴ | + ۱۴ | − ۶۳ | + ۲۹ |
| ۴۸ | ۷۲ | ۲۸ | ۷۳ | ۵۹ | ۷۳ | ۲۹ | ۹۲ |
| ۹۱ | ۷۵ | ۷۴ | ۶۷ | ۸۵ | ۴۸ | ۷۵ | ۳۹ |
| − ۱۶ | + ۱۶ | − ۶۷ | + ۲۷ | − ۳۷ | + ۳۷ | − ۳۹ | + ۳۶ |
| ۷۵ | ۹۱ | ۲۷ | | ۴۸ | ۸۵ | ۳۶ | ۷۵ |

۵۱

هغه لرګوټې شمیري بیا وایې چې ۷ دانې یودانه یې او ۵ لسئ دي چې ۵۷ ګیږي بیا دې صابر ته ووایې چې دا عملیه په دړه باندې ولیکی هغه به داسې ولیکی:

| | |
|---|---|
| ۲۵ | ← دجمعې لومړي جزء |
| + ۳۲ | ← دجمعې دویم جزء |
| ۵۷ | ← د جمعې حاصل |

بیا دې احمد ته ووایې چې د زلمي لرګوټې بیرته ورکړه هغه زلمې ته ۲۵ لرګوټې ورکوي او صابر ته دې ووایې چې اوس له احمد سره څوداني لرګوټي دي هغه بیا د احمد لرګوټي شمیري وایې چې دري بنډله لسئ او ۲ یو دانه یې دي چې ۳۲ لرګوټي کیږي، بیا دې له زده کوونکو ځخه پوښتنه وکړي چې ځوک کولای شي دا سرته رسیدلي فعالیت په دړه باندې ولیکي ښایي چې یو داوطلب زده کوونکی دړې ته راشي ویې لیکي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې ولیکي:

| | |
|---|---|
| ۵۷ | ← مفروق منه |
| − ۲۵ | ← مفروق |
| ۳۲ | ← د تفریق حاصل |

بیا دې له یوه زده کوونکی ځخه پوښتنه وکړي په دې

عمليه کې څه وینې او یا دې داسي و پوښتي.

د جمعې په عملیه کې ۲۵ څه شئ ده؟ ځواب ورکوي د جمعې لومړئ جزء، د تفریق په عملیه کې څه شئ ده؟ مفروق، همدارنګه پوښتنه دي وکړي دجمعې په عملیه کې ۳۲ څشئ ده؟ جواب ورکوي د جمعې دویم جزء، اوس د تفریق په عملیه کې څشئ ده؟ د تفریق حاصل، او په پاي کې دې و پوښتي ۵۷ د جمعې په عملیه کې څه شي ده؟ زده کوونکې ځواب ورکوي د جمعي حاصل، اوس د تفریق په عملیه کې څشئ ده؟ مفروق منه، بیا دې ښاغلی ښوونکی له یو دویم زده کوونکی څخه غوښتنه وکړي چې راشي د جمعې له حاصل څخه دجمعې دویم جزء تفریق کړي چې د تفریق حاصل څو کیږي؟ کله چې زده کوونکی د ۵۷ – ۳۲ = ۲۵ پوښتنه حل کړي نوزده کوونکو ته دې ووایې: ددې لپاره چې مونږ پوه شو چې پوښتنه مو صحیح حل کړې ده د جمعې له حاصل څخه د جمعې یو جزء تفریق کوو که چیري د جمعې بل جزء حاصل شي دجمعې پوښتنه صحیح حل شوي ده او که چیري د جمعې بل جزء حاصل نه شي نو پوښتنه غلطه جمع شوي ده. یعني مونږ د جمعې عملیه د تفریق د عملیې په واسطه آزموو، تاسو د خپل ځان د ډاډمن کیدو لپاره هر وخت داکار کولای شئ.

**۲– مشق او تمرین:**

زده کوونکی دې په څلورو ګروپونو وویشل شي او بیا دې د هغوي پام د کتاب (۵۱) مخ ته راوګرزوي. هغه مثال چې په کتاب کې حل شوي دئ د ښاغلی ښوونکی په مرسته دې د یوه زده کوونکي په واسطه حل او تشریح شي او هغه پوښتنې چې ددې مخ په وروستي یا کښته برخه کې قرار لري د ګروپونو تر منځ دي وویشل شي او هدایت دې ورکړل شي چې لومړی دې جمع کړي بیا دې له حل شوو مثالونو څخه په کار اخستنې سره په تش ځایو کي وآزموي.

**۳– ارزونه:**

ددی لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوي لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وشئ.

**پوهه:**

–څوک ویلای شي که چیري د جمعې له حاصل څخه د جمعې دویم جزء تفریق کړو د جمعې کوم جزء په لاس راځي؟

– څوک ویلاي شي د تفریق په یوه عملیه کې مفروق زیات ده او که مفروق منه؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي لاندې پوښتنې جمع او و آزموي.

| | | |
|---|---|---|
| ۶۴ | ۴۸ | ۵۷ |
| + ۲۹ | + ۳۷ | + ۲۵ |

**ذهنیت:**

ددې نوې طر یقې په پوهیدو ( د جمعې د عملیي آزمول) او زده کړئ سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي خوښې ښکاره کوي او د پوښتنو له حل کولو څخه خوند اخلي.

**ارزښت:**

ددې عملیې په پوهیدو سره، د ژوند په ورځنی معاملو کې کار ورڅخه اخلي مثلا که چیري زده کوونکی ۲۵ افغانی ولري او ورور یي نامعلومې نوري افغانی هغه ته ورکړي زده کوونکی خپلې ټولې پیسي حساب کولاي شي که چیري ۴۸ افغانی شي هغه کولاي شي له ۴۸ افغانیو څخه خپلې پیسي تفریق او دخپل ورور پیسي معلومې کړي.

**۴– کورنی دنده:**

**د درسي کتاب په ۵۱ مخ کې پوښتنې د کورنی دندې په توګه ټاکل شوي دي زده کوونکي د په خپلو کتابچوکې حل کړي.**

# عنوان: د تفریق د عملیې ازمول

**درویشتم لوست: (۵۲) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکې د جمعې د عملیې په سرته رسولو سره د تفریق د عملیې په صحیح والي باندې ډاډه شي.

**اصطلاح ګانې:** آزمول، د تفریق عملیه، د جمعې عملیه، مفروق منه، مفروق، د تفریق حاصل.

**د لوست مرستندوي مواد:** لرګوټې د چاپیریال د شمېرلو وړ نور مواد

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکی دې په دري ګروپونو وویشل شي د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه و کتل شي، هر هغه اشتباه ګانې چې د یوه ګروپ په واسطه اعلانیږي ددرې په مخ باندې دې فهرست شي کوشش دې وشي هر هغه چاچې اشتباه پیداکړې ده ځواب دې هم په خپله د هغه زده کوونکی په واسطه پیداشي اوله هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځواب په ډېره باندې تشریح کړي او بیا دې په ګروپي ډول لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: که چیرې د جمعې له حاصل څخه د جمعې لومړی جزء تفریق کړو کوم جزء د جمعې د تفریق د حاصل په توګه په لاس راځي؟

دویم ګروپ: که چیرې دجمعې له حاصل څخه د جمعې دویم جزء تفریق کړو کوم جزء د جمعې د تفریق د حاصل په توګه په لاس راځي؟

دریم ګروپ: د جمعې د عملیې د آزمولو لپاره د جمعې حاصل دمفروق منه په توګه په نظر کې نیولای شو؟

ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکی د ټولګی مخې ته راوغواړي او د ۵۶ په شمیر سره لرګوټې دې هغه ته ورکړي او پوښتنه دې وکړي چې له تاسره څو دانې لرګوټې د لسیزو او څو د یویزو دي، هغه لرګوټې شمیرې اووایې چې ۵ لسیز او ۶ یو دانه یې لرګوټې دي، اوبیا دې

درویشتم لوست

د تفریق د عملیې آزمونه

هدف: زده کوونکي د جمعې دعملیې په سرته رسولو سره د تفریق د عملیې په صحیح والی باندې ډاډه اوسي.

مثال: د تفریق لاندې پوښتنه په نظر کې ونیسئ.

آزمونه:

```
  ۴۸  ←  مفروق منه
− ۳۲  ←  مفروق
 ----
  ۱۶  ←  دتفریق حاصل
```

د دې لپاره چې پوه شو د تفریق عملیه مو صحیح سرته رسولې ده اوکه نه په دې صورت کې د تفریق حاصل دمفروق سره جمع کوو که چېرې مفروق منه لاس ته راشي د تفریق پوښتنه صحیح حل شوې ده او که چېرې مفروق منه لاس ته رانشي نو پوښتنه غلطه حل شوې ده.

**تمرین:**

```
  ۴۹      ۳۲          ۳۸      ۲۸
− ۱۷    + ۱۷        − ۲۸    + ۱۰
 ----    ----        ----    ----
  ۳۲      ۴۹          ۱۰      ۳۸

  ۶۷      ۵۰          ۸۷      ۳۹          ۷۰      ۵۰
− ۵۰    + ۱۷        − ۴۸    + ۴۸        − ۲۰    + ۲۰
 ----    ----        ----    ----        ----    ----
  ۱۷      ۶۷          ۳۹      ۸۷          ۵۰      ۷۰
```

**کورنۍ دنده:** د تفریق عملي لاندی پوښتنه حل او امتحان یې کړي.

```
  ۶۷      ۱۷
− ۵۰    + ۵۰
 ----    ----
  ۱۷      ۶۷
```

۵۲

ورته ووایې له دې لرګوټو څخه د ۲۴ دانو لرګوټو په شمیر خپل ټولګیوال ته چې ترڅنګ دې ناست ده ورکړه هغه ۴ یودانه یې لرګوټې او ۲ بنډله دلسو خپل ټولګیوال ته ورکوي. کله چې لرګوټې ورکړل بیا دې پوښتنه وکړي، څو داني لرګوټې پاتې شول، هغه لرګوټې شمیرې اووایې ۳۲ لرګوټې پاتې دې، ورته ودې وایې اشتباه دې نه ده کړې، ښایې چې زده کوونکی ووایې نه، له څه پوهیږې چې اشتباه دې نه ده کړې؟ ښایې چې زده کوونکی وویلای شي که چیرې د تفریق حاصل یا پاتې یعني ۳۲ له ۲۴ سره یو ځای یا جمع کړو ۵۶ کیږي. بیا دې یو بل زده کوونکې راوغواړي چې راشي ددې فعالیت د ریاضي عملیه په ډېره باندې ولیکي، زده کوونکی راځی د ۵۶–۲۴=۳۲ عملیه په ډېره باندې لیکي. او له احمد څخه دې پوښتنه وکړي په دې عملیه کې مفروق منه کوم ده؟ مفروق کوم ده؟ اودتفریق حاصل کوم ده؟ ښایې چې د مخکنې معلومات او پوهې له مخې د هر یوه ځواب ووایې. بیا دې ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته داسې ووایې ددې لپاره چې پوه

شو چې د تفریق عملیه صحیح سر ته رسیدلي ده او که نه؟

د تفریق حاصل له مفروق سره جمع کوو که چیري مفروق منه راکړي د تفریق پوښتنه صحیح حل شوي ده او که چیری مفروق منه حاصل نشي پوښتنه غلطه حل شوي ده لکه:

آزموینه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲۴ | ۵۶ | ← | مفروق منه |
| + ۳۲ | − ۲۴ | ← | مفروق |
| ۵۶ | ۳۲ | ← | دتفریق حاصل |

د جمعې دا عملیه د تفریق د عملیې د آزمولو په نامه یادیږي. له دې وروسته د تفریق هره پوښتنه د اسې آزمولای شو.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب ۵۲ مخ ته راوگرزوي ښاغلی ښوونکی دې د حل شوي مثال لارښوونه وکړي اود جمعې د عملیې په واسطه دې وازموي، بیا دې ددې مخ پوښتنې په گروپي ډول د زده کوونکو په واسطه کار وشي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان څارنه وکړي.

**۳– ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ من شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

–څوک وایې چې د پاتې شوي او د مفروق د جمعې حاصل څه شي راکوي؟

–څوک وایې که چېري د تفریق حاصل له مفروق سره جمع کړو له څه شي سره مساوي کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي د تفریق لاندې پوښتنې حل او وازموي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۷۳ | ۹۴ | ۹۱ | ۷۵ |
| - ۴۵ | - ۲۷ | - ۷۵ | - ۱۸ |

**ذهنیت:**

ددې نوې طریقې په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومې د جمعې او تفریق د عملیو له اړیکو څخه خوند اخلي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی ددې پوهې او مهارت په اخستلو سره د خپل ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار اخلي مثلاً که چیري یو زده کوونکی ٦٦ افغانۍ ولري، او له هغو څخه ۲۵ افغانۍ خپل ورورته ورکړي هغه خپلې پاتې پیسئ شمیري وینې چې ۴۱ افغانۍ ورسره پاتې دي، هغه په دې فکر کیږي څرنگه کولای شي بیا خپل ٦٦ افغانۍ په لاس راوړي. که چیري هغه له پاتې یعنې ۴۱ افغانیو سره ، ۲۵ افغانۍ چې خپل ورور ته یې ورکړي دي جمع کړي نو د ٦٦ افغانیو خاوند کیږي.

**۴–کورنۍ دنده:**

زده کوونکی د ۵۲ مخ کورنۍ دندې برسیره دې د تفریق لاندې پوښتنې په خپلوکتابچو کې حل او د جمعې د عملیې په واسطه دې وازموي.

| | | |
|---|---|---|
| ۹۲ | ۷۷ | ۵۵ |
| - ۷۸ | - ٦۷ | - ۴٦ |

## عنوان: د عددونو جمع کول د چوت په واسطه

**څلورویشتم لوست، (۵۳) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**موخه:** زده کوونکي عددونه د چوت په واسطه جمع کړاي شي چې د ذهن د پراختیا لپاره ښه وسیله ده.
**اصطلاح ګانې:** چوت، جمع، عددونه.
**د لوست مرستندوی مواد:** چوت، مرۍ، د کاغذ په یوي ټوټې باندې د چوت رسم.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی: د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په ځیر سره و کتل شي، اشتباه ګانې دې په دړه باندې فهرست شي، کوشش دې وشي چې صحیح ځوابونه له زده کوونکو څخه واوریدل شي، او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې اشتباه ګانې صحیح او په دړه باندې دې تشریح کړي، او بیادې په ګروپې ډول له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

لومړي ګروپ: که چیرې د تفریق د پوښتنې حل غلط کړو د کومې یوې عملیې په واسطه د هغه صحیح والی او غلط والی پیدا کولای شو؟

دویم ګروپ: که چیرې د تفریق حاصل او مفروق یو له بله سره جمع کړو څه شئ حاصل شوئ ده او دتفریق په عملیه کې د څه په نامه یادیږي؟

دریم ګروپ: د تفریق د عملیې په ازمولو کې، مفروق او د تفریق حاصل ته د جمعې لومړنی جزء او دویم جزء ویلائ شو؟

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي په تاسو کې څوک چوټ پیژني؟ یا چا چوټ لیدلی ده؟ ښائي چې ځینې زده کوونکې مثبت یا د هو ځواب ووایې خو دهغه مقام او یا مرتبې ونه پیژنی.

– ښاغلی ښوونکی دې یو خلاص چوټ چې دوه میلې یا سیخه ولرې زده کوونکو ته دې وښیې، او زده کوونکو ته دې ووایې چې لومړۍ میله د یویزو مرتبه او دویمه میله

### څلور ویشتم لوست
### د عددونو جمع کول د چوت په واسطه

**هدف:** زده کوونکي عددونه د چوت په واسطه جمع کړای شي.

یویز لسیز

دا د چوت یو کوچنی نمونه ده په داسې حال کې د ښي خوا سیخ یا میله د یویزو مرتبه او دکیڼې خوا سیخ یا میله د لسیزو مرتبه ښیي داچوت د یویزو په مرتبه کې ۸ دانې مرۍ لري او د لسیزو په مرتبه کې بې مرۍ نشته چې صفر راښئ. دا چوت چې تاسو وینئ د۸ عدد ښیي.

مثال: د ۱۰ او ۱۱ عددونه په لاندی چوټونو کې ښودل شوي دي.

یویز لسیز
یویز ۱۱ لسیز

فعالیت:

تاسو دا هر یو شکل خپلو کتابچوته نقل کړي او دهغه اړوند عدد ولیکي.

یویز ۴۰ لسیز
یویز ۳۵ لسیز
یویز ۲۰ لسیز

۵۳

دلسیزو مرتبه ښیي، لکه دا شکل:




او ښاغلی ښوونکی دې هغه خلاص چوټ چې مخکې تیارکړئ دئ او دوه میلې یا سیخه لري په خپل میز باندې دې کېښیږدي.

واحمد ته دې ووایې راشه په لومړۍ میله کې ۸ دانې مرې واچوه کله چې احمد دا فعالیت سرته ورسوي له یوه بل زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي د اڅو لوستل کیږي ښایې چې زده کوونکی ووایې ۸ او که چیرې زده کوونکی ونشو ویلای ښاغلی ښوونکی دې ووایې ۸ دانې مرې دي، دویم واري دې زلمې ته ووایې راشه په لومړې میله یا سیخ کې ۷ دانې مرۍ او په دوهمه میله کې ۲ دانې مرۍ واچوه،کله چې زلمئ دا فعالیت سرته ورسوي بیا دې له یوه بل زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي دا څو لوستل کیږي، که چیرې زده کوونکی ولوستلای شي ښه تر ښه، او له هغه پرته. ښاغلی ښوونکی دې لارښوونه ورته وکړي اوودې وایې چې د یویزو په میله کې ۷ دانې مرې چې

یودانه یې دي او د لسیزو په میله کې ۲ دانې مرۍ چې ۲ لسیه دي او دواړه میلې ۲۷ کیږي.
محمود دې وغواړي د چوټ په دواړو میلو یا سیخونو کې دې مرۍ داسې ترتیب کړي چې د ۳۸ عدد وښیې که چیرې محمود وکولای شي ښه تر ښه، له هغه پرته یو بل زده کوونکی دې راوغوښتل شي که چیرې زده کوونکی ونشي کړای چې ترتیب یې کړي ښاغلی ښوونکی دې هغو ته ووایې ۳۸، ۸ یو دانه ئي او ۳ لسي لري، باید ۸ دانی مرۍ دیویزو په میله کې او ۳ دانې مرۍ د لسیزو په میله کې چې په حقیقت کې۳لسه دې واچول شي په دې صورت کې چوټ د ۳۸ د عدد ښودنکی ده.
په همدې ډول نور فعالیتونه دې هم سرته ورسول شي ترڅو ټول زده کوونکي میلې او مرتبې وپیژنې، مرې دعدد سره سم او عدد د مریو سره سم په چوټ کې ترتیب کړای شي.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی په دوو ګروپونو وویشئ او د هغو پام د کتاب ۵۳ مخ ته راوګرزوئ په لومړۍ واردې ددې مخ د چوت نمونه هغو ته تشریح شي.وروسته دې دوه دانې چوټونه لومړی ګروپ ته او دوه نور چوټونه دې دویم ګروپ ته ورکړل شي چې د نمونې سره سم د هر چوت اړوند عدد په خپلو کتابچو کې ولیکي او ښاغلی ښوونکې دې د کار د جریان څارنه وکړي.

**۳- ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟
له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي، د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وشي.

**پوهه:**

- څوک وایې چې تاسې په چوت کې څو میلې پیژندلي دې او هره میله په کوم نوم سره یادیږي؟
- څوک وایې چې لومړې میله د کومې مرتبی ښودنکی دي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي په لاندې چوټونو کې له عددونو سره سم مرۍ ترتیب کړي.

| | | |
|---|---|---|
| یویز لسیز | یویز لسیز | یویز لسیز |
| ۴۶ | ۳۸ | ۵۰ |

**ذهنیت:**

د زده کوونکو ذهن د چوت او د هغه د مرتبو په پیژندلو سره بدلون مومي خوښي ښکاره کوي او خوند اخلي.

**ارزښت:**

برسیره پر دې چې د چوت د مرتبو پیژندنه ډیر ارزښت لري او د زده کوونکو د ذهن د پراختیا سبب ګرزي، د چوت په پیژندلو سره زده کوونکی د ژوند په ورځنی معاملو کې کار ورڅخه اخلې مثلاً هغوي په دوکانونو کې د ورکړې او راکړې په معاملو کې له دې ساده حسابي آلې څخه ډیر ښه کار اخستلای شئ او حساب وربانديې کولای شي.

**۴- کورنی دنده:**

هر یو زده کوونکی دې چوت په خپلو کتابچو کې رسم کړي تر څو د لاندې عددونو ښودنکی وي.
۸، ۱۳، ۳۲، ۵۷،۴۰ او ۸۳

## عنوان: د عددونو جمع کول د چوت په واسطه

**(۵۴) مخ**

**وخت: دوساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی وکړای شي عددونه د چوت په واسطه جمع کړي او په چوت کې د یویز او لسیز میلې یا سیخونه و پیژني.

**اصطلاح ګاني:** عددونه، چوت، د یویزو میله، د لسیزو میله.

**د لوست مرستندوی مواد:** سر خلاصې چوت، د چوت شکل یا رسم په یوه چارت باندې، د چوت میلې.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکی دې په دري ګروپونو وویشل شي، بیا دې د یوه ګروپ کورنی دنده د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، هره اشتباه چې دیوه ګروپ په واسطه ویل کیږي ددړي په مخ باندې دې فهرست شي او کوښښ دې وشي چې صحیح ځوابونه له زده کوونکو څخه واوریدل شي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې د اشتباه ګانو ځوابونه په دړه باندې تشریح کړي او زده کوونکو ته دې قناعت ورکړي، او بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وشي.

له لومړي ګروپ څخه: صابر دې دړي ته راشي د ۱۸ عدد دې په چوت کې و ښیي.

له دویم ګروپ څخه: زلمې دې دړي ته راشي او چوت دې په دړه باندې رسم کړي چې د یویزو په میله کې ۷ مرۍ اود لسیزو په میله کې ۴ مرۍ وي.

له دریم ګروپ څخه صبور که چیري دیویزو په میله کې ٦ مرۍ او دلسیزو په میله کې ۳ مرۍ وي د کوم یوې ارزښت زیات ده؟

ښاغلی ښوونکې! له یوه زده کوونکو څخه پوښتنه وکړه که چیري د چوت د یویزو په میله کې د ۱۲ دانو په شمیر ولرو هغه څرنګه ترتیب ؤو؟ که چیري زده کوونکی ځواب ووایې ښه ترښه، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې ووایي، چې د یویزو له میلی څخه لس مرۍ وباسو او دهغه په ځاي یوه مرۍ چې د یوه لسئ یا لسیز ښودنکی ده

اوس غواړو د چوت په واسطه د دوو عددونو د جمع کولو په طریقه باندې پوه شو، د دې مطلب لپاره د ۱۳ عدد د ۱۱ له عدد سره جمع کوو.




له کینې خوا څخه په لومړي چوت کې د یویزو په ځای کې یوه مـــرۍ او د لسیزو په ځای کې هم یوه مرۍ شته ده چې د ۱۱ عدد راښیي. او ۱۳ مرۍ په هغو باندې دزیاتوالي په حالت کې دي. کله چې ۱۳ مرۍ ګاني په هغـــو باندې ورزیات شي نوپه دوهم شکل کې د یویزو په ځای کې ۱۴ مرۍ او د لسیزو په ځای کې بیاهم هغه یوه مرۍ ده. څرنګه چې پوهیږو چې لس یـــو دانه یې دیوه لسي سره مساوي کیږي نو دلسو یوه دانه یې مریو په ځای د لسیزو په ځای کې یوه مرۍ ایږدو چې د یویزو په ځای کې ۴ مرۍ پـــاتې کیږي او د لسیزو په ځای کې ۲ مرۍ کیږي چې دوه لسه یعنې ۲۰ راښیي په دې صورت کې وروستی چوت د۲۴ عدد راښیي.

فعالیت: د چوت څخه په کار اخستلو سره لاندې پوښتنې د زده کوونکـــو پـــه واسطه جمع کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۵ | ۲۴ | ۲۸ | ۱۲ |
| + ۸ | + ۱۰ | + ۱۳ | + ۷ |
| ۲۳ | ۳۴ | ۴۱ | ۱۹ |

کورنۍ دنده: د ۳۵ او ۷۷ عددونه په چوت کې وښایاست.

۵۴

دلسیزو په میلې کې ایږدو چې دیویزو په میله کې ۲ مرې پاتې کیږي، ددې شیوې سره سم یا په کارولو سره په یوه چوت کې ۱۳ دانې مرۍ لرو، غواړو ۱۱ مرۍ نوري له هغه سره جمع کړو لکه:




لومړئ ۱۱مرې تولي د یویزوپه میله کې اچوو. کله چې د یویزو د مریو شمیر له ۹ څخه زیاتیږي، بیا د یویزو له میلې څخه لس مرۍ وباسو او دهغه په ځای یوه مرئ د لسیزو په میلی کې اچوو، بیا یویز او لسیز د میلې له مخې جمع کوو، د جمعې حاصل یې لیکو په حقیقت کې د لسو دانو مریو په ځای یوه مرۍ له حاصل څخه عبارت ده.

مونږ مخکې هم د یویزو حاصل له لسیزو سره جمع کړې دي، په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دي نور فعالیتونه د زده کوونکو په واسطه سرته ورسوي ترڅو زده کوونکی دچوت په واسطه دجمعې عملیه سرته ورسولای شي.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب ۵۴ مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې په کتاب کې کار شوي ده، زده کوونکو ته دې تشریح کړي، بیادې په وار سره د زده کوونکو په واسطه کار وشي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي دې په دوه ګروپونو وویشل شي (۱) ګڼه پوښتنه دې لومړي ګروپ ته او (۲) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته ورکړل شي تر څو د هدایت سره سم په ګروپې شکل کار وکړي، اوښاغلی ښوونکی دې دکار دجریان څارنه وکړي.

**۳– ارزونه:**

ښاغلی ښوونکی دې دخپل ډاډمن کیدو لپاره چې زده کوونکی په نوي لوست پوه شوي دې او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې په ژوند کې له چوت څخه د څه شئ لپاره کار اخستل کیږي؟

– څوک د یویزو او لسیزو مرتبې په چوت کې وښیي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي د ۱۲ + ۱۳ افاده په چوت کې جمع کړي.

**ذهنیت:**

زده کوونکی د پورته پوهی او مهارت په حاصلولو سره خوشحالیږي او د چوت په واسطه له حساب کولو سره مینه پیدا کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی د چوت په واسطه د جمعې د عملیې په سرته رسولو سره، په ورځنې ژوند کې کار اخلي او چوت د زده کوونکو د ذهن د انکشاف لپاره یوه ښه وسیله ده.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکی دې د ۳۵ او ۷۷ عددونه په خپلو کتابچو کې په چوت کې وښیي او له ځانو سره دې راوړي.

# عنوان: دعددونو تفریق د چوت په واسطه

## پنځه ویشتم لوست

**(۵۵) مخ**

**وخت:** دوه ساعته(۴۵ دقیقه یې)

**هدف:** زده کوونکي دتفریق عملیه د چوت په واسطه سرته ورسولای شي ترڅو د عملیې سرته رسول د هغو د ذهني پراختیا سبب شي.

**اصطلاح ګاني:** تفریق، عددونه، چوت، د یویزوومیله، د لسیزو میله.

**دلوست مرستندوی مواد:** خلاص چوت، د چوت مرۍ، رسم شوي چوت په کاغذ باندې.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کونکی دې په دري ګروپونو وویشل شي، بیا دې د یوه ګروپ کورني دنده دبل ګروپ په واسطه وکتل شي، کومې اشتباه ګاني چې د ګروپونو په واسطه په ګوته کیږي ددرې په مخ باندې دې په ترتیب سره ولیکل شي او صحیح ځوابونه دې په وار سره له زده کوونکو څخه واوریدل شي، او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړه باندې تشریح کړي، اولاندې پوښتنې دې له زده کوونکو څخه وشي.

لومړی ګروپ: د ۷۳ په عدد کې دیویزو په میله کې څو مرۍ او د لسیزو په میله کې څو مرۍ راځي؟

دویم ګروپ: که چیرې دیویزو په میله کې ۹ مرۍ اود لسیزو په میله ۸ مرۍ راشي کوم عدد ښیي؟

دریم ګروپ: که چیرې دیویزو په میله کې مرۍ نه وي او د لسیزو په میله کې ۷ دانې مرۍ وي کوم عدد ښیي ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکی دټولګي مخې ته راوغواړي او هغه ته دې یو چوت چې اړوند مرۍ یې د ۳٦ د عدد ښودنکې وي ورکړي او هغه ته دې وواېي چې د مریو د ایستلو په واسطه د ۱۴ عدد دهغه څخه تفریق کړه، که چیرې زده کوونکی وکولای شي چې د یویزو له میلې څخه ۴ مرۍ

پنځه ویشتم لوست

د عددونو تفریق د چوت په واسطه

هدف:زده کوونکي د تفریق عملیه دچوت په واسطه سرته ورسولای شي.

غواړو دچوت په واسطه د۲۵ له عدد څخه د۱۲ عدد تفریق کړو.

۲۵ − ۱۲ = ☐

یویز لسیز یویز لسیز

۲۵ − ۱۲ = ۱ ۳

د شکل له مخې لیدل کیږي چې د یویزو له سیخ څخه دوه مرۍ او د لسیزو څخه یوه مرۍ ایستل کیږي یعنې کمیږي په نتیجه کې د ښي خوا په چوت کې د یویزو په سیخ کې ۳ مرۍ او د لسیزو په سیخ کې یوه مرۍ پاتې کیږي. او د تفریق حاصل د۱۳ عدد کیږي.

**مشق او تمرین:**

۱ – د تفریق لاندې پوښتنې په چوت کې سرته ورسوئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲۳ | ۲۴ | ۱۵ | ۱۲ |
| − ۱۳ | − ۱۰ | − ۸ | − ۷ |
| ۱۰ | ۱۴ | ۷ | ۵ |

۲–د ٦، ۱۴، ۱٦، ۲۵، ٦۳ او ۷۹ عددونه په چوت کې وښایاست.

۳– په لاندې شکلونو کې د هرچوت اړوند عدد د هغو تر لاندې ولیکئ.

۹۱ ٦۵ ۵۱ ۲۳ ۱۷

۵۵

او دلسیزو له میلې څخه یوه مرۍ کم کړي ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې داسې تشریح کړئ.

مونږ مخکې هم یویز له یویزو څخه او لسیز له لسیزو څخه تفریق کول اوس هم په لومړي وار کې د یویزو له میلې څخه یویز اخلو او کموو، او بیا د لسیزو له میلې څخه لسیز اخلو او کموو، او په پای کې د یویز او لسیز په میلو یا سیخونو کې د پاتې شویو مریو شمیر، شمیرو چې په حقیقت کې د تفریق حاصل ده او دپاتې شویو مریو اړوند عدد لیکو. او په شکل کې داسې ښودل کیږي.




له یو زده کوونکی څخه دې پوښتنه وشي په شکل کې مو څه شئ ولیدل؟ که ځواب یې وویل ښه تر ښه، له هغه پرته له یوه داوطلب زده کوونکی څخه دې غوښتنه وشي چې تشریح یې کړي، زده کوونکی دې داسې وواېي چې د

یویزو له میلې څخه ۴ مرۍ ګانې او دلسیزو له میلې څخه یوه مرۍ کمه شوې ده، چې په نتیجه کې د یویزو په میله کې دوه مرۍ او دلسیزو په میله کې هم دوه مرۍ پاتې دي چې په حقیقت کې د هغو د تفریق حاصل ۲۲کیږي که چیرې زده کوونکی وکولای شي ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې په پورته ډول تشریح کړي.

**۲– مشق اوتمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکی په درې ګروپونو وویشي او دهغو پام دې د کتاب ۵۵ مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې په کتاب کې حل شوی ده په عملي توګه دې د یوه زده کوونکی په واسطه کار وشي او له زده کوونکی سره دې مرسته وشئ، له هغه وروسته دې د زده کوونکو پام د کتاب ٥٦ مخ مشق او تمرین ته راوګرزوي (۱) ګڼه پوښتنه دې لومړي ګروپ ته، او (۲) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته، همدارنګه (۳) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې په ګروپې ډول د هدایت سره سم کار سرته ورسوي او پوښتنې حل کړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه کوي.

**۳– ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوي لوست زده کړئ ده او که نه؟

له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي دستونزو په صورت کې دي له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د چوت د ښي خوا میله کومه مرتبه او د کیڼي خوا میله کومه مرتبه ښیې؟

– څوک وایې که چیرې د یویزو په میله کې٦ مرۍ او دلسیزو په میله کې ۴ مرۍ وي د کوم یو ارزښت لوړ یا کم ده؟

**مهارت:**

زده کوونکی لاندې پوښتنې د چوت په واسطه حل کړائ شي.

۲۴ – ۱۳ = ?　　　۴۵ – ۱۴ = ?

٦۷ – ۲۵ = ?

**ذهنیت:**

ددې پوهې په اخستلو سره چې د تفریق عملیه د چوت په واسطه سرته ورسوي د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راځي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی دتفریق ددې طریقې په پوهیدو سره چې له یوې ساده آلې څخه د ورځنې ژوند په راکړه او ورکړه کې دخپل معاملو لپاره کار اخلي( مثلا که چیرې زده کوونکی یو متر ټوکر په ۲۵ افغانیو و پلوري او اخستونکئ هغه ته د ۵۰ افغانیو یو لوټ ورکړي، هغه د چوت څخه په کار اخستو سره کولای شي ۲۵ پاتې افغانې اخستونکی ته له اشتباه پرته بیرته ورکړي).

**۴– کورنۍ دنده:**

هر یو زده کوونکئ دې چوتونه په خپلو کتابچو کې رسم کړي اود تفریق لاندې عملیې دې دهغو په واسطه سر ته ورسوي.

۴۸ – ۲۵ = ?،　　　۵۹ – ۳۸ = ?

۷۸ – ۲۴ = ?

## عنوان: له (۱۰۰-۱۰۰۰) پورې د عددونو لوستل او ليکل

**شپږويشتم لوست، (۵٦) مخ**

**وخت: ۴۵ دقيقې**

**هدف:** زده کوونکي بايد ليکل او لوستل تر ۱۰۰۰ پورې زده کړي.

**اصطلاح ګانې:** لوستل، ليکل، عددونه، سل، زر.

**د لوست مرستندوی مواد:** د چاپيريال د شميرلو وړساده شيان.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې په دريو ګروپونو وويشل شي. ديوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، هغه اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه په ګوته شوي دې په دړه باندې دې وليکل شي، کوښښ دې وشي چې صحيح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پيداشي، د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی صحيح ځوابونه په دړه باندې تشريح کړي، بيا دې لاندې پوښتنې وکړي.

له لومړي ګروپ څخه: صابر دې ووايې که چيري د ۱۴ عدد په چوت کې وښيو نو د يويزو په ميله کې به څو دانې مري او دلسيزو په ميله کې به څودانې مرۍ راشي؟

له دويم ګروپ څخه: محمود دې ووايې که چيري ديويزو په ميله کې ٦ دانې مرۍ او د لسيزو په ميله کې ۳ دانې مرۍ وي د هغه اړوند عدد څو او کوم دي؟

له دريم ګروپ څخه: صبور دې ووايې که چيري ديويزو په ميله کې مرۍ نه وي او د لسيزو په ميله کې ۵ دانې مرۍ وي دهغه اړوند عدد څو ده؟

–ښاغلی ښوونکی دې يو زده کوونکی و دړې ته راوغواړي او هغه ته دې ووايې چې له ۱ څخه تر ۹ پورې رقمونه په دړه باندې وليکه، کله چې زده کوونکی وليکل، بيا دې يو دويم زده کوونکۍ راوغواړي او هغه ته دې ووايې چې ددې رقمونو د هريوه ښۍ خوا ته يو صفروليکه،

پنځم فصل

شپږ ويشتم لوست

له (۱۰۰ – ۱۰۰۰) پورې د عددونو لوستل او ليکل

**هدف:** زده کوونکي بايد تر ۱۰۰۰ پورې دعددونو لوستل اوليکل زده کړي.

مونږ پوهيږو چې ټول عددونه له لاندې لس شکلونو څخه جوړ شوي دي.

۰، ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ٦، ۷، ۸ او ۹

چې پورته هر يوه شکل ته رقم وايي که چيرې د ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ٦، ۷، ۸ او۹ عددونو ښي خواته يو صفر کيږدو نو لاندې عددونه لاس ته راځي.

۱۰، ۲۰، ۳۰، ۴۰، ۵۰، ٦۰، ۷۰، ۸۰، ۹۰ چې دا عددونه يو لسی ياڅو لسيه راښيي او دا له ۱۰ څخه تر۹۹ پورې عددونه دوه رقمي عددونه دي چې له ښي خوا څخه د کيڼې خواته په ترتيب سره لومړي رقم تـه د يويزو ځای او د هغو دوهم رقم ته د لسيزو ځای وايي.

اوس که چيرې د يو رقمي عددونو ښي خواته دوه صفرونه کيښودل شي نو د ۱۰۰، ۲۰۰، ۳۰۰، ۴۰۰، ۵۰۰، ٦۰۰، ۷۰۰، ۸۰۰ او ۹۰۰ عددونه حاصليږي چې دا عددونه يو سلي يا څو سلونه راښيي او درې رقمي عددونه بلل کيږي.

**فعاليت:** د ۳۰۰ او ۴۰۰ ترمنځ ټول هغه عددونه وليکئ چې د يويزو رقم يې ۴ وي.

**کورنۍ دنده:** د ۲۰۰ او ۳۰۰ ترمنځ ټول هغه عددونه وليکئ چې د لسيزو رقم يې ۵ وي؟

۵۶

زده کوونکي د رقمونو ښۍ خوا ته صفر ليکي بيا دې له يوه دريم زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي ترڅو هغه ولولي، زده کوونکي لس، شل، ديرش، څلويښت، پنځوس، شپيته، اويا، اتيا او نوي لولي.

ښاغلی ښوونکی دې له لومړئ ګروپ څخه پوښتنه وکړي چې د لومړئ او دويم عددونو ترمنځ توپير څه شئ ده؟ ښائي چې د اګروپ ځواب ووايې، که چيري ونشي ويلای له نورو ګروپونو څخه دې پوښتنه وشي تر څو ځواب په لاس راوړي.

په همدې ډول و نورو زده کوونکو ته دې وار ورکړل شي او دړي ته دي راوغواړي چې د ۱۰، ۲۰، ۳۰، ۴۰، ۵۰، ٦۰، ۷۰، ۸۰، ۹۰ هريوه عدد ښئ خواته صفر وليکي. بيا دې له يوه ګروپ څخه يو زده کوونکی راوغواړي اوورته ودې وايې تر څو هغه ولولي، کله چې زده کوونکی صحيح ولوستل ددريم ګروپ له يوه زده کوونکی څخه پوښتنه وکړئ چې دا عددونه څو رقمې

دي.که چیري ځواب وویلای شي ښه تر ښه، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې ووایې چې لومړئ یو رقمې عددونه دې چې تاسو مخکې لوستلې دې، کله چې د هغو ښئ خواته یو صفر کښیودل، دوه رقمې عددونه جوړشول، بیا چې د دوه رقمې عددونو ښئ خواته یو بل صفر ولیکل شو نو دري رقمې عددونه حاصل شول.

**۲–مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام دکتاب ۵۷ مخ ته راوګرزوئ او زده کوونکو ته وواياست چې ټول عددونه د ۰، ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ٦، ۷، ۸ او ۹ ددې لسو رقمونو څخه جوړیږي تاسو ولیدل کله چې د یو رقمې عددونو ښئ خواته یو صفر زیات شو په لسیزو بدل شو او بیا چې د هغو ښئ خواته یو بل ( دیو رقمې عددونو ښي خواته دوه صفرونه) زیات شول په دري رقمې عددونو یعني په سلیزو بدل شول چې داسې لوستل کیږي سل، دوه سوه، دري سوه، څلورسوه، پنځه سوه، شپږ سوه، اووه سوه، اته سوه او نه سوه. بیا دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې هر یو دې په خپل خوښه یو عدد ولیکي او دهغه ښئ خواته دې دوه صفرونه کښیږدي اوودې لولي، د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی مرسته وکړي او دکار څارنه دې کوي.

**۳–ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ من شي چې زده کوونکو نوي لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې ۸۰ څو لسه لري ؟

– څوک وایې چې سل څو لسه لري؟

**مهارت:**

زده کوونکي د لاندې عددونو ښئ خوا ته د یوه صفر او دوه صفرونو په زیاتولوسره، چې اړوند عددونه سلونه جوړوي ولیکلای شي.

۱۰، ۸، ۲۰، ۳۰، ۹، ۷۰

**ذهنیت:**

د لسیزو او سلیزو په پوهیدو او پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي، د سلونو په جلا کولو سره خوښي کوي.

**ارزښت:**

دسلونو په پیژندلو سره، زده کوونکی په خپل ورځنی معاملو کې کار ورڅخه اخلی مثلاً که چیري زده کوونکی له هټیوال څخه یو شئ راونیسئ چې بیه یې ۳۵۰ افغانۍ وي. هغه په دې پوهیږي چې باید هغه هټیوال ته دري سلګونې او یو پنځوسئ ورکړي.

**۴–کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دلاندې عددونو د هر یوه ښئ خواته دوه صفرونه کښیږدي او په خپلو کتابچو کې دي ولیکي.

۱، ۹، ۳، ٦، ۴، ۷، ۵، ۸

# عنوان: لس ګوني (لسیز) او سل ګوني (سلیز)

**اووه ویشتم لوست، (۵۷) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکی پدې پوه شي چې لس یویز مساوي له یوه لسیځ او لس لسیز (لسیځ) مساوي له یوه سلیځ سره دي.

**اصطلاح ګانې:** لسیز، سلیز، لس یویز( یو دانه یې)، او لس (۱۰).

**دلوست مرستندوي مواد:** د لرګوټو بنډلونه، او دچاپیریال دشمیرلو وړ نور مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکی دې په درې ګروپونو وویشل شي بیا دې دیوه ګروپ کورنۍ دنده د بل ګروپ په واسطه و کتل شي، کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو له خوا ویل کیږي ددرې په مخ باندې دې ولیکل شي کوشش دې وشي چې صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا شي، او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه پیداکړي او زده کوونکو ته دې تشریح کړي. او بیا دې په انفرادي توګه له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.

له لومړۍ ګروپ څخه احمد دې ووایې: که چیرې د ۴ د عدد ښۍ خواته دوه صفرونه ولیکل شي څو لوستل کیږي؟

له دویم ګروپ څخه حبیب دې ووایې: که چیرې د ۹ دعدد ښۍ خواته یو صفر ولیکو څو لسیه کیږي او څو لوستل کیږي؟

له دریم ګروپ څخه صابر دې ووایې: که چیرې ددوو د عدد کیڼي خواته یو صفر ولیکو څو لسه کیږي؟

( ښاغلي ښوونکي دې مرسته وکړي)

–ښاغلی ښوونکی دې ۱۱۱ دانې لرګوټې تیار کړي بیا دې هغه داسې وتړي چې ۱۱ بنډله د لسیو او یو یو دانه یې وي او یوه زده کوونکی ته دې ووایې راشه دا لرګوټې وشمیره چې څو بنډله دلسو او څو یودانه یې دي؟ زده کوونکی راځي هغه شمیرې، اووایې چې یوولس بنډله دلسو

اووه ویشتم لوست

لس ګوني (لسیز) او سل ګوني

هدف: زده کوونکي په دې پوه شي چې لس یویز مساوي له یوه لسي، اولس (سلیز) لسي مساوي له یوه سلي سره کیږي.

هغه دواړه ۱۰۰ دي

۱۰ لس ګوني | ۱–سلی دریم شکل | دویم شکل لومړي شکل

که چېرې پورتني شکلونه ولیدل شي په آسانۍ سره پوهیدلای شو چې دوهم شکل د لومړي شکل لس برابره دی چې ۱۰ ددوه رقمو کوچنی عدد دی او د هغو دریم شکل ۱۰۰ معرفي کوي چې د دوهم شکل لس برابره او سل برابره د لومړي شکل دی چې د درې رقمیو کوچنی عدد دی.

هر قطار څو سلیه راښي ولیکئ

| | | |
|---|---|---|
| ۱. | ۲ سلګوني | ۲۰۰ |
| ۲. | ۳ سلګوني | |
| ۳. | ۴ سلګوني | ۳۰۰ |
| ۴. | ۵ سلګوني | ۵۰۰ |
| ۵. | ٦ سلګوني | ٦۰۰ |
| ٦. | ۷ سلګوني | ۷۰۰ |

۵۷

او یو یو دانه یې دي. بیا دې ښاغلی ښوونکی یو بل زده کوونکی ته ووایې چې راشه دلرګوټو دا لس بنډلونه یو ځای وتړه کله چې زده کوونکی دا فعالیت سرته ورسوي نو له یوه بل دریم زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي چې دا بنډل یا لوی بنډل څو دانې دي؟ که چیرې زده کوونکی ځواب ووایې ښه تر ښه، له هغه پرته په خپله ښوونکی دې ووایې چې ۱۰۰ یو دانه یې دي. او بیا دې ښاغلی ښوونکی دیوه کتار په شکل، یوه دانه، یو بنډل د لسیځ، او یو بنډل د سلیځ په خپل میز باندې داسې کښیږدي.

۱۰۰ دانې | ۱۰ دانې | ۱ دانه

دریم شکل | دویم شکل | لومړئ شکل

له محمود څخه دې پوښتنه وکړي چې لومړئ شکل څو دانې دي؟ ځواب ورکوي یوه دانه.

احمده: دویم شکل څو دانې دي؟ ځواب ورکوي ۱۰ دانې.

زلمیه: دریم شکل څو دانې دي؟ ځواب ورکوي ۱۰۰

داني. بیا دې ښاغلی ښوونکی د سلو دانو بنډل خلاص کړي او د لسیو بنډلونه دې جلا جلا یو د بل د تر څنګه کښیږدي او داسې دي ووایي: دویم شکل د لومړئ شکل لس برابره ده، چې لس ددوه رقمیو لومړنۍ یا تر ټولو ډیر کوچنۍ دوه رقمې عدد دئ. او دویم شکل چې تاسې لس بنډله وینئ په حقیقت کې لس برابره ددویم شکل دئ او سل برابره د لومړئ شکل دئ چې ددري رقمیو کوچنۍ عدد دئ.

**۲–مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۵۸) مخ ته راګرزوئ، هغه مثال چې په کتاب کې حل شوي دئ دیوه زده کوونکی په واسطه دې تشریح شي که چیري مشکل وي ښاغلی ښوونکی دي تشریح کړي. او همدارنګه په چوکات کې د حل د نمونې په برخه کې دي هم معلومات ورکړل شي، بیا دې (۲، ۳) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ ته، (۴ او ۵) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته، او ۶ ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې په ګروپې ډول په خپلو کتابچو کې کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه کوي.

.

**۳–ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شئ چې زده کوونکو نوي لوست زده کړي دئ او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي دستونزو د شتوالی په صورت کې دې له هغو سره مرسته وشي.

**پوهه:**

– څوک وایي چې ۱۰۰ څو رقمې عدد ده؟

– څوک وایې شي چې ۱۰۰ څو لسه کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي د څو سوو(سلو) عدد ولیکي.

**۵ سوه، ۶ سوه، ۷ سوه، ۸ سوه، ۴ سوه، ۹ سوه.**

**ذهنیت:**

زده کوونکی د سلګونو په پوهیدلو سره د بانګ د لوټونو په پیژندلو کې بلدتیا پیدا کوي او په دې برخه کې دهغوی ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د سلونو په پیژندلوسره زده کوونکی دخپل ژوند په ورځنې معاملو کې کار اخلي.

**۴–کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې هر یو لاندې عددونه په خپلو کتابچو کې ولیکې او د هغو سلونه(څوسوه) دې په تورو سره ولیکي او له څانو سره دې راوړي.

**۳۰۰، ۲۰۰، ۴۰۰، ۹۰۰، ۸۰۰، ۵۰۰، ۷۰۰، ۶۰۰**

# عنوان: لس ګوني (لسيز) او سل ګوني

**(۵۸) مخ**
**وخت: ۴۵ دقيقې**

**هدف:** زده کوونکی پوه شي چې لس يو دانه يې مساوي له يوه لسئ، او لس لسيه مساوي له يوه سلی سره کيږي؟
**اصطلاح ګانې:** لسيز، سليز، لس يو دانه يې، لس (۱۰)
**دلوست مرستندوی مواد:** دلسيو بنډلونه، لرګوټې، او نور دچاپيريال مواد.

**۱ – فعاليتونه:**
– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په ځير (دقت) سره وکتل شي، که چيري اشتباه ګانې شوي وي ددړي په مخ باندې دې وليکل شي، داوطلب زده کوونکی دې راوغوښتل شي چې صحيح او سم ځوابونه نورو زده کوونکو ته تشريح کړي، او له هغه پرته په خپله ښوونکی دي صحيح او سم ځوابونه په دړه باندې څرګند او تشريح کړي، او بيا دې لاندې پوښتنې له ګروپونو څخه وکړي.
لومړی ګروپ: ۸ سله څه ډول ليکل کيږي؟ ځواب ۸۰۰
دويم ګروپ: يو سلئ له څو لسونو څخه جوړ شوي دئ؟ ځواب له لس، لسونو څخه.
دريم ګروپ: ۴۰۰ څو سليه کيږي؟ ځواب څلور سليه.
– ښاغلی ښوونکی بايد تر پخوا د لرګوټو دسليو(سليزو) دوه يا دري بنډله تيار کړي او په خپل ميز باندې کښيږدي او بيا دې يو زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دي ووايې چې د سليزو د لرګوټو څخه دوه بنډله خلاص کړه او له هغو څخه د لسيزو بنډلونه ترتيب کړه ووايه، چې ټوله دلسيزو څو بنډله کيږي، زده کوونکی دلسيزو بنډلونه خلاصوي او په ترتيب سره ايږدي، او بيا يې شميري ښايي ووايي دلسو ۲۰ بنډله کيږي، ښاغلی ښوونکی دې له نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي د سلو له څو بنډلونو څخه شل بنډله دلسو جوړشول؟ هغوی به ځواب ورکړي د سلو له دوو بنډلونو څخه، بيا دې يوبل زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووايي راشه، لس لس بنډلونه

مونږ سلونه د لسونو په توګه ليکلای شو څرنګه:

د سلونو بدلول په لسونو باندې بيايي وليکي
۳۰۰ = ۳۰ لسه

د پورته مثال څخه په کار اخيستو سره د شکلونو له مخې تش ځايونه ډک کړئ.

۱. $\frac{۱۰۰}{}$ = $\frac{۱۰}{}$ لسه
۲. ۲۰۰ = ۲۰ لسه
۳. ۳۰۰ = ۳۰ لسه
۴. ۵۰۰ = ۵۰ لسه
۵. ۶۰۰ = ۶۰ لسه
۶. ۷۰۰ = ۷۰ لسه

**کورنۍ دنده : حل يې کړئ**

۱. ۲۷ + ۳۵ = ۶۲
۲. ۸۶ − ۱۳ = ۷۳
۳. ۷۲ − ۲۷ = ۴۵

۴. د شکل له مخې ووایاست چې يوسلی له څو لسيزو او څو يويزو څخه جوړ شوی دی؟
حل: يو سلی له ۱۰ ليسو او هم يو سلی د ۱۰۰ يويز و څخه جوړ شوی دی.

۵۸

دلسيو سره يو ځاي کړه او سلو بنډلونه جوړ کړه، کله چې زده کوونکی لس لس بنډلونه سره يو ځای کړل، او سلګونې يې جوړ کړل، بيا دې له يوه بل زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي دسلو څو بنډلهويني؟ هغه بنډلونه ويني اووايي ۲ بنډله سلګوني، ښاغلی ښوونکی دې له يوه دريم زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي چې ۲ بنډله د سلګونو زيات دي او که ۲۰ بنډله دلسو؟ يا کوم يو يي زيات او کوم يو يې کم دي؟ که چيري زده کوونکی وويلای شول چې مساوي دي ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دي تشريح کړي، چې ستاسو ټولګيوال وکولای شول چې د سلګونو له دوو بنډلونو څخه شل بنډله دلسيو، او له شلو بنډلونو دلسيو څخه دوه بنډله دسلګونو جوړکړي دا په دي معنا ده چې هغه يو له بله سره مساوي دي کولای شو وليکو چې
۲ بنډله د سلګونو = شل بنډله د لسيو سره
يا ۲ سلئ ← ۲۰۰ = ۲۰ لسو سره

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۵۹) مخ ته راوګرزوي. لومړۍ مثال چې سلګونی په لسیو بدل شوي دي دسرته رسیدلو فعالیتونو څخه په کار اخستنې سره د زده کوونکو په واسطه دې تشریح شي، بیا دې زده کوونکی په دري ګروپونو وویشل شي، د حل شوي مثال په کارولو سره د سلیانو د شکلونو له مخې تش ځایونه دې د زده کوونکو په واسطه ډک شي. په داسې حال کې چې (۱، ۲) ګڼې پوښتنې دې لومړۍ ګروپ ته، (۳، ۴) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته، او همدارنګه (۵، ٦) ګڼې دې دریم ګروپ ته ورکړل شي تر څو په ګروپې شکل په ټولګې کې کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار جریان څارنه وکړي.

**۳– ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوي لوست زده کړي دئ او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي دستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وکړي.

.

**پوهه:**

–څوک وایې چې ۲ سلګونې څو لسیه کیږي؟

–څوک وایې چې ۳ سلګوني یا سلیه کوم دري رقمې عددونه ښیي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې تش ځایونه ډک کړي.

۴ سلیه = ـــــــ لسیه = ـــــــ،　　۳۰۰ = ـــــــ سلیه = ـــــــ لسیه

۵۰۰ = ـــــــ سلیه = ـــــــ لسیه،　　٦ سلیه = ـــــــ لسیه = ـــــــ

**ذهنیت:**

زده کوونکی دلسیزو او سلیزو په پوهیدو سره چې صفر لرونکی دري رقمې عددونه دي دهغو په ذهن کې بدلون راځي له ریاضی سره مینه پیداکوي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی د لسیزو او سلیزو په پیژندلو سره، په ورځنۍ ژوند کې کار ورڅخه اخلي، مثلا که چیري یو زده کوونکی یوه جوړه بوټونه په دري سوه افغانیو راونیسي هغه کولای شي د۳ سلګونو لوټونو په ورکولو سره د بوټونو بیه هتیوال ته ورکړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لاندې عددونه ولیکې

دري سوه لس، څلور سوه دیرش، اوو سوه پنځه نوي، نه سوه یوڅلویښت

۲– زده کوونکی دې د شکلونو له مخې ووایې چې یو سلیز له څو لسیزو او څو یویزو څخه جوړ ده؟
شکلونه دې په خپلو کتابچو کی رسم کړي.

# عنوان: سلیز، لسیز او یویز

**اته ویشتم لوست: ۵۹ مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکی وکړائ شي ددرې رقمي عددونه په اړوند مرتبو کې ځاي په ځاي کړي.

**اصطلاح ګانې:** یویز، لسیز، سلیز، درې رقمې.

**دلوست مرستندوي مواد:** د لرګوټو د سلګونو(سلیزو) بنډلونه، او یو دانه یې لرګوټې.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو له خوا ویل کیږي په دره باندي دې ولیکل شي، بیا دې صحیح او سم ځوابونه په وار سره د ګروپونو په واسطه پیداشي، که چیري زده کوونکی بیا هم اشتباه وکړي ښاغلی ښوونکی دې صحیح او سم ځوابونه په دره باندې تشریح کړي او بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

له لومړي ګروپ څخه: زلمئ دې ووایي ۵ سلګونې څو لسیه کیږي؟

له دویم ګروپ څخه: احمد دې ووایي ۸۰۰ څو سلګونې او څو لسیه کیږي؟

له دریم ګروپ څخه: محمود دې ووایي ۹ سلګونې زیات دي او که ۹۰۰؟

– ښاغلی ښوونکی دې د سلګونو د بنډلونو لرګوټي او هم یو دانئ یي لرګوټې په خپل میز باندې کښیږدي او یو زده کوونکی دې د ټولګی مخي ته راوغواړي او هغه ته دي ووایې، چې له ۱ څخه تر ۹ پورى په دره باندي ولیکه، کله چې هغه ولیکل، نو یوه بل زده کوونکی ته دي ووایې راشه ددغو رقمونو د هر یوه ښئ خوا ته دوه صفرونه ولیکه، کله چې هغه دوه صفرونه ولیکی په دی صورت کې ۱۰۰، ۲۰۰، ۳۰۰، ۴۰۰، ۵۰۰، ۶۰۰، ۷۰۰، ۸۰۰، ۹۰۰ حاصل کیږي. او زده کوونکو هغه مخکي هم پیژندلي دي.

بیا دي ښاغلی ښوونکی دوه بنډله سلیز او ۲ یو دانه یې لرګوټې جلا کړي، جلا دې کښیږدي او له لومړی ګروپ څخه

**اته ویشتم لوست**
**سلیز، لسیز او یویز**

هدف: زده کوونکي درې رقمي عددونه په اړوند مرتبو کې ځاى په ځاى کړاى شي.

ګرانو زده کوونکو! تاسو په تیر لوست کې له ۱۰۰ څخه تر ۹۰۰ پورې عددونه پیژندلي دي. اوس که چېرې د۱۰۰، ۲۰۰، ...، ۹۰۰ عددونو د لومړي رقم په ځاى د۱، ۲، ...، ۹ یو رقمي عدد ولیکو د۱۰۱، ۱۰۲، ۱۰۳، ۱۰۴، ۱۰۵، ۱۰۶، ۱۰۷، ۱۰۸ او۱۰۹ عددونه حاصلیږي او همدارنګه که چېرې ددواړو صفرونو په ځاى نور رقمونه ولیکل شي له ۱۱۱ څخه تر ۹۹۹ پورې عددونه لاس ته راځي چې له ۱۰۰ څخه تر ۹۹۹ پورې درې رقمي عددونه دي. تر ټولو کوچنى درې رقمي عدد ۱۰۰ دى او تر ټولو لوى درې رقمي عدد ۹۹۹ دى او د هغو اړوند رقم د یویزو، لسیزو او سلیزو په ځایونو کې په لاندې توګه لیکل کیږي:

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۱ | ۱ | ۱ |

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۱ | ۰ | ۱ |

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۰ | ۰ | ۱ |

۵۹

دې پوښتنه وکړي، چې دا لرګوټې څو دانې دي؟ ښائي چې هغوی ووایې ۲۰۲ دانې لرګوټې دي که چیري هغوی ونشي ویلای ښاغلی ښوونکی دې ووایې چې ۲۰۲ لرګوټې دي، بیا دي وپوښتي څوک کولای شي د ۲۰۲ عدد په دره باندې ولیکی، که چیري زده کوونکو وکولای شي ښه به وي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دي په دره باندې ولیکي. په همدې ډول درې بنډله دسلیزو او ۵ یو دانه یي لرګوټې دې جلا کړي، یوى خواته دې کښیږدي، اوله دویم ګروپ څخه دي پوښتنه وکړي چې دا لرګوټې څو دانې دي؟ ښایې چې زده کوونکی ووایې ۳۰۵ لرګوټې که چیري زده کوونکی ځواب ونشي ویلای ښاغلی ښوونکی دي ځواب ووایې. او بیا دې له یوه زده کوونکی څخه و غواړي چې اړوند عدد دې په دره باندې ولیکی.

ښایي چې زده کوونکی ولیکی، له هغه پرته لارښوونه دې ورته وشي او همدارنګه ددریم ګروپ یو زده کوونکی دې راوغواړي چې راشي ۲۰۸ دانې لرګوټې جلا کړي، که چیري زده کوونکی ۲ بنډله سلګونې او ۸ یودانه لرګوټې یي جلا کړل ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې

دافعالیت سر ته ورسوي، په همدې ډول نور فعالیتونه دي هم سرته ورسول شي، تر څو زده کوونکی پوه شي که چیري د ۱۰۰، ۲۰۰، ۳۰۰، ...، ۹۰۰ عددونه د لومړي رقم په ځاي ديو رقمې عددونه لکه ۱، ۲، ۳، ...، ۹ وليکو د ۱۰۱، ۱۰۲، ۱۰۳، ...، ۱۰۹ عددونه په لاس راځي او همدارنګه که چيري ددواړو صفرونو په ځآی نور رقمونه وليکل شي د ۱۱۱، ۱۱۲، ۱۱۳، ...، ۹۹۹ عددونه په لاس راځي.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| ۰ | ۰ | ۰ | ۱ |

```
 ①①
 ۹۹۹
+  ۱
────
۱۰۰۰
```

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب ۵۹ مخ ته راوګرزوئ او زده کوونکو ته دې ووايې تاسو تر ۹۹۹ پوري عددونه ليکلای او لوستلای شئ چې دا یو دري رقمي عدد ده، تر ټولو ډير کوچنې دري رقمي عدد ۱۰۰ ده او لوی دري رقمي عدد ۹۹۹ دئ او زده کوونکو ته دې ووايې چې د ۸۸، ۹۵، ٦٦ ... عددونه په جدول کې چې د یویزو او لسیزو ښوونکی وي وښيي، او په ټولګی کي دې کار وکړي، بيا دې ښاغلی ښوونکی ووايي چې اوس مونږ د دري رقمي عدد او همدارنګه د جلول په واسطه چې په هغو کې یویز، لسیز او سلیز دي داسې ښيو.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| | | |

مثلاً: که چيري وغواړو د۲۳۵ عدد په جدول کې وښيئو داسي ليکو چې ۵ د یویزو په مرتبه کې، ۳ د لسیزو په مرتبه کې او ۲ د سلیزو په مرتبه کې ليکو.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۵ | ۳ | ۲ |

په همدې ډول نورې پوښتنې دې د زده کوونکو په واسطه کار وشي.

**۳– ارزونه:**

ددي لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړي ده اوکه نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي، د ستونزو په صورت کې دې دهغوی سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايې چې د ۱۲۹ په عدد کې یویز کوم، لسیز کوم او سلیز کوم دي؟

– څوک وايې چې د ۲۷۲ په عدد کې څو یویز، څو لسیز او څو سلیز دي؟

**مهارت:** زده کوونکی وکړائ شي لاندې عددونه په اړوند مرتبو کې ځاي په ځاي کړي.

۷۸۴، ۵٦۹، ۸۴۷، ۳۴۹، ٦۵

**ذهنیت:**

د دري رقمي عددونو او د هغوی د مقامي قيمت په پوهيدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د دري رقمي عددونو دمقامي قيمت په پوهيدو او پيژندلو سره، زده کوونکي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار ورڅخه اخلي، مثلاً که چيري زده کوونکی ٦۳۵ افغانی خپل پور له چا څخه واخلي هغه پوهيږي چې باید ٦ نوټونه سلګوني، ۳ لسیه او ۵ یوه افغانیګی واخلي.

**۴– کورنی دنده:**

**د کتاب په ٦۱ مخ کې کورنی دنده ورکړل شوي ده زده کوونکي دې سرته ورسوي او له ځانو سره د راوړي.**

## عنوان: سليز، لسيز او يويز

**(٦٠ او ٦١) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکی وکړای شي عددونه په خپل اړوند مرتبو کې ځاي په ځاي کړي.

**اصطلاح ګاني:** يويز، لسيز، سليز، دري رقمي، مقامي قيمت.

**د لوست مرستندو مواد:** د لرګوټو د سليزو بنډلونه، د لسيزو بنډلونه او يو دانه يي.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دندې دې په دقت سره وکتل شي که چيري په کورنۍ دنده کې اشتباه ګاني شوي وي، ښاغلی ښوونکی دې اشتباه ګاني په دړي باندې وليکې، له داوطلب زده کوونکو څخه دې وغوښتل شي ترڅو صحيح ځوابونه په دړه باندې تشريح کړي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح او سم ځوابونه په دړي باندې تشريح کړي او بيا دې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړۍ ګروپ: لسيز زيات دي او که سليز؟

دويم ګروپ: که چيري د يويزو په مرتبه کې صفر اود لسيزو په مرتبه کې ۲ او د سليزو په مرتبه کې ۱ وي څو لوستل کيږي؟

دريم ګروپ: کوم عدد دئ چې په يويزو کې ٦، په لسيزو ۲ کې او په سليزو کې ۴ لري؟

–ښاغلی ښوونکی دې يو شمير لرګوټي چې ۳ سلګون، ۲ لسيه او ٦ يو دانه يي ولري په خپل ميز باندې کښيږدي، او بيا دې يو زده کوونکي راوغواړي او هغه ته دې ووايي چې راشه ددي لرګوټو اړوند عدد وليکه، اوويي لوله، زده کوونکی راځي او ۳۲٦ عدد ليکئ اولولي، دري سوه شپږويشت، ښاغلی ښوونکی ددي لوست هدف دادئ تر څو زده کوونکی په دري رقمي عددونو کې د رقمونو مقامي قيمت زده کړي او دري رقمي عددونه پرته له غلطي او اشتباه وليکي، ښايي چې ځينې زده کوونکی

| سليز | لسيز | يويز |
| --- | --- | --- |
| ۲ | ۳ | ۸ |

زه لومړی سليز شمير وروسته لسيز او يويز او وروسته تر هغه عدد ليکم.

سليز لسيز يويز

دوه سوه اته ديرش

که چېرې د لسيزو عدد، ونه لري تاسو څه شی بايد وليکئ؟

په خپلو کتابچو کې وليکئ څو سليز، لسيز او يويز ليدل کيږي لاندې مثال په پــام کې ونيسئ او وروسته د شکل له مخې عدد وليکئ.

| سليز | لسيز | يويز |
| --- | --- | --- |
| ۴ | ۰ | ۴ |

۴۰۴

۱.

| سليز | لسيز | يويز |
| --- | --- | --- |
| ۲ | ۶ | ۷ |

۲۶۷

۲.

| سليز | لسيز | يويز |
| --- | --- | --- |
| ۱ | ۱ | ۱ |

۱۱۱

۳.

| سليز | لسيز | يويز |
| --- | --- | --- |
| ۶ | ۸ | ۹ |

۶۸۹

۶۰

دعددونو د رقمونو په ليکلو او ترتيب کولو کې اشتباه وکړي، ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته داسې ووايي: په لومړي وار کې سليز(سليان) وشميرئ، بيا په ترتيب سره لسيز او يويز وشميرئ، او په پاي کې په ترتيب سره شميرل شوي اړوند عدد په جدول کې وليکئ.

| سليز | لسيز | يويز |
| --- | --- | --- |
| | | |

او هم جدول دې زده کوونکو ته د مرتبو د مقامي قيمت د ارزښت په درلودلو سره تشريح شي. په همدي ډول نور فعاليتونه چې د سليزو، لسيزو او يويزو د مرتبو ښودنکی وي زده کوونکو ته دې کار وشي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلي ښوونکی! د زده کوونکو پام دې دکتاب ٦٠ مخ ته راوګرزول شي هغه مثال چې په کتاب کې حل شوي دئ دداوطلب زده کوونکی په واسطه دې تشريح شي، له هغه

پرته ښاغلی ښوونکی دې تشریح کړي، بیا دې د یو(۱) ګڼه پوښتنه لومړی ګروپ ته، د (۲) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته، او د (۳) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي. چې د مثال په ډول کار وکړي. هغه جدولونه چې د هر شکل په مقابل کې ورکړل شوي دي ډک کړي. او له هغه وروسته د زده کوونکو پام دې دکتاب (٦١) مخ ته راوګرزوي. د (۴ او ۵) ګڼې پوښتنې دې لومړی ګروپ ته، د (٦، ۷) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته او (۸) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې په ګروپي ډول په ټولګې کې کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان څارنه وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**۳– ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډ من کړي وي، چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ ده او که نه؟ لاندې پوښتنې دې له زده کوونکو څخه  وکړي، د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې په درې سوه پنځه څلویښت کې سلیز، لسیز او یویز څو څو دي؟

– څوک وایې چې په یوه درې رقمي عدد کې دسلیزو مرتبه زیات ده او که د لسیز مرتبه؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي دا عددونه دجدول په اړوند مرتبو کې ولیکي.

۷٦۲، ۸۵۰ ، ۵۹۸، ۴۸۹، ٦۷۰ ، ۹۰۰

**ذهنیت:**

دیویزو، لسیزو او سلیزو د مرتبو په پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوبنې ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د لویو ارقامو په پیژندلو سره زده کوونکي د ژوند په ورځني معاملو کې کار ورځخه اخلي.

مثلاً: که چیرې پلار زده کوونکی ته ووایې چې بازار ته

۴.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۶ | ۸ | ۳ |

۳۸۶

۵.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۴ | ۰ | ۷ |

۷۰۴

٦.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۰ | ۲ | ۶ |

۶۲۰

۷.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۴ | ۱ | ۴ |

۴۱۴

۸. تاسو یو عدد وټا کئ او د ، شکلونو په واسطه هغه عدد وښایاست.

زده کورنکی دې په ټولګی کې کار وکړي

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| | | |

**کورنۍ دنده:** نمونې ته وګورئ او ځوابونه پیداکړئ.

۱.  په ۴۰۰ کې څومره ؟د همدې شکل ۴ دانې؟ – په ۹۰۰ کې څومره ؟د همدې شکل ۹ دانې

په ۴۰۰ کې څومره ؟ د همدې شکل ۴۰ دانې په ۹۰۰ کې څومره ؟ د همدې شکل ۹۰ دانې

په ۴۰۰ کې څومره ؟ د همدې شکل ۴۰۰ دانې په ۹۰۰ کې څومره ؟ د همدې شکل ۹۰۰ دانې

۶۱

ولاړ شه، ددووسوو افغانیو غوښه، د ۴۰ افغانیو میوه، او د ۸ افغانیو ترکاري راونیسه او راوړه. هغه کولای شي فکر وکړي چې څو سوه، څو لسیه او څو افغانیګي کیږي او په پای کې دهغو اړوند عدد له ځان سره لیکي.

**۴– کورنۍ دنده:**

په ٦۱ مخ کې کورنۍ دنده ټاکل شوي ده، زده کوونکو ته دې دنده ورکړل شي چې حل یې کړي، ښایي ځیني زده کوونکي د کورنۍ دندې په برخه کې ستونزې ولري، ښاغلی ښوونکی دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي، بیا دې ورته ووایې مثلاً ۴۰۰ څو سله، څو لسه او څو یو دانه یې کیږي؟  او هدایت دې ورکړي چې د شکلونو په نظر کې نیولو سره دې پوښتنې حل شي.

# عنوان: تر ۱۰۰۰ پورې د عددونو مقامي قيمت

**نه ويشتم لوست، ٦٢ مخ**

**وخت: ۴۵ دقيقې**

**هدف:** زده کوونکی بر سیره پردې چې تر ۱۰۰۰ پورې د عددونو مقامي قيمت وپيژني اوويې ليکې دشکلونو له مخې وکړای شي اړوند عدد وليکي.

**اصطلاح ګاني:** مقامي قيمت، زر، سل، لس، يو.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو د سلګونو بنډلونه، د لسونو بنډلونه او يو دانه يې.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې دبل ګروپ په واسطه وکتل شي هغه اشتباه ګانی چې د ګروپونو په واسطه ويل کيږي په دړې باندې دې وليکل شي، له داوطلب زده کوونکو څخه دې غوښتنه وشي چې د اشتباه ګانو صحيح او سم ځوابونه په دړه باندې تشريح کړي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح او سم ځوابونه په دړه باندې تشريح کړي بيا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

له لومړي ګروپ څخه: محمود په ۴۰۰ کې څو سله شته دي؟

له دويم ګروپ څخه: زلميه په۲۰۰ کې څو لسه شته دي؟

له دريم ګروپ څخه: احمده ۸ سلګونې څو لوستل کيږي؟ د هغه اړوند عدد په دړه باندې وليکه په همدې ډول له زده کوونکو څخه دې نورې پوښتنې وشيء.

– ښاغلی ښوونکی دې دوه بنډله د سليو، ۳ بنډله دلسيو او ۵ يو دانه يې لرګوټې په خپل ميز باندې کښيږدي او بيا دې يو زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووايي ۱د لرګوټې وشميره چې څو سليه، څو لسيه او څو يو دانه يې دي؟ زده کوونکی هغه شميري و به وايي چې ۲ سليه، ۳ لسيه او ۵ يو دانه يې دي. بيا دې هم هغه زده کوونکی ته ووايي يوازې همدا شئ چې ودې ويل، په دړه باندې يې وليکه که چيرې زده کوونکی وليکل چې ۲ سوه، ۳ لسه

**نه ويشتم لوست**

**تر ۱۰۰۰ پورې د عددونو مقامي ارزښت**

**هدف:** زده کوونکي برسيره پردې چې تر زرو پورې دعددونو مقامي قيمت وپيژني او وېې ليکي د شکلونو له مخې وکړاي شي اړوند عددوليکي.

يو عدد په ۳ ډوله ليکلای شو لکه:

۳ سلی۱ لسي ۴ يودانه يې

۳۰۰ + ۱۰ + ۴

۳۱۴

د خپل يوه ټولګيوال سره کاروکړئ د حل شوي مثال څخه په کاراخستو سره عدد پـــه ۳ ډوله وليکئ:

۱. ۷ سليز ۴ لسيز ۴ يويز

۷۰۰ + ۴۰ + ۴

۷۴۴

۲. ۳ سليز۷ لسيز ۳ يويز

۳۰۰ + ۷۰ + ۳

۳۷۳

۳. ۱ سليز ۱ لسيز ۱ يويز

۱۰۰ + ۱۰ + ۱

۱۱۱

۴. ۴ سليز ۵ لسيز ۷ يويز

۴۰۰ + ۵۰ + ۷

۴۵۷

۶۲

او ۵ يو ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې په دړه باندې وليکي، بيا دې له نورو زده کوونکو څخه و پوښتي ستاسو کوم بل شکل هم زده دي؟ ښايي چې داسې زده کوونکی پيداشي چې ووايي هو، هم هغه زده کوونکی دې دړې ته راوغوښتل شي ترڅو وېې ليکي. که چيرې زده کوونکی داسې ۲۰۰ + ۳۰ + ۵ وليکل ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې په دړه باندې دخپل پخوانۍ ليکنې لاندې وليکي او زده کوونکو ته دې تشريح کړي، او په پای کې دې بيا هم له زده کوونکو څخه وپوښتئ کوم شکل چې ستاسو لپاره آسانه دئ پيژنئ؟ څوک يې ليکي؟ ښايي داسې زده کوونکی پيداشي چې ووايي هو، ودړې ته دې راوغوښتل شئ ترڅو ئې وليکي. که چيرې زده کوونکی ۲۳۵ وليکل ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي په عمومي توګه عددونه د ۲۳۵، ۶۷۸، ۰۰۰، ۹۹۹ په شکل ليکي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي مونږ يو عدد په دري طريقو سره ليکلای شو. چې د ارقامو د قيمت له

مخې په مرتبو کې ليکل کيږي، په همدي ډول نور فعاليتونه دې په ګروپي شکل د زده کوونکو په واسطه سر ته ورسول شي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (٦٢) مخ ته راوګرزوئ او زده کوونکو ته دې هدايت ورکړي چې په ګروپي شکل دي يو ځای په ګډه سره په ټولګی کې کار وکړي داسې چې (۱) ګڼه پوښتنه دې لومړئ ګروپ ته، (۲) ګڼه پوښتنه دې دويم ګروپ ته او (۳) ګڼه پوښتنه دې دريم ګروپ ته ورکړي تر څو هر ګروپ د شکل اړوند عدد په دري طريقو وليکي او تش ځايونه په خپلو کتابچو کې ډک کړي او۴ ګڼه پوښتنه دې د کورنی دندې په توګه ورکړل شي.

**۳– ارزونه:**

ددي لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوي لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وپوښتي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايې چې مونږ يو عدد په څو طريقو سره ليکلای شو؟

– څوک وايې چې په عدد ليکلو کې لومړئ کوم رقم او وروسته په ترتيب سره کوم رقمونه ليکل کيږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي لاندې عددونه په دوو نورو طريقو سره وليکي.

۲ سله ۵ لسه او ۴ يو، ٦ سله ۷ لسه او ۸ يو،

۱ سل ۰ لس او ۲ يو، ۲ سله ۹ لسه او ۴ يو،

**ذهنيت:**

په دري طريقو د يو عدد د ليکلو په زده کولو سره د زده کوونکو په ذهنيت کې بدلون رامنځ ته کيږي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

ددي پوهې په اخستلو او زده کولو سره زده کوونکی کولای شي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار ورڅخه واخلي هغوي په راکړه او ورکړه کې، سلګونې، لس ګونې او يوه افغانيزه سره جلا،جلا کوي بيا په ډيره آسانتيا سره خپل حساب کوي.

**۴– کورنی دنده:**

د (٦٢) مخ ۴ ګڼه پوښتنه، چې د زده کوونکو لپاره دکورنی دندې په توګه ورکړل شوي ده، پوښتنه دې خپلو کتابچو ته نقل او تش ځايونه دې ډک کړي.

# عنوان: تر ۱۰۰۰ پوري د عددونو مقامي قيمت

(٦٣) مخ

وخت: ۴۵ دقيقې

**هدف:** زده کوونکی سربيره پردې چې تر زرو پوري د عددونو مقامي قيمت وليکې وکړای شي دشکلونوله مخې اړوند عدد يې وليکې.

**اصطلاح ګاني:** مقامي قيمت، عددونه، زر.

**د لوست مرستندوی مواد:** د شميرلو وړ ساده مواد

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دندې په غور او دقت سره وکتل شي، اشتباه ګاني دي په دره باندې وليکل شي هغه چا چې پوښتنې صحيح او سمې حل کړې دي په تشويق کوونکو کلمو سره دې تحسين شي او هغه چاچې اشتباه کړې ده په يوه خاص صميميت او مينه سره دي لارښوونه ورته وشي، کوښښ دې وشي چې صحيح او سم ځوابونه د زده کوونکو له خوا واوريدل شي. له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې د هغو صحيح ځوابونه په دره باندې تشريح کړي. بيا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

لومړیګروپ: ستاسو په نظر يو عدد په څو طريقو سره ليکل کيدای شي؟

دويم ګروپ: ستاسو په نظر د عدد ليکلو کومه يوه طريقه ډيره آسانه ده؟

دريم ګروپ: ستاسو په نظر د عدد ليکلو کومه يوه طريقه ډيره مشکله ده؟

– ښاغلی ښوونکی دې د لرګوټو يو بنډل د سلګونو، يو بنډل د لسيو او ۵ يو دانه يې په خپل ميز باندې کښيږدي بيا دې يو زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووايي داد ميز په سر باندې لرګوټي و شميره، کله چې هغه و شميرل وايي چې ۱۲۵ داني لرګوټي دي، بيا دې له همدې زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي چې په دې لرګوټو کې څو سلګوني، څو لسيه او څو يو دانه يې دي. هغه دلرګوټو خواته ګوري وايي يو سلګون، يو لسئ او ۱۵ يو دانه يې دي، ښاغلي ښوونکی دې له بل زده

شکلونه وګوري او دهغو اړوند عددونه ګروپ بندې او ويې ليکئ.

مثال:




۱. له لسېو (لسيزو) څخه د سلېو(سليزو) ګروپ جوړ کړئ او اړوند عدد يې وليکئ.













۶۳

کوونکی څخه پوښتنه وکړي چې په جدول کې د يويزو په مرتبه کې ۱۵ يو دانه يې ليکلای شي هغه به ووايي نه؟ يوازې ۵ د يويزو په مرتبه کې ليکلای شم، او دهغه يو لسئ د لسيزو په مرتبه کې ليکم، که چيري زده کوونکی ونشي ويلای ښاغلی ښوونکی دې تشريح کړي بيا دې يو دريم زده کوونکی راوغواړي تر څو د هغه عدد وليکي. زده کوونکی ۱۲۵ ليکې بيا دې همدې زده کوونکی ته ووايي چې لرګوټي داسې وتړه يا بنډل يې کړه چې په لسيزو کې دوه بنډله د لسيو راشي، زده کوونکی بايد له ۱۵ يودانه يې لرګوټو څخه لس داني دهغو د يوه بنډل په ډول وتړي او دلسيو په کتار کې کښيږدي. له همدې زده کوونکی څخه دې وپوښتي چې اوس چې څو سلګوني څو لس ګوني او څو يودانه يې دي؟ هغه وايي چې يو سلګون، ۲ لس ګوني او ۵ يو دانه يې دي، بيا دې ښاغلی ښوونکی دا افاده داسې تشريح کړي: يو سل، يو لس او ۱۵ يو دانه يې مساوي کيږي له يو سل ۲ لسه او ۵ يو دانه يې سره چې په حقيقت کې له لسو يو دانه يې څخه يو لسئ جوړ شو. چې يوسل ۲ لسه ۵ يو ۱۲۵ = ده.

– ښاغلی ښوونکی: زده کوونکی دې د نورو فعالیتونو د سرته رسولو لپاره له مواد څخه لکه لوبیا، نخود، وړې ډبرې او نورو څخه کار واخلي، دسلو، لسو او یو دانه یې ګروپونه دې جوړ او په پلاستیکی کڅوړو کې دې واچوي د هغو په واسطه دې سلیز لسیز او یویز تشخیص اووتاکي بیا دې اړوند عدد ولیکي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی زده کوونکی دې په دري ګروپونو وویشل شي بیا دې دهغو پام د کتاب (۶۳) مخ ته راوګرزول شي، وروسته (۲) ګڼه پوښتنه دې لومړي ګروپ ته، (۳) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او همدارنګه (۴) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي تر څو په ټولګی کې په ګروپې شکل د حل شوي مثال په ډول یې حل کړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار دجریان څارنه وکړي.

**۳– ارزونه:**

ددې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړي ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي دستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړئ.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د ۳۰۰ د عدد د لسیزو په مرتبه کې څو لسه شته دي؟

– څوک چې د ۲۰۵ په عدد کې د یویزو، لسیزو او سلیزو نومونه اخلي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي د شکلونو له مخې عددونه ولیکي اوهمدارنګه که چیري عددونه ورکړل شوي وي دهغو سره سم شیان د سلیزو، لسیزو او یویزو په ګروپونو سره جلا کړي؟

**ذهنیت:**

زده کوونکی د پورته پوهې په اخستلو او مهارت سرته رسولو سره له ریاضي سره مینه او علاقه پیداکوي.

**ارزښت:**

له دې وروسته زده کوونکی کولای شي خپل اود خپل کورنۍ پیسی، دسلو افغانیو، لسو افغانیو او په یوه افغانۍ سره ګروپ ګروپ یا جلا کړي تر څو په حساب کې له ستونزو سره مخامخ نشي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د شکل له مخې په دري طریقو سره اړوند عددونه په تش ځایونو کې ولیکي.

____ سل، ____ لس، ____ یو

____ + ____ + ____

# عنوان: له ۱۰۰ څخه تر ۵۰۰ پورې د عددونو لیکل

**(۶۴–۶۵) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي له ۱۰۰ څخه تر ۵۰۰ پوري عددونه په پرله پسي(د تسلسل) توګه ولیکي.

**اصطلاح ګاني:** تسلسل، پرله پسي، عددونه

**دلوست مرستندوی مواد:** کارتونه چي له ۰ څخه تر ۹ پوري رقمونه په هغو باندې لیکل شوي دي.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلي ښوونکی زده کوونکي دې په دري ګروپونو باندې وويشل شي ديوه ګروپ کورنۍ دنده دې دبل ګروپ په واسطه وکتل شي، کومي اشتباه ګاني چي د زده کوونکو له خوا ویل کیږي، ددري په مخ باندې دې ولیکل شي، بیا دې صحیح ځوابونه د ګروپونو په واسطه پیدا شي له هغه پرته ښاغلي ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دره باندې تشریح کړي او له ګروپونو څخه دې لاندې پوښتني وکړي.

لومړی ګروپ: ۱۲ بنډله دلسیو څو بنډله د سلیو او څو بنډله د لسیو کیږي؟

دویم ګروپ: ۳۸ لرګوټي څو بنډله د لسیو او څو یو دانه يې کیږي؟

دریم ګروپ: د لرګوټو د سلګونو دوه بنډله څو بنډله د لسیو کیږي؟

–ښاغلي ښوونکی دي له لومړي ګروپ څخه یو زده کوونکئ راوغواړي او هغه ته دې ووايي چي د ۱۰۰ په ادامي سره په ترتیب تر ۱۵۰ پوري په دره باندې ولیکه، که چیري زده کوونکی ولیکلای شي ښه به وي، له هغه پرته دهمدې ګروپ له بل زده کوونکي څخه دي وغوښتل شي چي ويې لیکي، او بیا دي له لومړي ګروپ څخه یو دویم زده کوونکئ و غواړي هغه ته دې ووايي چي د ۱۵۰ په ادامي سره د تسلسل په توګه تر ۲۰۰ پوري په دره باندې ولیکه. که چیري ستونزي ولري ښاغلي ښوونکی دې له هغو سره مرسته وکړي، وار دې دویم ګروپ ته ورکړل شي، ښاغلي ښوونکی دې ددویم ګروپ له یوه زده کوونکي څخه وغواړي او هغه ته دې ووايي د ۲۰۰ په

لاندې جدول د عددونو سلسله (پرله پسي توب) له ۱۰۰–۵۰۰ پورې ښيي.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰۰ | ۱۰۱ | ۱۰۲ | ۱۰۳ | ۱۰۴ | ۱۰۵ | ۱۰۶ | ۱۰۷ | ۱۰۸ | ۱۰۹ |
| ۱۱۰ | ۱۱۱ | ۱۱۲ | ۱۱۳ | ۱۱۴ | ۱۱۵ | ۱۱۶ | ۱۱۷ | ۱۱۸ | ۱۱۹ |
| ۱۲۰ | ۱۲۱ | ۱۲۲ | ۱۲۳ | ۱۲۴ | ۱۲۵ | ۱۲۶ | ۱۲۷ | ۱۲۸ | ۱۲۹ |
| ۱۳۰ | ۱۳۱ | ۱۳۲ | ۱۳۳ | ۱۳۴ | ۱۳۵ | ۱۳۶ | ۱۳۷ | ۱۳۸ | ۱۳۹ |
| ۱۴۰ | ۱۴۱ | ۱۴۲ | ۱۴۳ | ۱۴۴ | ۱۴۵ | ۱۴۶ | ۱۴۷ | ۱۴۸ | ۱۴۹ |
| ۱۵۰ | ۱۵۱ | ۱۵۲ | ۱۵۳ | ۱۵۴ | ۱۵۵ | ۱۵۶ | ۱۵۷ | ۱۵۸ | ۱۵۹ |
| ۱۶۰ | ۱۶۱ | ۱۶۲ | ۱۶۳ | ۱۶۴ | ۱۶۵ | ۱۶۶ | ۱۶۷ | ۱۶۸ | ۱۶۹ |
| ۱۷۰ | ۱۷۱ | ۱۷۲ | ۱۷۳ | ۱۷۴ | ۱۷۵ | ۱۷۶ | ۱۷۷ | ۱۷۸ | ۱۷۹ |
| ۱۸۰ | ۱۸۱ | ۱۸۲ | ۱۸۳ | ۱۸۴ | ۱۸۵ | ۱۸۶ | ۱۸۷ | ۱۸۸ | ۱۸۹ |
| ۱۹۰ | ۱۹۱ | ۱۹۲ | ۱۹۳ | ۱۹۴ | ۱۹۵ | ۱۹۶ | ۱۹۷ | ۱۹۸ | ۱۹۹ |
| ۲۰۰ | ۲۰۱ | ۲۰۲ | ۲۰۳ | ۲۰۴ | ۲۰۵ | ۲۰۶ | ۲۰۷ | ۲۰۸ | ۲۰۹ |
| ۲۱۰ | ۲۱۱ | ۲۱۲ | ۲۱۳ | ۲۱۴ | ۲۱۵ | ۲۱۶ | ۲۱۷ | ۲۱۸ | ۲۱۹ |
| ۲۲۰ | ۲۲۱ | ۲۲۲ | ۲۲۳ | ۲۲۴ | ۲۲۵ | ۲۲۶ | ۲۲۷ | ۲۲۸ | ۲۲۹ |
| ۲۳۰ | ۲۳۱ | ۲۳۲ | ۲۳۳ | ۲۳۴ | ۲۳۵ | ۲۳۶ | ۲۳۷ | ۲۳۸ | ۲۳۹ |
| ۲۴۰ | ۲۴۱ | ۲۴۲ | ۲۴۳ | ۲۴۴ | ۲۴۵ | ۲۴۶ | ۲۴۷ | ۲۴۸ | ۲۴۹ |
| ۲۵۰ | ۲۵۱ | ۲۵۲ | ۲۵۳ | ۲۵۴ | ۲۵۵ | ۲۵۶ | ۲۵۷ | ۲۵۸ | ۲۵۹ |
| ۲۶۰ | ۲۶۱ | ۲۶۲ | ۲۶۳ | ۲۶۴ | ۲۶۵ | ۲۶۶ | ۲۶۷ | ۲۶۸ | ۲۶۹ |
| ۲۷۰ | ۲۷۱ | ۲۷۲ | ۲۷۳ | ۲۷۴ | ۲۷۵ | ۲۷۶ | ۲۷۷ | ۲۷۸ | ۲۷۹ |
| ۲۸۰ | ۲۸۱ | ۲۸۲ | ۲۸۳ | ۲۸۴ | ۲۸۵ | ۲۸۶ | ۲۸۷ | ۲۸۸ | ۲۸۹ |
| ۲۹۰ | ۲۹۱ | ۲۹۲ | ۲۹۳ | ۲۹۴ | ۲۹۵ | ۲۹۶ | ۲۹۷ | ۲۹۸ | ۲۹۹ |
| ۳۰۰ | ۳۰۱ | ۳۰۲ | ۳۰۳ | ۳۰۴ | ۳۰۵ | ۳۰۶ | ۳۰۷ | ۳۰۸ | ۳۰۹ |
| ۳۱۰ | ۳۱۱ | ۳۱۲ | ۳۱۳ | ۳۱۴ | ۳۱۵ | ۳۱۶ | ۳۱۷ | ۳۱۸ | ۳۱۹ |
| ۳۲۰ | ۳۲۱ | ۳۲۲ | ۳۲۳ | ۳۲۴ | ۳۲۵ | ۳۲۶ | ۳۲۷ | ۳۲۸ | ۳۲۹ |
| ۳۳۰ | ۳۳۱ | ۳۳۲ | ۳۳۳ | ۳۳۴ | ۳۳۵ | ۳۳۶ | ۳۳۷ | ۳۳۸ | ۳۳۹ |
| ۳۴۰ | ۳۴۱ | ۳۴۲ | ۳۴۳ | ۳۴۴ | ۳۴۵ | ۳۴۶ | ۳۴۷ | ۳۴۸ | ۳۴۹ |
| ۳۵۰ | ۳۵۱ | ۳۵۲ | ۳۵۳ | ۳۵۴ | ۳۵۵ | ۳۵۶ | ۳۵۷ | ۳۵۸ | ۳۵۹ |
| ۳۶۰ | ۳۶۱ | ۳۶۲ | ۳۶۳ | ۳۶۴ | ۳۶۵ | ۳۶۶ | ۳۶۷ | ۳۶۸ | ۳۶۹ |
| ۳۷۰ | ۳۷۱ | ۳۷۲ | ۳۷۳ | ۳۷۴ | ۳۷۵ | ۳۷۶ | ۳۷۷ | ۳۷۸ | ۳۷۹ |
| ۳۸۰ | ۳۸۱ | ۳۸۲ | ۳۸۳ | ۳۸۴ | ۳۸۵ | ۳۸۶ | ۳۸۷ | ۳۸۸ | ۳۸۹ |
| ۳۹۰ | ۳۹۱ | ۳۹۲ | ۳۹۳ | ۳۹۴ | ۳۹۵ | ۳۹۶ | ۳۹۷ | ۳۹۸ | ۳۹۹ |
| ۴۰۰ | ۴۰۱ | ۴۰۲ | ۴۰۳ | ۴۰۴ | ۴۰۵ | ۴۰۶ | ۴۰۷ | ۴۰۸ | ۴۰۹ |

۶۴

ادامي سره په پرله پسي توګه تر۲۷۰ پورې په دره باندې ولیکه، زده کوونکي تر ۲۷۰ پوري په دره باندې لیکي. ښاغلي ښوونکي دې پاملرنه وکړي چي زده کوونکي تسلسل په نظر کې نیسي او که نه؟ بیا دې له همدې ګروپ څخه دویم زده کوونکي راوغواړي اوهغه ته دې ووايي دري ته راشه، د ۲۷۰ په ادامي سره په پرله پسي توګه تر ۳۵۰ پوري په دري باندې ولیکه، بیا دې وار دریم ګروپ ته ورکړي، ددریم ګروپ څخه دي یو زده کوونکي راوغواړي چي راشي د ۳۵۰ په ادامي سره په پرله پسي توګه دې تر ۴۳۰ پوري په دري باندې ولیکي، باید ولیدل شي چي زده کوونکي تسلسل په نظر کي نیسيځ او که نه؟ په پای کي دې له همدې دریم ګروپ څخه دویم یو زده کوونکئ راوغواړي هغه ته دې وایي د ۴۳۰ په ادامي سره تر ۵۰۰ پوري په دري باندې ولیکه.

ښاغلي ښوونکی دې زده کوونکي په وار سره وغواړي هغه کارتونه چي په هغو باندې له ۰ څخه تر ۹ پوري لیکل شوي دي د زده کوونکو په واک کي دې ورکړي.

او په وارسره دې زده کوونکو ته وویل شي چي د کارتونو د اینبودلو په واسطه د ۲۳۸، ۳۶۰، ۵۷۴، ۴۷۱، .....

او نور عددونه ترتیب کړي، که چیري زده کوونکو ستونزي درلودلي ښاغلی ښوونکی دي له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**۲–مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دي د زده کوونکو پام د کتاب (٦۴ او ٦۵) مخونو ته راوګرزوي دعددونو پرله پسي توب او تسلسل دي زده کوونکو ته تشریح کړي، بیا هغه تمرین چي د ٦٦ مخ په پای کي ورکړل شوي ده د حل شوي مثال سره سم لومړي ګروپ ته دي د ۱۰۸ عدد، دویم ګروپ ته دي ۱۰۹ عدد او دریم ګروپ ته دي د ۱۲۰ عدد په چوت کي وښیي او پوښتني دي په خپلو کتابچو کي حل کړي.

**۳–ارزونه:**

د دې لپاره چي ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړی وي چي زده کوونکو نوي لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دي لاندي پوښتني وکړي، د ستونزو په صورت کي دي له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایي هغه عددونه چي له ۱۵۰ څخه وروسته لیکل کیږي له ۱۵۰ څخه زیات او که کوچنی دي؟

– څوک وایي هغه عددونه چي له ۴۷۰ څخه مخ کي لیکل کیږي له ۴۷۰ څخه لږ او که زیات دي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي لاندي تش ځایونه دلسو، لسو متناوب په شکل ډک کړي.

۱۰، ۲۰، ۳۰، ــــ، ۵۰، ــــ، ۷۰، ــــ، ــــ، ــــ، ۱۱۰، ــــ

**ذهنیت:**

تر ۵۰۰ پوري د عددونو لیکل او د لویو عددونو په پېژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی د لویو عددونو په پوهیدلو او پیژندلو سره د ژوند په ورځنی معاملو کي کار اخلي هغوی وس پیداکوي چي په پلورلو او رانیولو کي په زیاتو پیسو سره په صحیح توګه معامله وکړي.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۴۱۰ | ۴۱۱ | ۴۱۲ | ۴۱۳ | ۴۱۴ | ۴۱۵ | ۴۱٦ | ۴۱۷ | ۴۱۸ | ۴۱۹ |
| ۴۲۰ | ۴۲۱ | ۴۲۲ | ۴۲۳ | ۴۲۴ | ۴۲۵ | ۴۲٦ | ۴۲۷ | ۴۲۸ | ۴۲۹ |
| ۴۳۰ | ۴۳۱ | ۴۳۲ | ۴۳۳ | ۴۳۴ | ۴۳۵ | ۴۳٦ | ۴۳۷ | ۴۳۸ | ۴۳۹ |
| ۴۴۰ | ۴۴۱ | ۴۴۲ | ۴۴۳ | ۴۴۴ | ۴۴۵ | ۴۴٦ | ۴۴۷ | ۴۴۸ | ۴۴۹ |
| ۴۵۰ | ۴۵۱ | ۴۵۲ | ۴۵۳ | ۴۵۴ | ۴۵۵ | ۴۵٦ | ۴۵۷ | ۴۵۸ | ۴۵۹ |
| ۴٦۰ | ۴٦۱ | ۴٦۲ | ۴٦۳ | ۴٦۴ | ۴٦۵ | ۴٦٦ | ۴٦۷ | ۴٦۸ | ۴٦۹ |
| ۴۷۰ | ۴۷۱ | ۴۷۲ | ۴۷۳ | ۴۷۴ | ۴۷۵ | ۴۷٦ | ۴۷۷ | ۴۷۸ | ۴۷۹ |
| ۴۸۰ | ۴۸۱ | ۴۸۲ | ۴۸۳ | ۴۸۴ | ۴۸۵ | ۴۸٦ | ۴۸۷ | ۴۸۸ | ۴۸۹ |
| ۴۹۰ | ۴۹۱ | ۴۹۲ | ۴۹۳ | ۴۹۴ | ۴۹۵ | ۴۹٦ | ۴۹۷ | ۴۹۸ | ۴۹۹ |
| ۵۰۰ | | | | | | | | | |

تمرین: د ۱۰۵ عدد په چوت کي ښودل شوی دی له هغه څخه په کـــار اخستلو سره د۱۰۹، ۱۰۸ او ۱۲۰ عددونه په چوت کي وښایاست.




**کورنۍ دنده:** په خپلو کتابچو کي د (۲۰۱ او ۲۱۰) عددونـــه پـــه چـــوت کـــي وښایاست.

۶۵

**۴–کورنۍ دنده:**

ښاغلي ښوونکي دي هدایت ورکړي چي د کتاب په ٦٦ مخ کورنۍ دنده دي په خپلو کابچو کي حل کړي.

## عنوان: مخ کې، وروسته، او منځ کې

**دیرشم لوست، (٦٦) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د یوه عدد نه مخ کې عدد، د یوه عدد څخه وروسته عدد، او هغه عدد چې د دوو عددونو په منځ کې وي وپیژني.

**اصطلاح ګاني:** مخ کې، وروسته، منځ کې.

**د لوست مرستندوی مواد:** عددي کارتونه، زده کوونکي.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، هر ګروپ چې د بل ګروپ اشتباه په ګوته کوي صحیح او سم ځوابونه دې د هم هغه ګروپ څخه په لاس راوړل شي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح او سم ځوابونه په دره باندې تشریح کړي. او له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتې وکړي:

له لومړي ګروپ څخه احمد دې له ۱۳۰ څخه تر ۲۰۰ پورې په دره باندې ولیکي.

له دویم ګروپ څخه محمود دې له ۲۵۰ څخه تر ۳۰۰ پورې په درې باندې ولیکي.

له دریم ګروپ څخه زلمی دې له ۳۰۰ څخه تر ۴۵۰ پورې په درې باندې ولیکي.

– ښاغلی ښوونکی دې دوه زده کوونکي صابر او محمود د ټولګی مخې ته راوغواړي محمود دې د صابر تر شا ودروي، بیا دې له زده کوونکو څخه وپوښتي، څوک مخ کې یا تر مخ ده، هغوی به ځواب ورکړي صابر، څوک له صابره وروسته دئ زده کوونکي په ځواب ورکړي محمود، په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې درې زده کوونکی، احمد، محمود او زلمی په یوه کتار کې ودروي لکه:




بیا دې له زده کوونکو څخه وپوښتي څوک مخ کې یا تر مخ ده؟ څوک په منځ کې ده؟ څوک وروسته ده؟

زده کوونکي خپل ټولګوال ویني او ځواب ورکوي. بیا دې ښاغلی ښوونکی په خپله خوښه یو عدد لکه ۵۵ په دره باندې ولیکي او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي د ۵۵ له عدد څخه وروسته کوم عدد دئ؟ هغو بیا ځواب ورکوي د ۵٦ عدد، یو زده کوونکی دې راوغواړي او هغه ته دې ووایي د ۵۵ له عدد څخه مخ کې عدد په خپل مناسب ځای کې ولیکه زده کوونکی ۵۴، ۵۵ لیکي. بیا دې یو بل زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووایي د ۵٦ عدد په خپل مناسب ځای کې ولیکه هغه ۵۴، ۵۵ او ۵٦ لیکي په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دی داسې ـــــ، ۲۳۰، ـــــ عدد په دره باندې ولیکي چې دواړه خواوي یې تش ځایونه وي، او یو زده کوونکی دې راوغواړي او هغه ته دې ووایي چې د ۲۳۰ عددونه په مناسب ځایونو کې ولیکي.

له زده کوونکو څخه دې په وار سره پوښتنې وکړي د ۲۲۹ او ۲۳۱ عددونو په منځ کې کوم عدد ده؟ د ۲۳۰

**دېرشم لوست**

**د یو عدد مخ کې، عدد وروسته اود دوه عددونو منځ کې**

هدف: په دې لوست کې زده کوونکي باید دیوه عدد نه مخ کې عدد، دیوه عدد څخه وروسته او هغه عدد چې ددوو عددونو په منځ کې دی وپیژني.

هغه عددونه ولیکئ چې د درکړل شوو عددونوڅخه یو عدد مخ کې قرارلري.

مثال. ۲۷۷ ، ۲۷۸    ۵۴۵ ، ۵۴٦    ۱۲٦ ، ۱۲۷

۱. ۳۲۸ ، ۳۲۹    ۴۳۹ ، ۴۴۰    ۷۸۰ ، ۷۸۱

۲. ٦۲۹ ، ٦۳۰    ۹۱٦ ، ۹۱۷    ۸۴۵ ، ۸۴٦

هغه عددونه ولیکئ چې د درکړل شوو عددونو څخه یو عدد وروسته قرارلري.

۳. ۱۱۲ ، ۱۱۳    ۳۱۹ ، ۳۲۰    ۸۵۵ ، ۸۵٦

۴. ۴۷۸ ، ۴۷۹    ۹۹۸ ، ۹۹۹    ۲۵۲ ، ۲۵۳

۵. ۵۹۱ ، ۵۹۲    ۷۴۳ ، ۷۴۴    ٦٦۹ ، ٦۷۰

هغه عددونه ولیکئ چې د لاندې درکړل شوي عددونو په منځ کې راشي.

٦. ۱۱۸، ۱۱۹ ، ۱۲۰    ۴۹۹ ، ۵۰۰ ، ۵۰۱    ۷۸۷ ، ۷۸۸ ، ۷۸۹

۷. ٦۴۲، عدد نشته ، ٦۴۳    ۲۹۹ ، ۳۰۰ ، ۳۰۱    ۹۵۳ ، ۹۵۴ ، ۹۵۵

۸. ۸۲۷، ۸۲۸ ، ۸۲۹    ۳۳۵ ، ۳۳٦ ، ۵۳۷    ۳۷۸ ، ۳۷۹ ، ۳۸۰

۹. ټول هغه عددونه چې د ۵۴۰ او ۵٦۰ په منځ کې دي ولیکئ.

**کورنۍ دنده:**

د درکړل شوو عددونو مخ کې وروسته یا منځ کې عددونه ولیکئ.

۱. ۲۲۲ ، ۲۲۳ ، ۲۲۴    ، ۱۹۵ ، ۱۹٦    ۲۳۴ ، ۲۳۵

۲. ۴۲۰ ، ۴۲۱    ٦۴۹ ، ٦۵۰ ، ٦۵۱    ۹۱۹ ، ۹۲۰

٦٦

له عدد څخه مخ کې کوم عدد ده؟ د ۲۳۰ له عدد څخه وروسته کوم عدد ده؟ هغوی د ۲۳۰ د عدد، دواړو خواو د عددونو په لیدلو سره ځواب وایې.

**۲–مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (٦٦) مخ ته راوګروزي د (۱، ۲، ۳) ګڼې پوښتنې دې لومړۍ ګروپ ته ورکړل شي ترڅو د ورکړل شوو عددونو مخ کې عددونه ولیکي.

د (۴، ۵ او ٦) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو د ورکړل شوو عددونو وروسته عددونه ولیکي همدارنګه د (۷، ۸، ۹ او ۱۰) ګڼې پوښتنې دې دریم ګروپ ته ورکړل شي تر څو د ورکړل شوو عددونو منځ کې عددونه ولیکي.

زده کوونکی دې په ټولګی کې په ګروپی ډول کار وکړي. او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان څارنه وکړي.

**۳–آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د ٦٧ او ٦٩ عددونو په منځ کې کوم عدد دئ؟

– څوک وایې چې د ۴۷ له عدد څخه مخ کې او وروسته کوم عددونه دي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي مخ کې وروسته او د دوو عددونو منځ کې عددونه په تش ځایونو کې ولیکي.

| | | |
|---|---|---|
| ــــ، ۳۷۲، ــــ | ۲۳۲، ــــ، ۲۳۴ | ــــ، ۷۲۴ |
| ــــ، ۲۷۲، ــــ | ٦۰۰، ــــ، ٦۰۲ | ۵۸٦، ــــ |

**ذهنیت:**

زده کوونکي د مخ کې، ووروسته او منځ د عددونو په پوهیدو سره خوښي ښکاره کوي او په ذهنیت کې بدلون راځي.

**ارزښت:**

د دې لوست په زده کړې او پوهیدو سره زده کوونکي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار اخلي هغوی د عددونو په پرتله کولو کې خپل ستونزې حل کوي. ځکه هغوی له فکر او سوچ کولو پرته ویلای شي چې مخ کې عدد له خپل وروستی عدد څخه کوچنی وي.

**۴–کورنۍ دنده:**

هغه پوښتنې چې د ٦٦ مخ په پای کې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوی دي زده کوونکو ته دې ورکړل شي ترڅو مخ کې، وروسته او منځ کې عددونه تشخیص او په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# عنوان: د عددونو پرتله

**یو دیرشم لوست، (۶۷) مخ**
**وخت: دوساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي کوچنی او لوي عددونه یو له بله سره تشخیص او همدارنګه دوه مساوی عددونه وپیژنی د <، > او = نښې په مناسب ځایونو کې وکاروي.

**اصطلاح ګانې:** کوچنی، لوی، مساوي.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټې، د عددونو کارتونه، د <، > او = نښې چې له لرګوټو یا کاغذ څخه جوړ وي.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، هغه اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه ویل کیږي یا اعلانیږی په دړه باندې دې ولیکل شي، د هر ګروپ د داوطلب زده کوونکی څخه دی وغوښتل شي چې صحیح ځوابونه په دړې باندې تشریح کړي. او لاندې پوښتنې دې په ګروپي ډول له زده کوونکو څخه وکړي.

لومړی ګروپ: په تاسو کې څوک وایې چې د ۵۹ عدد، د کوم دوو عددونو په منځ کې ده؟

دویم ګروپ: د ۱۸۷ له عدد څخه کوم عدد مخ کې ده؟

دریم ګروپ: د ۱۹۵ له عدد څخه وروسته کوم عدد ده؟

– ښاغلی ښوونکی دې د ۲۶۲ او ۲۶۵ عددونه په دړه باندې ولیکي او له صابر څخه دې وپوښتي د دې دوو عددونو په منځ کې کوم یو یې زیات ده؟ ښایي هغه ووایې چې ۲۶۵، څومره زیات ده؟ د ۳ په اندازه، په همدې ډول له محمود څخه دې پوښتنه وکړي د ۳۷۶ عدد، څومره کم ده؟ د ۴ په اندازه، او له احمد څخه دې پوښتنه وکړي چې د ۵۶ او ۶+۵۰، کې کوم یو یې زیات ده؟ هغه لومړی د ۵۶ = ۶ + ۵۰ عملیه سرته رسوي چې ۵۶ کیږي، بیا ځواب وایې یو له بله سره مساوي دي، بیا دې یو زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووایې، د عددونو

**یودیرشم لوست**

**د عددونو پرتله**

هدف: زده کوونکي باید کوچني او لوی عددونه یوله بله سره تشخیص او همدارنګه دوه مساوي عددونه وپیژني د >، < او = نښې وکاروي.

| > | < | = |
|---|---|---|
| دا < نښه زیات راښیي<br>۳۴۲ >۱۱۱<br>۳۴۲ زیات له ۱۱۱ څخه دي | دا > نښه لږ راښیي<br>۱۱۱ < ۳۴۲<br>۱۱۱ لږ له ۳۴۲ څخه دي. | دا = نښه مساوي راښیي.<br>۱۵۰ = ۱۵۰<br>۱۵۰ مساوي له ۱۵۰ سره دي |

د عددونو هره جوړه د ( <، > یا =) نښې په دایره کې په اینبودلوسره پرتله کړي.

۱. ۴۲۳ (<) ۳۵۳ ۵۰۱ (<) ۴۹۲ ۲۷۱ (=) ۲۷۱
۲. ۵۴۷ (<) ۴۹۹ ۷۷۷ (>) ۸۱۲ ۱۴۲ (>) ۲۴۲
۳. ۶۸۷ (>) ۸۲۱ ۳۱۷ (=) ۳۱۷ ۹۲۸ (<) ۹۲۹
۴. ۶۲۵ (=) ۶۲۵ ۴۱۸ (<) ۲۵۷ ۵۸۹ (=) ۵۸۹
۵. ۱۲۹ (>) ۱۷۲ ۳۶۴ (<) ۲۸۱ ۶۶۹ (<) ۵۶۹
۶. ۲۳۰ (<) ۱۰۰ ۷۶۸ (>) ۸۰۱ ۴۱۲ (=) ۴۱۲

تاسو د ۳۰۰ او ۴۰۰ په منځ کې مناسب عددونه د لاندې پوښتنو په حل کې استعمال کړئ.

۷. ۲۰۰ (<) ۱۰۰ ۲۰۰ (=) ۲۰۰ ۲۲۰ (>) ۲۳۵
۸. ۱۰۰ (>) ۲۰۰ ۳۰۰ (>) ۴۰۰ ۲۹۱ (=) ۲۹۱

**کورنۍ دنده:** معما حل کړئ.

۱. زه یو عددیم چې له ۶۷۵ څخه لږ اوله ۶۶۷ څخه زیات یم په داسې توګه چې زما دیویز رقم ۲ دی. زه کوم عدد یم؟

۲. د یوه عدد په برخه کې یوه معما ولیکئ او هغه خپل ملګري ته ورکړئ چې حل یې کړي.

۶۷

دوه کارتونه په دوو مختلفو ځایونو کې کښیږده، کله چې کارتونه یې کیښودل، بیا دې لرګوټې هغو ته ورکړي او ورته ودې وایې له دې لرګوټو څخه یوه نښه جوړ کړه او د دوو عددونو په منځ کې داسې کښیږده ترڅو کوچنۍ او لوي عددونه وښیې. که چیرې زده کوونکي وکولای شي ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– بیا دې ښاغلی ښوونکی له لرګوټو څخه دا (<) نښه جوړه کړي او په خپل میز باندې دې کښیږدی او بیا دې یوه زده کوونکي ته ووایې راشه د عددونو دوه کارتونه د دې نښې دواړه خواته داسې کښیږده چې په رښتیا سره کوچنۍ او لوی وښیې، ښایې چې زده کوونکی دا کار وکړای شي او که چیرې ونشو کړای مرسته دې ورسره وشي.

– بیا دې ښاغلی ښوونکۍ د ۴۴ عدد، د دړې په مخ په دوو مختلف ځایونو کې داسې ولیکی چې یو له بله څه فاصله ولري او له یوه زده کوونکۍ څخه دې پوښتنه

وکړي د دې دوو عددونو په منځ کې کومه نښه لیکل کیږي، زده کوونکی به ووایې چې د (=) نښه، بیا دې ښاغلی ښوونکی نښې داسې تشریح کړي، له کینې څخه دې ښی خواته ولوستل شي.

دا (<) د لوی نښه ده، لکه: ۱۲۸ < ۲۴۸

دا (>) د کوچنۍ نښه ده، لکه: ۴۵۶ > ۳۸۲

دا (=) د مساوی نښه ده، لکه: ۲۴۷ = ۲۴۷

ښاغلی ښوونکی په دې لوست کې زده کوونکي باید د (<، > او =) نښو په کارولو سره، دري رقمي عددونه یو له بله سره پرتله کړي. ښایې چې ځنې زده کوونکي د لوی او کوچنۍ نښې غلطې کړي، خو زده کوونکو ته وواياست هر هغه عدد چې د نښې خلاصي خولۍ خواته قرار ولري، لوی ده له هغه عدد څخه چې د نښې د کونج خواته یا شاته قرار لري.

**۲-مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۶۷) مخ ته راوګرزوي د (۱، ۲) ګڼې پوښتنې دې لومړي ګروپ ته، (۳، ۴) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته او د (۵، ۶) ګڼې پوښتنې دې دریم ګروپ ته ورکړي چې د حل شوی مثال سره سم د (<، > او =) نښې په دائیرو کې ولیکي او همدارنګه په همدې مخ کې (۷ او ۸) ګڼې پوښتنې دې زده کوونکو ته ورکړل شي چې په ټولګی کې کار وکړي او د نښو دواړو خواوته د هدایت سره سم مناسب عددونه ولیکي.

**۳- ارزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکي خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغه سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې چې د (< او >) نښې د کومو دوو عددونو په منځ کې کارول کیږي؟
- څوک وایې چې د (=) نښه د کومو دوو عددونو په منځ کې کارول کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي د عددونو په منځ کې د <، > او = نښه په مناسب ځای کې ولیکي.

۴۹۹ □ ۵۰۱، ۳۱۷ □ ۳۱۷، ۷۶۹ □ ۶۶۹، ۶۸۷ □ ۸۲۱

**ذهنیت:**

د نښو په پیژندلو، او د دوو عددونو تر منځ په کارولو سره، د زده کوونکو ذهن بدلون مومي، له ریاضي سره علاقه مند کیږي په خوښي سره د ریاضی پوښتنې حل کوي.

**ارزښت:**

د عددونو په پرتله کولو، او پوهیدو سره زده کوونکی کولای شي په خپل ورځنۍ ژوند کې کار ورڅخه واخلي په ورکړه او راکړه کې له پرتله کولو څخه په صحیح توګه کار واخلي.

**۴-کورنۍ دنده:**

د دې مخ په پای کې د (۱ او ۲) ګڼې پوښتنې چې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوی دي زده کوونکی دې د معماء مفهوم پیدا کړی او بیا دې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړی.

# عنوان: د عددونو ترتيب د مقامي په ارزښت سره

**دوه ديرشم لوست، (٦٨) مخ**

**وخت: دوساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي ارقام د مقامي ارزښت په درلودلو سره ترتيب او د هغو ځايونه وټاکي.

**اصطلاح ګانې:** د عددونو ترتيب، مقامي ارزښت، لوی، کوچنی.

**د لوست مرستندوی مواد:** د عددونو کارتونه.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي. اشتباه ګانې دې په دړه باندې فهرست شي، کوشش دې وشي چې د اشتباه ګانو صحيح او سم ځوابونه له زده کوونکو څخه واوريدل شي. له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په دړه باندې تشريح کړي او بيا دې لاندې پوښتنې له ګروپونو څخه وپوښتي.

لومړی ګروپ: هغه دري نښې چې د هغو په واسطه، لوی، کوچنی او مساوی عددونه ښيو کوم دي په دړې باندې وليکئ.

دويم ګروپ: داسې دوه عددونه وليکئ چې د هغو ترمنځ د لوی والي نښه وليکل شي.

دريم ګروپ: داسې دوه عددونه وليکئ چې د هغو تر منځ د کوچنی نښه وليکل شي.

– ښاغلی ښوونکی، د ۵ کارتونو په شمير چې په هغو باندې عددونه ليکل شوي دي په خپل ميز باندې کښيږده او يو زده کوونکی راوغواړه او هغه ته هدايت ورکړه دا کارتونه داسې ترتيب او کښيږده چې د لوی عددونو کارت څخه د کوچنی عددونو د کارت خواته وي زده کوونکئ راځي د عددونو کارتونه ترتيب وي، ښاغلی ښوونکئ دی پام وکړی چې زده کوونکئ دا فعاليت په صحيح او سمه توګه سرته رسوي او که نه؟ له هغه پرته مرسته دی ورسره وشي په همدې ډول د ۵ کارتونو په شمير چې په هغو

**دوه ديرشم لوست**

**د عددونو ترتيب نظر په مقامي ارزښت سره**

هدف: زده کوونکي عددونه نظر په مقامي ارزښت سره ترتيب او دځايونو ټاکل وکړاي شي.

**ديوه کتاب له فهرست څخه دا مخونه په نظر کې نيسو.**

| فهرست |
|---|
| ۶فصل ....... ۳۱۸ |
| ۷فصل ....... ۳۳۷ |
| ۸فصل ....... ۴۰۰ |
| ۹فصل ....... ۴۲۰ |
| ۱۰فصل ....... ۴۶۲ |

لاندې عددونه د ښي خوا څخه کيڼې خواته د کوچنې عدد څخه لوي عدد ته ترتيب شوی دې.

**۳۱۸، ۳۳۷، ۴۰۰، ۴۲۰، ۴۶۲**

**او دا عددونه د ډېر لوی عددڅخه دکوچني عدد خواته ترتيب شوي دي ۴۶۲، ۴۲۰، ۴۰۰، ۳۳۷، ۳۱۸**

لاندې عددونه د ډېر لږو څخه د ډېر زياتو خواته ترتيب او ويې ليکئ.

۱. ۱۱۹، ۹۳، ۱۲۵، ۲۰۱    ۹۳، ۱۱۹، ۱۲۵، ۲۰۱

۲. ۲۹٦، ۲۲۸، ۲۵۲، ۲۸۳    ۲۲۸، ۲۵۲، ۲۸۳، ۲۹٦

۳. ۷۷، ۴۱۵، ٦۹۰، ۱۵۲    ۷۷، ۱۵۲، ۴۱۵، ٦۹۰

لاندې عددونه د ډېرو زياتو څخه د ډېرو لږو خواته ترتيب او ويې ليکئ.

۴. ۳۴۸، ۲۲۰، ۴٦۴، ۷۳۲    ۷۳۲، ۴٦۴، ۳۴۸، ۲۲۰

۵. ٦۰۵، ۹۷۳، ۷۵۱، ۴۸۹    ۹۷۳، ۷۵۱، ٦۰۵، ۴۸۹

٦. ۲۴۵، ۲۱۷، ۲۷۳، ۲۲۹    ۲۷۳، ۲۴۵، ۲۲۹، ۲۱۷

۷. د ۸، ۲ او ٦ رقمونو په کارولو سره کوم درې رقمي عددونه ليکلای او جوړولای شئ؟

٦۲۸   ٦۸۲   ۲٦۸   ۲۸٦   ۸۲٦   ۸٦۲

۸. د خپلې خوښې عددونه د ډېر لږو څخه د ډېر لوی خواته ترتيب او ويې ليکئ

ډېر لږ   ۱۲۵   ۲۳۵   ۲۵۴   ۳۲۷   ۴۹۰   ۵۱۱   ۵۷۶   ۶۰۰   ۷۱۳   ډېر زيات

کورنۍ دنده: څلور عددونه په ترتيب سره د ډېر زيات څخه د ډېر کوچني عدد خواته ترتيب کړئ دا عددونه د ٦۰۰ او ۸۰۰ ترمنځ وټاکئ.

**۷۹۹، ۷۰۰، ٦۵۸، ٦۰۱**

۶۸

باندې عددونه ليکل شوي دي په خپل ميز باندې کښيږده او يو دويم زده کوونکی راوغواړه او هغه ته ووايه دا کارتونه داسې ترتيب کړه چې د کوچنيو عددونو د کارت څخه د لويو عددونو د کارت خواته وي زده کوونکي راځي د عددونو کارتونه ترتيب وي. بيا دې هم ښاغلی ښوونکی متوجه اوسي چې آيا زده کوونکی دا فعاليت د هدايت سره سم سرته رسوی او که نه؟ د ستونزو په صورت کې له زده کوونکئ سره دې مرسته وکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې څو مختلف عددونه لکه ۲۸، ۱٦، ۴۵، ۳٦، ۱۹، ۴۴، ۵۷ او ٦۰ په دړه باندې وليکي بيا دې دريم زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووايي، دا عددونه د کوچنی عدد څخه د لوی عدد خواته په ترتيب سره وليکه، که چيري دا زده کوونکی وکولای شي ښه به وي، له هغه پرته يوه داوطلب زده کوونکي ته دې اجازه ورکړي ترڅو له هدايت سره سم عددونه تريتب کړي. او هم زده کوونکو ته دې اجازه ورکړې چې په خپل منځ کې يو بل ته عددونه ورکړي او د لوبې په شکل د لوی عدد

څخه د کوچنی خواته او یا د کوچنی څخه د لوی عدد خواته ترتیب کړي. او ښاغلی ښوونکی دې د کار له جریان څخه مراقبت او کتنه وکړي چې کوم یو ګروپ ښه کار کوي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي باید عددونه تر ۱۰۰۰ پوري ترتیب کړي ښایي چې ځني زده کوونکي د عددونو په ترتیبولو کې ستونزي ولري. زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ، چې عددونه په ترتیب سره ولیکي او په ګروپي ډول کار وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (٦٨) مخ ته راوګرزوئ بیا زده کوونکي په دري ګروپونو وویشئ هغه مثال چې د رنګه چوکات په منځ کې ده، هغه زده کوونکو ته تشریح کړه ترڅو د ارقامو مقامی ارزښت او ځای د زده کوونکو په ذهن کې ځای ونیسي. بیا (۱، ۲، ۳) ګڼې د لومړی چوکات پوښتنې لومړی ګروپ ته د (۴، ۵ او ٦) ګڼې دویم چوکات پوښتنې دویم ګروپ ته، د (۷، ۸) ګڼې پوښتنې دریم ګروپ ته ورکړئ چې د کتاب له هدایت سره سم کار وکړي او د کار کولو د جریان مراقبت دې وکړي.

**۳–آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړئ؟

**پوهه:**

– څوک وایې چې ستاسو د ریاضی کتاب په ترتیب سره له کوم فصله پیل او په کوم فصل سره پای ته رسیدلی ده؟

– څوک خپل د دري د کتاب د لومړی فصل مخونه په ترتیب سره وایې چې څو مخونه لري؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړاي شي په خپله خوښه عددونه له کوچنی عدد څخه د لوی عدد خواته او هم د لوی څخه د کوچنی خواته ترتیب کړي.

– ۷٦۸، ۱۲۷، ۳۸٦، ۴۷۵، ۹۷۲، ٦۷۲، ۵۰۲ له کوچنی څخه د لوی خواته.

– ۳۷۸، ۹۷، ۲٦۸، ۵۷۲، ۳٦۸، ۷۹٦، ۴۸۵ له لوی څخه د کوچنی خواته.

**ذهنیت:**

زده کوونکی د عددونو له ترتیبولو څخه خواند اخلی او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د دې لوست په پوهیدو سره زده کوونکي د ورځنی ژوند په معاملو کې کار اخلی هغوی کولای شي شیان او جنسونه د زیات او لږ قیمتونو په درلودلو سره ترتیب او خپل ستونزی حل کړي.

**۴– کورنی دنده:**

د (٦٨) مخ په پای کې پوښتنې د کورنی دندې په عنوان سره ټاکل شوي دي زده کوونکو ته دې وویل شي چې د کتاب له هدایت سره سم پوښتنې حل کړي او له ځانو سره راوړي.

## عنوان: د عددونو مشق او تمرین تر ۱۰۰۰ پورې

**دوه دیرشم لوست، (٦٩ او ۷۰) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي ارقام د مقامي ارزښت په درلودلو سره ترتیب او ځایونه یې وټاکي.

**اصطلاح ګاني:** مقامي ارزښت، مقامي قیمت، لسیز، سلیز.

**د لوست مرستندوی مواد:** د شمیرلو وړ شیان، چې سلیز، لسیز او یویز ولري.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي کومې اشتباه ګاني چې د ګروپونو په واسطه ویل کیږي په دریځ باندې دې ولیکل شي، صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړه باندې تشریح کړي بیا دې لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه په ګروپي شکل وپوښتي:

لومړی ګروپ: په ترتیب سره ووایاست په تاسو کې تر ټولو لوی څوک ده؟ او د تاسو کوچنۍ څوک ده.

دویم ګروپ: د ۲۲۱ او ۲۲۳ په منځ کې کوم عدد دی؟

دریم ګروپ: د ۵۴٦ له عدد څخه مخ کې کوم عدد دئ؟ او وروسته کوم عدد دئ؟

– ښاغلی ښوونکی! څو بنډله سلګوني، څو بنډله لس ګون او څو یو دانه یې د چاپیریال شیانو څخه چې د لیدلو او شمیرلو وړ وي په خپل میز باندې کښیږده، بیا یو زده کوونکی را وغواړه او هغه ته ووایه له دې بنډلونو څخه ۲ سلګوني، ۳ لس ګوني او ۴ یو دانه یې جلاء کړه علیحده یې کښیږده. او یو دویم زده کوونکی دې په دړه باندې ولیکي، که چیرې زده کوونکي ۲ سله، ۳ لسه او ۴ یو ولیکل ښه به وي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي ترڅو زده کوونکی یې په صحیح توګه ولیکي.

په دریم وار دې دریم زده کوونکی ته ووایي، چې د هغه د




**تر ۱۰۰۰ عددونو مشق او تمرین**

لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست.

د ۴٦۴ او ۷۰۹ عددونه استعمال کړئ ترڅو هرې پوښتنې ته ځواب ووایاست.

۱. د کوم عدد یویز ۴ دی؟ — د ۴٦۴ د عدد یویز

۲. د کوم عدد لسیز صفر دی؟ — د ۷۰۹ د عدد لسیز

۳. د کوم عدد لسیز ٦ دی؟ — د ۴٦۴ د عدد لسیز

۴. د کوم عدد سلیز ۷ دی؟ — د ۷۰۹ د عدد سلیز

۵. د دې دواړو عددونو د تفریق حاصل پیدا کړي؟

٦. کوم عدد لوي دی؟ ———

دلاندې شکلونو څخه په ګټه اخیستلو سره اړوند عددونه په درې ډوله ولیکئ.

۷. 

۳ سل ۲ لسه ٦ یو

۳۰۰ + ۲۰ + ٦

۳۲٦

۸. 

۲ سل ۰ لسه ۳ یو

۲۰۰ + ۰ + ۳

۲۰۳

کورنۍ دنده:

هغه عددونه چې د ۸۰۱ او ۸۵۱ ترمنځ قرار لري په ترتیب سره یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

٦۹

عدد د لیکلو دوه نورې طریقې په دړه باندې ولیکه دا زده کوونکی باید ۲۰۰+۳۰+۴ او په پای کې ۲۳۴ ولیکي، له هغه پرته یوه داوطلب زده کوونکي ته دې اجازه ورکړل شي چې راشي او د دریځ په مخ باندې ولیکی په همدې ډول نورې پوښتنې دې په زده کوونکو باندې کار وشي.

**۲ – مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشي او د هغو پام دې د کتاب (٦۹) مخ ته راوګرزوي د لومړي چوکات پوښتنې یعنی له (۱–٦) پورې دې لومړي ګروپ ته، (۷) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته، او (۸) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې د هدایت سره سم د شکلونو له مخې کار وکړي او پوښتنې حل کړي. او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه کوي.

په همدې ډول بیا دې د زده کوونکو پام د کتاب (۷۰) مخ ته راوګرزوي (۱) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته، (۲) ګڼه پوښتنه دې لومړي ګروپ ته او (۳) ګڼه پوښتنه

دې دويم ګروپ ته ورکړل شي، ترڅو چې شکلونه په خپلو کتاپچو کې رسم کړي د سليزو، لسيزو او يويزو ځوابونه په ترتيب سره پيدا کړي.

او د دې مخ پاتې پوښتنې دې د کورنۍ دندې په توګه د هغو تر منځ وويشل شي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جريان څارنه کوي.

**۳- ارزيابي:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وايي چې د ۵۴۸ له عدد څخه مخ کې کوم عدد دی؟ او له هغه څخه وروسته کوم عدد دی؟

– څوک وايي چې د ۷۴۷ او ۷۴۹ عددونو په منځ کې کوم عدد دئ؟ او هغه عدد له کوم يوه څخه کوچنی او له کوم يوه څخه لوی دئ؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل او د <،> او = نښې په مناسب ځايونو کې وليکي.

۳۶۰ ☐ ۶۰۳، ۱۷۱ ☐ ۱۱۷، ۷۸۹ ☐ ۸۳۴

زده کوونکي مخ کې عدد، وروسته عدد، او منځ کې عدد وليکلای شي.

| | | |
|---|---|---|
| ___، ۵۷۲ | ___، ۷۸۴ | ۳۷۲، ___، ۳۷۴ |
| ___، ۴۳۸ | ___، ۹۶۵ | ۵۸۴، ___، ۵۸۶ |

**ذهنيت:**

د دې ډول پوښتنو په حل کولو سره زده کوونکي په خپل ځان او نفس باور پيدا کوي خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د عددونو د مقامي قيمت او ارزښت په پوهيدو او پيژندلو سره کولای شي د عددونو له کوچنيوالي، او لوی والي څخه په ورځنی ژوند کې کار واخلي د جنسونو او شيانو په بيه کې ښه او دقيق فکر کوي او عادلانه قضاوت کولای شي.

شکلونه خپلو کتابچو کې رسم کړئ له يويزو او لسيزو څخه په ترتيب سره د لسو او سلو ګروپونه جوړ او د هغو د شاوخوا څخه دايره وکاږئ او اړوند عــدد يــې وليکئ.



۱. ۳ سل ۱ لسه ۳ يو

۳۰۰ + ۱۰ + ۳

۳۱۳

۲. ۲ سل ۲ لسه ۲ يو

۲۰۰ + ۲۰ + ۲

۲۲۲

۳. ۰ سل ۱ لسه ۶ يو

۰ + ۱۰ + ۶

۱۶

لاندې پوښتنې خپلوکتابچوته نقل کړئ اوپه دايره کې د<،> يا = مناسبه نښه وليکئ.

۴. ۲۰۷ (>) ۷۰۲    ۱۱۶ (>) ۱۶۱    ۲۲۰ (<) ۱۲۱

۵. ۴۳۷ (>) ۷۴۳    ۳۳۲ (<) ۲۳۳    ۳۱۲ (<) ۱۲۳

د حل شوي مثال سره سم تش ځايونه ډک کړئ.

۶. ۶۰۵، ۶۱۵، ۶۲۵، ۶۳۵    ۸۰۰، ۸۰۵، ۸۱۰، ۸۱۵

۷. ۳۴۰، ۳۵۰، ۳۶۰، ۳۷۰    ۵۹۹، ۶۹۹، ۷۹۹، ۸۹۹

۸. ۳۲۲، ۳۳۲، ۳۴۲، ۳۵۲    ۷۲۰، ۷۲۴، ۷۲۸، ۷۳۲

مخ کې عدد وروسته عدد او د دو عددونو په منځ کې عدد وليکئ.

۹. ۴۳۵، ۴۳۶    ۸۰۹، ۸۱۰، ۸۱۱    ۱۷۰، ۱۷۱

۱۰. ۶۳۷، ۶۳۸، ۶۳۹    ۳۳۳، ۳۳۴    ۴۴۴، ۴۴۵

**کورنۍ دنده:** زده کوونکي د ۹ او ۱۰ شميري پوښتنې په کورکې حل کړي؟

۷۰

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې په درې ګروپونو وويشل شي او لاندې پوښتنې دې په خپلو کتابچو کې حل کړي.

– د کتاب د (۷۰) مخ (۴ او ۵) پوښتنې دې لومړی ګروپ ته ورکړل شي چې په خپل کورونو کې حل د <، > او = نښې په مناسب ځايونو کې وليکي.

– د همدې (۷۰) مخ (۶، ۷ او ۸) ګڼې پوښتنې دويم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو د حل شوی مثال په ډول کار وکړي.

– د (۹ او ۱۰) ګڼې پوښتنې دې دريم ګروپ ته ورکړل شي چې د کتاب د هدايت سره سم پوښتنې حل کړي.

# عنوان: د څو سلګونو جمع کول

**درې دیرشم لوست، (۷۱) مخ**
**وخت: دوساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** په دې لوست کې زده کوونکي وکړای شي د درې رقمي (څو سلګونو) عددونو کې د جمعې عملیه سرته ورسوي.
**اصطلاح ګاني:** جمع کول، څو سلګونی یا څو سوه، درې رقمي.
**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو د سلګونو بنډلونه او نور د شمیرلو وړ شیان.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي. د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه ویل کیږي په ډېره باندې دې ولیکل شي. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې هغوې په خپله د اشتباه ګانو لپاره صحیح او سم ځوابونه پیدا کړي له هغه پرته په خپله ښوونکی دې صحح او سم ځوابونه په ډېره باندې تشریح کړي. بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:
له لومړي ګروپ څخه: جلیله ۳ سله، ۴ لسه ۷ یو دانه یې کوم عدد ښیي؟
له دویم ګروپ څخه: بشیر احمد د ۵۸۳ په عدد کې څو سله، څو لسه او څو یو دانه یې دي؟
له دریم ګروپ څخه: زلمیه د ۷۸۰ د عدد څخه مخ کې عدد او وروسته عدد کوم دي؟
– ښاغلی ښوونکی دې د لرګوټو د سلګونو بنډلونه په خپل میز باندې کښیږدي، له لومړي او دویم ګروپونو څخه دې، یو، یو زده کوونکئ راوغواړي، یوه ته دې د لرګوټو د سلګونو ۲ بنډله او بل ته د لرګوټو د سلګونو یو بنډل ورکړي. او د ټولګي په دوو ګوټو (کنج) کې دې ودروي بیا دې له زده کوونکو څخه وپوښتي، زده کوونکو ته پام وکړئ له هغو سره د لرګوټو د سلګونو څو، څو بنډلونه دی هغوی ویني او وایي له یوه سره د سلګونو ۲ بندله او له بل سره د سلګونو یو بنډل دئ. بیا دې له دریم ګروپ

شپږم فصل
د درې رقمي عددونو جمع او تفریق
درې دیرشم لوست
د درې رقمي عددونو جمع او تفریق
د څو سلګونو جمع کول

هدف: په دې لوست کې زده کوونکي په درې رقمي (څوسلګونو) عددونوکې جمع او تفریق سرته ورسولای شي.

د چوکات له وزنونو څخه کوم یې سره جمع شي ترڅو د موټر بار بشپړ شي.

| | | |
|---|---|---|
| ۵۰۰ کیلوګرامه | ۵۰۰ کیلوګرامه | |
| ۱۰۰ کیلوګرامه | ۷۰۰ کیلوګرامه | |
| ۱۰۰ کیلوګرامه | ۵۰۰ کیلوګرامه | ۲۰۰ کیلوګرامه |
| ۸۰۰ کیلوګرامه | ۳۰۰ کیلوګرامه | ۶۰۰ کیلوګرامه |

دا لارۍ ۱۰۰۰ کیلوګرام بار وړي.

۵۰۰ + ۵۰۰ = ۱۰۰۰
۷۰۰ + ۳۰۰ = ۱۰۰۰
۸۰۰ + ۲۰۰ = ۱۰۰۰

مثال:


۳ سله

۲ سله

۵ سله = ۲ سله + ۳ سله
۳۰۰ + ۲۰۰ = ۵۰۰

پورتنۍ مثال په نظر کې ونیسي اولاندې پوښتنې جمع کړئ.

۱. 


۵ سله = ۳ سله + ۲ سله
۲۰۰ + ۳۰۰ = ۵۰۰

۷۱

څخه یو زده کوونکئ راوغواړي. او دوو مخکنیو زده کوونکو ته دې ووایي تاسو دواړه خپل لرګوټي و دریم زده کوونکي ته ورکړئ. کله چې لرګوټي ورکړي. ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وپوښتي، اوس له دریم زده کوونکئ سره د لرګوټو د سلګونو څو بنډله دي.
زده کوونکی ځواب ورکوي چې د لرګوټو د سلګونو ۳ بنډلونه دي، د سلګونو دا درې بنډلونه له کومه شول، زده کوونکی ځواب ورکوي چې دوه بنډله د سلګونو یې له لومړي ګروپ څخه او یو بنډل د سلګونو یې له دویم ګروپ څخه واخست او یو ځای یې کړل چې د لرګوټو د سلګونو ۳ بنډله شول، په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې صابر او احمد د ټولګي مخې ته راوغواړي احمد ته دې د لرګوټو د سلګونو ۳ بنډله او صابر ته دې د لرګوټو د سلګونو یو بنډل ورکړي، زده کوونکي ویني چې د هر یو سره د لرګوټو د سلګونو څو بنډلونه دي. بیا دې ښاغلی ښوونکی هغوی ته ووایي چې تاسو دواړه خپل لرګوټي محمود ته ورکړئ. کله چې لرګوټي یې محمود ته ورکړل

له نورو زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي. اوس له محمود سره څو لرګوټې دي؟

هغوی ويني او ځواب وايي چې د لرګوټو د سلګونو ۴ بنډلونه دي. بيا دې وپوښتي. دا ۴ بنډلونه له کومه شول؟ زده کوونکی ځواب ورکوي چې ۳ بنډله د سلګونو يې له احمد او يو بندل د سلګونو يې له صابر څخه واخست چې د لرګوټو د سلګونو ۴ بنډلونه شول.

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي څوک کولای شي چې دا فعاليتونه د سلګونو د جمعې په عمليې کې وښيي، ښايي چې داوطلب زده کوونکی پيدا شي. که چيرې پيدا نشي ښاغلی ښوونکی دې داسې تشريح کړي.

د محمود لرګوټې = د صابر لرګوټې + د احمد لرګوټې

۳ سله = ۱ سل + ۲ سله

۳۰۰ = ۱۰۰ + ۲۰۰

په همدې ډول نور فعاليتونه دې سرته ورسول شي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب ۷۱ مخ ته راوګرزوي د لاری د موټر شکل چې رسم شوی دئ زده کوونکو ته دې داسې تشريح کړي، چې دا موټر له ۱۰۰۰ کيلوګرام څخه زيات شيان يا جنس وړلای نشي د دې لاری موټر ته مخامخ يو جدول شته دئ چې په هغه کې مختلف وزنونه ليکل شوی دي. داسې دوه عددونه يا وزنونه پيدا کړئ چې د جمعې حاصل يې له ۱۰۰۰ کيلوګرام څخه زيات نشي ټول زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې کار وکړي ليدل کيږي چې هر يو زده کوونکئ څو ځوابونه پيدا کولای شي بيا دې ښاغلی ښوونکی هغه مثال زده کوونکو ته تشريح کړي چې د جمعې اجزاوي څو سليزه وي، او د جمعې حاصل يې هم څو سله کيږي، د دې مخ په پای کې چې يوه پوښتنه ده زده کوونکو ته دې ورکړل شي چې په ټولګي کې کار وکړي ښاغلی ښوونکی په دې لوست کې زده کوونکی د دري رقمي عددونو جمع کول زده کوي بايد په يوه منظمه طريقه يعنی د سلګونو په طريقې سره کار وشي ګام په ګام د پوښتنې د حل مرحلې په مخ لاړې شي او زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې په فعاليتونو کې په ګروپي ډول کار وکړي، او د کار جريان څارنه دې وشي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکي خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وايي چې ۲ سلګونې او ۳ سلګونې څو سلګونې کيږي؟

– څوک وايي چې ۸۰۰ او ۷۰۰ هر يو څو، څو سلګونې کيږي؟

**مهارت:** زده کوونکی وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي.

___ = ۲ سله + ۵ سله، ___ = ۴ سله + ۲ سله، ___ = ۴ سله + ۳ سله

___ = ___ + ___، ___ = ___ + ___، ___ = ___ + ___

**ذهنيت:** د دري رقمي عددونو په جمع کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي د رياضي له زده کولو سره مينه پيدا کوي.

**ارزښت:** د جمعې د داسې عمليې په پوهيدو سره زده کوونکي کولای شي د خپل ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار واخلي ځکه هغه د سلګونو جمع کول ژر سرته رسوي، او هدف لاس ته راوړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل او له ځانو سره دې راوړي.

___ = ۲ سله + ٦ سله

___ = ___ + ___

# عنوان: د څو سلګونو جمع کول

**(۷۲) مخ**

**وخت: دوساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د درې رقمیو (څو سلګونو) عددونو جمع سرته ورسوي.

**اصطلاح ګانې:** جمع، درې رقمي، څو سوه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د سلیزو بنډلونه.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دندې په دقت سره وکتل شي، د هر ګروپ اشتباه ګانې دې په دړه باندې ولیکل شي صحیح او سم ځوابونه دې له زده کوونکو څخه په لاس راوړل شي او د ستونزو په صورت کې ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړه باندې تشریح کړي بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وشي:

له لومړي ګروپ څخه: محمود دې دړې ته راشي ۲ سله دې له ۴ سلو سره په دړه باندې جمع کړي.

له دویم ګروپ څخه: زلمیه په سلوکې د یویزو او لسیزو په مرتبو کې څو یا څه شي دي؟

له دریم ګروپ څخه: احمد دې دړې ته راشي ۳ سله او ۴ سله دې په دړه باندې جمع کړي.

– ښاغلی ښوونکی د دوو زده کوونکو لکه جلیل او بشیر احمد نومونه واخله او د ټولګی مخې ته یې راوغواړه جلیل ته ۵ بنډله د سلو او بشیر احمد ته ۳ بنډله د سلو ورکړه. ترڅو ټوله زده کوونکي یې ولیدلای شي دریم زده کوونکی د مثال په توګه احمد دې د ټولګی مخې ته راوغواړي، بشیر احمد او جلیل ته ووایه، تاسو دواړه د سلو بنډلونه و احمد ته ورکړئ هغوی د سلو بنډلونه احمد ته ورکوي. بیا دې له زده کوونکو څخه وپوښتي، چې اوس له احمد سره څو بنډله د سلو دي؟ هغوی له احمد سره د سلو بنډلونه وینی وایي ۸ بنډله د سلو دي. بیا دې وپوښتي ۸ بنډله د سلو له کومې خوا شول؟ هغوی ځواب ورکوي ۵ بنډله د سلو یې له جلیل څخه او ۴ بنډله د سلو یې له بشیر احمد څخه واخستل او هغه یې سره یو ځای کړل چې ۸ بنډله د سلو شول.

بیا دې څلورم زده کوونکۍ ته ووایې راشه د دې سرته رسیدلی فعالیت د جمعې عملیه په دړه باندې ولیکه او حل یې کړه که چیري زده کوونکۍ:

۸ سله = ۳ سله + ۵ سله

۵۰۰ + ۳۰۰ = ۸۰۰

ولیکل، ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې دا عملیه په دړې باندې زده کوونکو ته تشریح کړي او زده کوونکو ته دې ووایي د درې رقمې عددونو په جمع کولو کې چې د جمعې حاصل یې له ۱۰۰۰ څخه لړ دئ د هغه د جمعې اجزاوي ۱۰۰، ۲۰۰، ۳۰۰، ...، څو سله د یویز مرتبه او د لسیز مرتبه یې صفر وی) جوړوي په همدې ډول زده کوونکی دې نور فعالیتونه سرته ورسوي ترڅو د دري رقمې عددونو جمع کول چې یویز او لسیز یې صفر وی د هغو په ذهن کې ځای ونیسي.

.۲ ۸ سله = ۶ سله + ۲ سله

۸۰۰ = ۶۰۰ + ۲۰۰

.۳ ۶ سله = ۱ سله + ۵ سله

۶۰۰ = ۱۰۰ + ۵۰۰

.۴ ۶ سله = ۵ سله + ۱ سله

۶۰۰ = ۵۰۰ + ۱۰۰

.۵ ۳ سله + ۴ سله = ۷ سله

۳۰۰ + ۴۰۰ = ۷۰۰

.۶ ۲ سله + ۵ سله = ۷ سله

۲۰۰ + ۵۰۰ = ۷۰۰

**کورنۍ دنده:** لاندې پوښتنې د سلګونو بنډلونه په خپلو کتابچو رسم او جمع یې کړئ.

زده کوونکې دې په خپله د لرګوټو بنډلونه جوړ او جمع کړی

۲ ___ سله + ۳ ___ سله = ___ سله

___ + ___ = ___

۷۲

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۷۲) مخ ته راوګرزوي او هدایت دې ورکړي چې د عددونو جمع کول د سلونو په شکل کیږي د شکلونو له مخې د جمعې حاصل پیدا کړئ د (۲، ۳) ګڼې پوښتنې دې لومړی ګروپ ته، (۴ او ۵) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته، او (٦) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې په ټولګۍ کې په ګروپي ډول کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې په سلیزو کې کومې مرتبې صفر دي؟

– څوک وایې چې ۳ سوه او ٦ سوه څو سوه کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکې وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي:

۷ سله = ۲ سله + ___ سله　　　　۹ سله = ___ سله + ۵ سله

۷۰۰ = ___ + ___　　　　___ = ___ + ___

**ذهنیت:**

زده کوونکې د جمعې د عملیې په اجراء کولو سره چې د جمعې اجزاوي، سلګونې جوړ کړي د ریاضي له زده کولو سره مینه پیدا کوي.

**ارزښت:**

هغه مهارتونه چې زده کوونکو پیدا کړي دې د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار ورڅخه اخلي د مثال په توګه چیری پلار خپل زوی ته ۲۰۰ افغانۍ او ورور یې ۳۰۰ افغانۍ ورکړي. هغه ډیر ژر خپلې پیسې جمع کولای شي. او خپل ځان د ۵۰۰ افغانیو خاوند بولي. او خوښی ښکاره کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کونکې دې د کتاب ۷۲ مخ کورنۍ دنده له هدایت سره سم په خپلو کتابچو کی سرته ورسوي.

# عنوان: د يوه دري رقمي عدد جمع کول له يوه دري رقمي عدد سره چې د يويز او لسيز رقمونه يې صفر وي

**څلور ديرشم لوست، (۷۳) مخ**

**وخت: دوساعته (۴۵ دقيقه يې)**

### څلور دېرشم لوست
### د درې رقمي عدد جمع کول له درې رقمي عددسره چې ديويز او لسيز رقمونه يې صفر وي

هدف:زده کوونکي يو درې رقمي عدد له بل درې رقمي عدد سره چې ديويز او لسيز رقمونه يې صفر وي جمع کړاي شي.

مثال

۳ سله ۳ لسه ۱ يو
۵ سله ۰ لسه ۰ يو
۸ سله ۳ لسه ۱ يو

| |
|---|
| ۳۳۱ |
| + ۵۰۰ |
| ۸۳۱ |

۸۳۱ = ټوله

۱. ۲ سله ۶ لسه ۴ يو
۵ سله ۰ لسه ۰ يو
۷ سله ۶ لسه ۴ يو

| |
|---|
| ۲۶۴ |
| + ۵۰۰ |
| ۷۶۴ |

۲. ۳ سله ۲ لسه ۷ يو
۴ سله ۰ لسه ۰ يو
۷ سله ۲ لسه ۷ يو

| |
|---|
| ۳۲۷ |
| + ۴۰۰ |
| ۷۲۷ |

۳–

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۷۳ | ۱۸۷ | ۶۱۲ | ۴۳۹ | ۶۴۳ |
| + ۳۰۰ | + ۵۰۰ | + ۱۰۰ | + ۵۰۰ | + ۲۰۰ |
| ۵۷۳ | ۶۸۷ | ۷۱۲ | ۹۳۹ | ۸۴۳ |

۴–

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۵۲۷ | ۷۲۸ | ۴۸۳ | ۵۱۲ | ۳۷۴ |
| + ۱۰۰ | + ۲۰۰ | + ۳۰۰ | + ۱۰۰ | + ۴۰۰ |
| ۶۲۷ | ۹۲۸ | ۷۸۳ | ۶۱۲ | ۷۷۴ |

**کورنۍ دنده:** جمع يې کړئ.

۱.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۸۴۷ | ۲۴۷ | ۴۸۲ | ۳۷۱ | ۵۴۷ |
| + ۱۰۰ | + ۷۰۰ | + ۲۰۰ | + ۵۰۰ | + ۳۰۰ |
| ۹۴۷ | ۹۴۷ | ۶۸۲ | ۸۷۱ | ۸۴۷ |

۷۳

**هدف:** زده کوونکي يو درې رقمي عدد له يو بل درې رقمي عدد سره چې د يويز او لسيز رقمونه يې صفر وي جمع کړاێ شي.

**اصطلاح ګانې:** جمع، درې رقمي، يويز او لسيز.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو د سلګونو (سليانو) بنډلونه، او نور د چاپيريال د شميرلو وړ مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، هغه اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه پيدا او ويل کيږي په درې باندې دې وليکل شي، هر هغه ګروپ چې اشتباه پيدا کړې ده صحيح ځواب دې هم په خپله هغه ګروپ ووايي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکئ دې صحيح ځواب په درې باندې تشريح او وليکي. او لاندې پوښتنې دې له زده کوونکو څخه په ګروپي يا انفرادی توګه وکړي:

لومړی ګروپ: د تاسو څخه دې دوه تنه د ميز څنګ ته ولاړ شي يو د تاسو دې دوه بنډلونه د سلو او بل د تاسو درې بنډلونه د سلو واخلي، او سره يو ځای يې کړئ.

دويم ګروپ: هغه مواد چې لومړی ګروپ جلاء کړئ دې يو تن د تاسو دې په درې باندې جمع کړي.

دريم ګروپ: د ۶ سله = ۳ سله + ۳ سله افادې لپاره د ميز څخه مواد جلا کړئ دوه نوري طريقې چې مخکې موزده کړي دي وليکي.

– ښاغلی ښوونکی دې دوه بنډله د سلګونو ۳ بنډله د لس ګونو، او ۲ يو دانه يې لرګوټي په يوه ځای کې او ۴ بنډله د سلګونو لرګوټي په بل ځای کې کښېږدي او له زده کوونکو څخه دې وپوښتي. تاسو د لرګوټو بنډلونه په څو ځايونو کې وينئ هغوی به ووايي په دوه ځايونو کې، بيا دې يوه زده کوونکي ته ووايي راشه دا لرګوټي يو له بله سره يو ځای کړه زده کوونکئ راځي د لرګوټو بنډلونه يو له بله سره يو ځای کوي، له يوه دويم زده کوونکي څخه دې غوښتنه وکړي چې راشي او لرګوټي وشميري، چې څو بنډله سلګون، څو بنډله د لس ګونو او څو يو دانه يې شوي دي. هغه راځي لرګوټي شميری او وايي ۶ بندله سلګوني، ۲ بندله لس ګوني او ۲ يو دانه يې شوی دی.

په همدې ډول احمد دې راشي له دې لرګوټو څخه دې ۳ بنډله سلګوني، ۴ بنډله لس ګوني او ۳ يو دانه يې جلا کړي او په خپل لاس کې دې ونيسی او زلمی ته دې ووايي يوازې ۲ بنډله سلګوني جلاء کړه او په لاس کې ونيسه کله چې هغوی هر يوه لرګوټي په خپل لاس کې ونيول، له دې وروسته هغوی ته دې ووايي تاسو دواړه خپل لرګوټي وفريد ته ورکړئ هغوی لرګوټي فريد ته ورکوي او له زده کوونکو څخه دې وپوښتي چې له فريد سره د لرګوټو څو سلګوني، څو لس ګوني او څو

یو دانه یې دي؟ هغوی له فرید سره لرګوټي شمیري او وایې، له فرید سره، ۵ بنډله سلګونې، ۴ بنډله لس ګونې او ۳ یو دانه یې لرګوټي دي. بیا دې پوښتنه وکړي دا لرګوټې له کومه شول؟ هغوی به ووایې ۳ بنډله سلګونې، ۴ بنډله لس ګونې او ۳ یو دانه یې لرګوټي یې له احمد څخه او ۲ بنډله سلګوني لرګوټي یې له زلمی څخه واخست چې ټوله ۵ بنډله سلګونې، ۴ بنډله لس ګونې او ۳ یو دانه یې لرګوټې شول. او دریم واري دې بیا له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې له زلمی سره څو بنډله سلګونی، څو بنډله لس ګونې او څو یو دانه لرګوټي وه؟ هغوی ځواب ورکوي له هغه سره هیڅ لرګوټي نه وو، بیا دې زده کوونکو ته ووایې څوک کولای شي د هغه د ریاضی افاده په درې باندې ولیکی. که چیرې کوم داوطلب زده کوونکی پیدا شي نو هغه ته اجازه ورکړئ ترڅو پوښتنه حل کړي. او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې داسې حل کړی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | ۳ سله | ۴ لسه | ۳ یو | = | ۳۴۳ | |
| | ۲ سله | ۰ لسه | ۰ یو + | = | ۲۰۰ | + |
| د فرید لرګوټې: | ۵ سله | ۴ لسه | ۳ یو | = | ۵۴۳ | |

– ښاغلی ښوونکی په دې لوست کې زده کوونکی باید څوسله چې په خپله یو درې رقمې عدد دئ، له یوه درې رقمې عدد سره چې یویز او لسیز یې صفر نه وي جمع کړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۷۳) مخ ته راوګرزوي (۱) ګڼه پوښتنه چې حل شوي ده هغه دې تشریح او حل کړي بیا دې (۱، ۲) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ ته، (۳) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته، (۴، ۵) ګڼې پوښتنې دې دریم ګروپ ته ورکړي چې هغوی په ټولګی کې کار ورباندې وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وشي؟

**پوهه:**

– څوک وایې چې ۳ سله، ۵ لسه او ۷ یو څو کیږي؟

– څوک وایې چې ۲ سله، صفر لسه، او ٦ یو څو کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شی لاندې پوښتنې حل کړي.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۷ سله | ۵ لسه | ٦ یو | = | ______ | ۴ سله | ۷ لسه | ۳ یو | = | ______ |
| ۲ سله | ۰ لسه | ۰ یو + | = | ______ + | ۳ سله | ۰ لسه | ۰ یو + | = | ______ + |

**ذهنیت:**

د دوو، درې رقمې عددونو د جمعې په زده کولو سره، د زده کوونکو ذهن بدلون مومې، له ریاضي سره مینه پیدا کوي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی د دې عملیې په پوهیدو سره په خپل ورځنی ژوند کې کار ورڅخه اخلی. په ډیر اسانی سره کولای شي یو درې رقمې عدد چې یویز او لسیز یې صفر نه وي له څو سلګونو سره جمع او صحیح ځوابونه یې پیدا کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی د (۷۳) مخ وروستۍ پوښتنې چې د زده کوونکو لپاره د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي دې هغه دې حل سبا دې له ځانو سره راوړي.

**پنځه دیرشم لوست**

**د درې رقمي عددونو جمع**

هدف: زده کوونکي ټول درې رقمي عددونه یوله بله سره جمع کړاي شي.

د اماني ښوونځي یو لوی سالون د زده کوونکو دکارونو د ښودلو له پاره لري.



د سه شنبې په ورځ ۲۴۷ تنه راغلل.

او د چهارشنبې په ورځ ۱۳۲ تنه راغلل.

په مجموع کې د دې سالون څخه څو تنو لیدنه کړې ده.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۷ | ۴ | ۲ |
| ۲ | ۳ | +۱ |
| ۹ | ۷ | ۳ |

۹ یو ۷ لسه ۳ سله

۳۷۹

۳۷۹ تنه د لوبغاړي سالون ته راغلي دي



پوښتنه: ولې مونږ لومړي یویز جمع کوو؟

د خپل یو ټولګیوال سره کار وکړئ له یویزو څخه یې پیل کړئ اوجمع یې کړئ.

۱.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۵ | ۲ | ۱ |
| ۴ | ۳ | +۳ |
| ۹ | ۵ | ۴ |

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۴ | ۱ | ۳ |
| ۵ | ۲ | +۱ |
| ۹ | ۳ | ۴ |

۲.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۶ | ۱ | ۳ |
| ۱ | ۵ | +۲ |
| ۷ | ۶ | ۵ |

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۲ | ۲ | ۴ |
| ۵ | ۱ | +۵ |
| ۷ | ۳ | ۹ |

۷۴

# عنوان: د درې رقمي عددونو جمع کول

**پنځه دیرشم لوست، (۷۴ و ۷۵) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي ټول درې رقمي عددونه یو له بله سره جمع کړي.

**اصطلاح ګانې:** درې رقمي، جمع، یویز، لسیز، سلیز.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو د سلیزو بندلونه، د لسیزو بنډلونه، او یو دانه یې لرګوټې.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو له خوا اعلانیږي په درې باندې دې ولیکل شي. صحیح ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي او پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي. بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وشي:

له لومړي ګروپ څخه فرید: ۴ سله، ۳ لسه، ۲ یو څو کیږي.

له دویم ګروپ څخه صابر: ۵۴۸ څو سله، څو لسه، او څو یو لري؟

له دریم ګروپ څخه هارون: که چیرې د سلیزو په مرتبه کې ۲، د لسیزو په مرتبه کې صفر او د یویزو په مرتبه کې هم صفر وی څو لوستل کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی دې یو بنډل د سلګونو، ۵ بنډله د لسیو او ۴ یو دانه یې لرګوټې د ټولګي په یوه ګوټ کې، ۴ بنډله د سلګونو، ۲ بنډله د لسیو او ۳ یو دانه یې لرګوټې د ټولګي په بل ګوټ کې کښیږدي، بیادې زده کوونکو ته وویل شي څوک راځي دا لرګوټي په ترتیب او صحیح توګه یو ځای کوي، یوه داوطلب زده کوونکی ته دې اجازه ورکړل شي چې راشي او لرګوټي یو له بله سره یو ځای کړي، که چیرې زده کوونکی د سلګونو بنډلونه، د سلګونو له بنډلونو سره، او د لسیو بنډلونه یې د لسیو له بنډلونو سره، او یو دانه یې له یو دانه یې سره جمع کړي، ښه به وي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې مرسته وکړي او ودې وایې په جمع کولو کې یویز له یویزو سره، لسیز له لسیزو سره او سلیز له سلیزو سره جمع کیږي.

بیا دې یو زده کوونکئ راوغواړي او هغه ته دې ووایې چې دا د جمعې حاصل د ریاضي په یوه افاده کې وښیه، که چیرې زده کوونکئ وښودلای شی ښه به وي، له هغه پرته په خپله ښوونکی دې په یوه جدول کې داسې وښیي چې یویز تر یویز لاندې، لسیز تر لسیز لاندې او سلیز تر سلیز لاندې راشي او یو له بله سره یې جمع کړي.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۴ | ۵ | ۱ |
| ۳ | ۲ | + ۴ |
| ۷ | ۷ | ۵ |

د جمعې د حاصل په برخه کې دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وشي چې د جمعې په دې حاصل کې څو سله، څو لسه او څو یو دانه یې شتوالی لري. زده کوونکئ داسې ځواب وایي ۵ سله، ۷ لسه او ۷ یو دانه یې دي.

بیا دې ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته داسې ووایې چې په لومړي واري یویز له یویزو سره بیا لسیز له لسیزو سره او

په پای کې سلیز له سلیزو سره، جمع کړئ. ښايي چې ځنې زده کوونکی لومړی واري سلیز سره جمع کړی. خو هغوی ته ووایاست چې دا ډول جمع کول غلطه ده جمع کول له یویز و پیل کیږي.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۷۴ او ۷۵) مخونو ته راوګرزوي هغه مثالونه چې په همدې مخونو کې حل شوي دي زده کوونکو ته بې تشریح کړه، بیا دې (۱، ۲)ګڼې پوښتنې دریم ګروپ ته، (۳، ۴ او ۵) ګڼې پوښتنې دې لومړی ګروپ ته (٦ او ۷) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته ورکړل شي چې په ټولګی کې په ګروپی ډول کار وکړي، او ښاغلی ښوونکی دې د کار له جریان څخه څارنه وکړي.

**۳- ارزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې چې د درې رقمي عددونو په جمع کولو کې په ترتیب سره لومړی کومي مرتبې جمع کیږي؟
- څوک وایې مونږ ولی، د تل لپاره لومړی یویز، یو له بله سره جمع کوو؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي دري رقمې عددونه یو له بله سره جمع کړي.

۳.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۲ | ۷ | ۵ |
| + ۴ | ۱ | ۹ |
| ۶ | ۹ | ۴ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۶ | ۳ | ۷ |
| + ۱ | ۶ | ۱ |
| ۷ | ۹ | ۸ |

۴.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۵ | ۳ | ۸ |
| + ۱ | ۵ | ۰ |
| ۶ | ۸ | ۸ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۴ | ۵ | ۴ |
| + ۱ | ۱ | ۴ |
| ۵ | ۶ | ۸ |

جمع یې کړي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۵. | ۱۲۹ + ۳۰ = ۱۵۹ | ۳۴۱ + ۱۲۸ = ۴۶۹ | ۱۷۰ + ۳۱۲ = ۴۸۲ | ۲۰۶ + ۱۷۲ = ۳۷۸ | ۶۱۲ + ۳۵ = ۶۴۷ |
| ٦. | ۴۰۳ + ۲۱۴ = ۶۱۷ | ۱۵۹ + ۲۲۰ = ۳۷۹ | ۳۲۵ + ۷۱ = ۳۹۶ | ۵۰۸ + ۲۱۶ = ۷۲۴ | ۴۱۲ + ۴۴ = ۴۵۶ |
| ۷. | ۳۳۱ + ۵۱۷ = ۸۴۸ | ۱۱۱ + ۴۴۳ = ۵۵۴ | ۵۳۷ + ۲۱ = ۵۵۸ | ۷۷۱ + ۱۰۸ = ۸۷۹ | ۸۲۳ + ۱۶۴ = ۹۸۷ |

**کورنۍ دنده:**

په تشو ځایونو کې مناسب عددونه ولیکئ.

۱.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| [۷] | ۱ | [۳] |
| + ۲ | [۷] | ۶ |
| ۹ | ۸ | ۹ |

۲.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ۲ | [۱] | ۶ |
| + [۴] | ۵ | [۰] |
| ۶ | ۶ | ۶ |

۷۵

**ذهنیت:**

د دري رقمي عددونو جمع کول له دري رقمي عددونو په زده کړئ سره د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راځي او د ریاضي له داسې عملیو څخه خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د جمعې د دې عملیې په پوهیدو سره زده کوونکي کولای شي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي هغوی د لویو عددونو په حسابولو کې وس پیدا کوي تر څو خپل ستونزي حل او له نورو سره مرسته وکړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته هدایت ورکړي چې د (۷۵) مخ په پای کې هغه پوښتنې چې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي دي تش ځایونه دې په مناسب عددونو سره ډک کړي. (لارښوونه دې وشي).

# عنوان: د درې رقمي عددونو جمع کول چې حاصل ولري

**شپږ دیرشم لوست، (۷۶) مخ**

**وخت: دوساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د درې رقمي عددونو په جمع کولو کې حاصل ونیسي او د جمعې عملیه په صحیح توګه سرته ورسوي.

**اصطلاح ګاني:** درې رقمي، حاصل، یویز، لسیز، سلیز.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو د سلګونو بنډلونه، د لس ګونو بنډلونه او یو دانه یې.

### ۱ – فعالیتونه:

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنی دنده دې په دقت سره وکتل شي، هغه چا چې پوښتنې پرته له کومې اشتباه کولو په صحیح توګه حل کړې دي د تشویق کوونکو کلمو په ویلو سره دې تشویق شي. او هغه چا چې اشتباه کړې دي، اشتباه ګاني دې په درېځ باندې ولیکل شي، بیا دې صحیح ځوابونه د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي. او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په یوه خاص صمیمت سره تشریح کړي او بیا دې لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: آیا کولای شو چې لومړی د سلیزو مرتبې سره جمع کړو؟

دویم ګروپ: که چیرې لومړی د لسیزو مرتبه د لسیزو له مرتبې سره او وروسته د یویزو مرتبه د یویزو له مرتبې سره جمع کړو صحیح ده او که غلط؟

دریم ګروپ: د درې رقمي عددونو په جمع کولو کې لومړی کومې مرتبې، دویم کومې مرتبې او دریم کومې مرتبې، یو له بله سره جمع کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی! فرید د ټولګی مخې ته راوغواړه هغه ته د لرګوټو دوه بنډله د سلګونو، ۵ بنډله د لس ګونو او ۵ یو دانه یې ورکړه په همدې ډول صابر هم د ټولګی مخې ته راوغواړه هغه ته هم د لرګوټو درې بنډله د سلګونو، ۷ بنډله د لس ګونو او ۲ یو دانه یې ورکړه. بیا هغو دواړو ته ووایه چې تاسو دواړه خپل لرګوټي احمد ته ورکړئ. هغوی خپل لرګوټي احمد ته ورکوي بیا دې له

شپږ دیرشم لوست

د درې رقمي عددونو جمع کول چې حاصل ولري

هدف: زده کوونکي وکولای شي د درې رقمي حاصل لرونکي عددونه جمع کړئ.

مونږ سلیز، لسیز او یویز په لاندې توګه جمع کولای شو.

| سلیز | لسیز | یویز | |
|---|---|---|---|
| | | | لومړی مرحلهٔ: یویز رقمونه سره جمع کړئ که چېرې حاصل ولري دوروستي رقم سره یې جمع کړئ. |

$$\begin{array}{r} ۳۶۴ \\ +۲۷۳ \\ \hline ۷ \end{array}$$

| سلیز | لسیز | یویز | |
|---|---|---|---|
| | | | دوهمه مرحلهٔ: لسیز رقمونه سره جمع کړئ که چېرې حاصل ولري دوروستي رقم سره یې جمع کړئ. |

۱

$$\begin{array}{r} ۳۶۴ \\ +۲۷۳ \\ \hline ۳۷ \end{array} \qquad \begin{array}{r} ۶ \\ +۷ \\ \hline ۱۳ \end{array}$$

| سلیز | لسیز | یویز | |
|---|---|---|---|
| | | | دریمه مرحلهٔ: دسلیزو رقمونه جمع کړئ. |

۱

$$\begin{array}{r} ۳۶۴ \\ +۲۷۳ \\ \hline ۶۳۷ \end{array}$$

۷۶

ټولو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې اوس له احمد سره څو لرګوټي دي؟ هغوی لرګوټي وینیي وایي ۵ بنډله د سلګونو، ۱۲ بنډله لس ګوني او ۷ یو دانه یې دي، ورته ودې ویل شي اوس له دې لرګوټو څخه د سلګونو بنډلونه یا دلس ګونو بنډلونه جوړیدای شي. که چیرې زده کوونکي ځواب ورکړ او وویل هو، بیا دې وپوښتي څرنګه؟ د لس ګونو له ۱۲ بنډلونو څخه چې لس بنډله یې یو سلګون کیږي او دوه بنډله یې په خپل حالت پاتې کیږي. که چیرې په صحیح توګه یې ونه وایي، ښاغلی ښوونکی دې داسې ووایي لس بنډله لس ګوني چې یو بنډل د سلګونو کیږي له سلګونو سره یې یو ځای کوو چې اوس ۶ بنډله د سلګونو، دوه بنډله لس ګوني او ۷ یو دانه یې دي. چې همدا لس بنډله لس ګوني یا یو سلګون په حقیقت کې د لسیزو د حاصل په نامه یادیږي او هغه دی د درې په مخ باندې داسې حل کړې.

په لومړئ واري یویز یو له بله سره جمع کوو.

$$\begin{array}{r} ۲۵۵ \\ +۳۷۲ \\ \hline ۷ \end{array}$$

په دويم واري لسيز يو له بله سره جمع کوو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | ۱ | | |
| | ۲ | ۵ | ۵ |
| + | ۳ | ۷ | ۲ |
| | ۱ | ۲ | ۷ |

په دريم واري سليز يو له بله سره جمع کوو او د جمعې حاصل په لاس راوړو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | ۱ | | |
| | ۲ | ۵ | ۵ |
| + | ۳ | ۷ | ۲ |
| | ٦ | ۲ | ۷ |

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی باید د دوو، دري رقمي عددونو د جمعې حاصل پیدا کړي که چيری مرتبې حاصل ولري حاصل دې د وروستی ستون د مرتبی په سر باندې وليکي او له هغې مرتبې سره دې جمع کړي. او زده کوونکو ته وواياست چې لس يو دانه يې، يو لسئ، او ۱۰ لسيه يو سلئ جوړوي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۷۷) مخ ته راوګرزوئ د (۱) ګني له پوښتنو څخه چې د دري رقمي عددونو جمع کول له دري رقمی عددونو سره چې حاصل لرونکی دي و هر ګروپ ته دې یوه، یوه پوښتنه ورکړل شي ترڅود حاصل په نظر کې نيولو سره پوښتنې حل کړي. او د کار د جريان څارنه دې وشي.

**۳– آرزونه:**

د ښاغلی ښوونکی د ډاډمن کيدو لپاره چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وشي. د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي چې د يويزو د مرتبو حاصل له کومي مرتبې سره جمع کيږي؟

– څوک وايي چې د لسيزو د مرتبو حاصل له کومي مرتبې سره جمع کيږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل او حاصل يې له وروستئ مرتبې سره جمع کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۴۷۸ | ۲۵۸ | ۵۰۸ |
| + ۲۵۴ | + ۴۹۱ | + ۲۱٦ |

**ذهنيت:**

د دري رقمي عددونو جمع کول چې حاصل ولري د هغو د عمليې په زده کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي، د رياضی د مسائيلو له حل کولو سره علاقه پیدا کوی او خوښی کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي کولای شي د جمعې له دې عمليې څخه د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار واخلي د خپل ځان او نورو ستونزي حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي لاندې پوښتنې حل او له خپل ځانو سره راوړي.

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| ☐ | ☐ | |
| ۳ | ۸ | ۴ |
| + ۲ | ۵ | ۷ |
| | | |

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| | ☐ | |
| ۴ | ٦ | ۵ |
| + ۳ | ۱ | ۷ |
| | | |

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| ☐ | ☐ | |
| ۴ | ۵ | ۳ |
| + ۳ | ۷ | ۸ |
| | | |

# عنوان: د درې رقمې عددونو جمع کول چې حاصل ولري

**(۷۷ – ۷۸) مخونه**
**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د درې رقمې عددونو په جمع کولو کې حاصل ونيسي او د جمعې عمليه په صحيح توګه سرته ورسوي.
**اصطلاح ګانې:** درې رقمی، حاصل، یویز، لسیز او سلیز.
**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو د سلګونو بنډلونه، د لس ګونو بنډلونه، او یو دانه یې.

**۱ – فعالیتونه:**
– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. کومې اشتباه ګانې چې د هر ګروپ په واسطه ویل کیږي د دړې په مخ باندې دې ولیکل شي صحیح ځوابونه دې په دړې باندې تشریح کړي او بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.
له دریم ګروپ څخه محمود: که چیري د لسیزو د مرتبې د جمعې حاصل له ۹ څخه زیات شي حاصل یې له کومې وروستی مرتبې سره جمع کیږي؟
له لومړي ګروپ څخه صابر: که چیری د یویزو د مرتبې د جمعې حاصل له ۹ څخه زیات شي حاصل یې له کومې وروستی مرتبې سره جمع کیږي؟
له دویم ګروپ څخه احمد: په کوم وخت کې حاصل نیسو؟ څه وخت نیول شوی حاصل له وروستۍ مرتبې سره جمع کیږي؟
– ښاغلی ښوونکی دې د لرګوټو ۳ بنډله، سلګونې ۷ بنډله لس ګونې او ۴ یو دانه یې د ټولګی په یوه ګوټ کې، ۳ بنډله سلګونې، ۴ بندله لس ګونې او ۸ یو دانه یې د ټولګی په بل ګوټ کې کښېږدي. او بیا دې د زده کوونکو پام د لرګوټو خواته را وګرزوي. لومړی ګروپ دې د ټولګی د یوه ګوټ لرګوټي، او دریم ګروپ دې د ټولګی د بل ګوټ لرګوټي وشیمری د هغو صحیح شمیره دې په دړې باندې ولکي بیا دې د دویم ګروپ څخه فرید ته ووایي راشه دا لرګوټي چې د ټولګی په دوو ګوټونو کې ایښودل شوي دي یو له بل سره یې یو ځای کړه فرید راځي هغه یو له بله سره یو ځای کوي.

جمع : که چیري اړتیاوي حاصل ونیسئ

۲.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | ١ | |
| ٢ | ٤ | ٩ |
| + ١ | ٣ | ٦ |
| ٣ | ٨ | ٥ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | ١ | |
| ٤ | ٠ | ٩ |
| + ٢ | ١ | ٣ |
| ٦ | ٢ | ٢ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ١ | □ | |
| | ٥ | ٣ |
| + ٥ | ٥ | ٤ |
| ٦ | ٠ | ٧ |

۳.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ١ | □ | |
| ٢ | ٧ | ٤ |
| + | ٦ | ١ |
| ٣ | ٣ | ٥ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | |
| ٤ | ٥ | ٣ |
| + ٥ | ١ | ٢ |
| ٩ | ٦ | ٥ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | ١ | |
| ٤ | ٢ | ٥ |
| + ٥ | ٤ | ٨ |
| ٩ | ٧ | ٣ |

۴.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | □ | |
| ١ | ٣ | ٥ |
| + ٥ | ٢ | ٤ |
| ٦ | ٥ | ٩ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ١ | □ | |
| ٣ | ٤ | ٧ |
| + | ٧ | ٢ |
| ٤ | ١ | ٩ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ١ | □ | |
| ٢ | ٨ | ١ |
| + ٣ | ٥ | ٦ |
| ٦ | ٣ | ٧ |

۵.

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | ١ | |
| ٤ | ٠ | ٧ |
| + ٣ | ١ | ٥ |
| ٧ | ٢ | ٢ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| ١ | □ | |
| ٥ | ٦ | ٩ |
| + | ٦ | ٠ |
| ٦ | ٢ | ٩ |

| سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|
| □ | ١ | |
| ٦ | ٣ | ٧ |
| + ٢ | ٤ | ٥ |
| ٨ | ٨ | ٢ |

**کورنۍ دنده:** حل یې کړئ.
د یوه ټولګي زده کوونکو ۳۷۸ کارتونه جوړ کړل.
د یوبل ټولګي زده کوونکو ۲٦۵ کارتونه جوړ کړل.
د دواړو ټولګیو زده کوونکو ټول څو کارتونه جوړ کړي دي؟

۳۷۸
\+ ۲۶۵
۶۴۳

۷۷

کله چې یو ځای یې کړل. بیا دې له همدې دویم ګروپ څخه یو دویم زده کوونکي ته ووایې راشه وشمیره چې اوس څو سلګونې، څو لس ګونې او څو یو دانه یې شوي دي؟ هغه راځي شمیری او وایې، چې ۵ سلګونې، ۱۱ لس ګونې او ۱۲ یو دانه یې دي، بیا دې له زده کوونکو څخه وپوښتي څوک کولای شي د دې لرګوټو اړوند عدد په دړې باندې ولیکي، ښایي چې زده کوونکی یې وکولای شي. او یا ونه توانیږي، او نه توانیدو علت دې وپوښتي بیا دې ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ۱۲ دانې یو دانه یې چې یو بنډل د لسي او ۲ یو دانه یې ورڅخه جوړیږي د هغو د لسو بندل دې د نورو بنډلونو د لسونو سره یو ځای کښیږدي چې ۱۲ بنډله د لس ګونو، د سلګون د یوه بنډل په شکل سره راوړو او یو بنډل د سلګونو کیږي تاسو مخکې ولوستل چې لس بنډله د لس ګونو یو سلګون جوړوي نو، ۱۰ بنډله د لس ګونو سره یو ځای کوو، چې ټوله لرګوټي ٦ بنډله سلګونې، ۲ بنډله لس ګونې او ۲ یوه دانه یې جوړوي او د هغه اړوند عدد ٦۲۲ لیکو چې دا عملیه د یو ځای کیدو یا د جمع کولوپه ریاضي کې

داسي سرته رسوو. (۱) (۱)

| | | |
|---|---|---|
| ۳ | ۷ | ۴ |
| + ۲ | ۴ | ۸ |
| ۶ | ۲ | ۲ |

– ښاغلی ښوونکی له دې وروسته زده کوونکي باید له چوکات بندې پرته دري رقمي عددونه جمع کړي. زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې په تمرینونو باندې په ګروپي ډول کار وکړي. او په تکراری توګه ورته وواياست چې لومړئ يويز جمع کړئ که چیری حاصل ولری د لسیزو د پاسه یادداشت کړی، بیا لسیز جمع کړی که اړتیاوي حاصل ونیسی په دریم واري سلیز سره جمع کړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۷۷) مخ ته راوګرزوئ (۲، ۳) ګنه پوښتني دې لومړی ګروپ ته، (۴) ګنه پوښتنه دې دویم ګروپ ته، او همدارنګه (۵) ګنه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړي ترڅو په ګروپي ډول يې حل کړي، او بيا دې د زده کوونکو پام د کتاب (۷۸) مخ ته راوګرزوي، هغه مثال چې په کتاب کې حل شوی دئ په ترتیب سره دې حل او تشریح کړي، له هغه وروسته دې (۱) ګنه پوښتنه دویم ګروپ ته (۲) ګنه پوښتنه دې دریم ګروپ ته، او (۳) ګنه پوښتنه دې لومړی ګروپ ته ورکړي چې زده کوونکي په ګروپي توګه کار وکړي.

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو په شا او خوا را ګرزي که چیری اړتیاوي. له هر ګروپ یا هر زده کوونکي سره دې مرسته وشي.

**۳–آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ځېل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي که چیری د جمعې حاصل ۱۶ شي د هغه د (۱) رقم څو لوستل کيږي او له کومي وروستئ مرتبې سره جمع کيږي.

– څوک وايي که چیری د جمعې حاصل ۱۴ شي د هغه د (۱) رقم څو لسه او له کومي وروستئ مرتبې سره جمع کيږي؟

**د درې رقمي عددونو د جمعې مشق او تمرين:**

تاسو درې رقمي عددونه په لاندې توګه جمع کولای شئ.

په دې ډول:

لومړی مرحلهٔ: يويز جمع کړئ که چېرې اړتیاوې حاصل ونیسئ. | دوهمه مرحلهٔ: لسيز جمع کړئ که چېرې اړتیاوې حاصل ونیسي. | دریمه مرحلهٔ: سليز سره جمع کړئ

| لومړی مرحله | دوهمه مرحله | دریمه مرحله |
|---|---|---|
| (۱) | (۱)(۱) | (۱)(۱) |
| ۲۶۷ | ۲۶۷ | ۲۶۷ |
| +۲۹۶ | +۲۹۶ | +۲۹۶ |
| ۳ | ۶۳ | ۵۶۳ |

۱۳

جمع يې کړئ.

۱.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| (۱)(۱) | (۱)(۱) | (۱)(۱) | | (۱)(۱) | (۱)(۱) |
| ۳۷۴ | ۲۴۵ | ۵۶۷ | ۱۴۹ | ۱۹۲ | ۸۵ |
| +۱۴۷ | +۴۵۸ | +۳۳۳ | +۷۵ | +۴۴ | +۱۹۷ |
| ۵۲۱ | ۷۰۳ | ۹۰۰ | ۲۲۴ | ۲۳۶ | ۲۸۲ |

۲.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | (۱) | (۱)(۱) | (۱)(۱) | (۱)(۱) | (۱) |
| ۳۶ | ۲۳۸ | ۴۵۵ | ۵۸۶ | ۱۷۷ | ۶۱۴ |
| +۷۳ | +۴۴ | +۱۴۵ | +۳۶۴ | +۱۶۸ | +۱۸۷ |
| ۱۰۹ | ۲۸۲ | ۶۰۰ | ۹۵۰ | ۳۴۵ | ۸۰۱ |

۳.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| (۱)(۱) | | (۱) | (۱) | (۱)(۱) | |
| ۱۹۸ | ۲۵۳ | ۴۹۴ | ۵۱۷ | ۳۴۶ | ۱۲۳ |
| +۲۶۷ | +۳۳۵ | +۳۶۳ | +۴۶۷ | +۳۶۴ | +۳۴۵ |
| ۴۶۵ | ۵۸۸ | ۸۵۷ | ۹۸۴ | ۷۱۰ | ۴۶۸ |

۷۸

**مهارت:** زده کوونکی وکړای شي لاندې پوښتنې د حاصل په نیولو سره جمع کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۶۷۴ | ۳۷۸ | ۵۶۷ |
| + ۲۶۵ | + ۱۵۳ | + ۲۵۴ |

**ذهنیت:**

د جمعې د عملیې په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی په خپل ژوند کې له دې مهارت څخه کار اخلي خپل ستونزي حل کوي او علاقه پيدا کوي چې له نورو سره مرسته وکړي

**۴–کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی په (۷۷) مخ کې پوښتنه د کورنۍ دندې په عنوان سره ټاکل شوی ده. زده کوونکو ته هدایت ورکړي چې د پوښتنې عبارت په دقت سره ولولي او حل دې کړي.

# عنوان: د دري رقمي عددونو تفريق د قرض (پور) اخستلو پرته

**اووه ديرشم لوست، (۷۹) مخ**
**وخت: دوساعته (۴۵ دقيقه يي)**

**هدف:** زده کوونکي دري رقمي عددونه له درې رقمي عددونو څخه له پور اخستلو پرته تفريق کړای شي.

**اصطلاح ګانې:** تفريق، پور اخستل، درې رقمي، يويز، لسيز، سليز.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګو د سلګونو بنډلونه، د لس ګونو بندلونه، او يو دانه يي.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانيږي د دړی په مخ بانديې وليکل شي، صحيح ځوابونه دې، د داوطلب زده کوونکو په واسطه تشريح شي. له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په درې بانديې تشريح او په وار سره دې له ګروپونو څخه پوښتنې وشي.:

لومړی ګروپ: تاسو تر اوس پورې څو مرتبې پيژندلي دي کومې دي؟ نومونه يې واخلئ.

دريم ګروپ: د لسيزو مرتبه لويې ده، او که د سليزو مرتبه په کوم اندازه سره.

دويم ګروپ: د يويزو مرتبه کوچنۍ ده او که د لسيزو مرتبه په کومه اندازه سره؟

– ښاغلی ښوونکی دی د يوه زده کوونکي مثلاً فريد نوم واخلي او د ټولګي مخې ته دې راوغواړي او هغه ته دی د لرګوټو ۵ بنډله سلګوني، ٦ بنډله لس ګوني او ۷ يو دانه يي ورکړي او له هغه دې پوښتنه وکړي چې دا لرګوټي څو دانې دي، هغه ځواب ورکوي (٥٦٧) دانې لرګوټې دي. او هغه ته دې ووايې له دې لرګوټو څخه ۲۳۴ دانې لرګوټې کم کړه خپل يوه ټولګيوال ته ورکړه، ښاغلی ښوونکی دې متوجه

اوه ديرشم لوست

د درې رقمي عددونو تفريق

هدف: زده کوونکي درې رقمي عددونه له درې رقمي عددونو څخه تفريق کړای شي.

لومړی يويز تفريق کړئ، دويم لسيز تفريق کړئ، دريم سليز تفريق کړئ

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ۷ | ۵ | ۴ |
| ۲ | ۳ | – ۳ |
| ۵ | ۲ | ۱ |

په ډله ايز توګه کار وکړئ.

۱.

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ۶ | ۲ | ۷ |
| ۵ | ۱ | – ۱ |
| ۱ | ۱ | ۶ |

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ۹ | ۸ | ۶ |
| ۳ | ۷ | – ۴ |
| ۶ | ۱ | ۲ |

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ۷ | ۳ | ۵ |
| ۶ | ۱ | – ۲ |
| ۱ | ۲ | ۳ |

۲.

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ۴ | ۹ | ۴ |
| ۳ | ۰ | – ۱ |
| ۱ | ۹ | ۳ |

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ۱ | ۷ | ۹ |
| ۰ | ۲ | – ۳ |
| ۱ | ۵ | ۶ |

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ۴ | ۴ | ۸ |
| ۱ | ۲ | – ۳ |
| ۳ | ۲ | ۵ |

۳. ۶۷۹ – ۱۵۱ = ۵۲۸، ۴۸۷ – ۲۳۷ = ۲۵۰، ۳۸۹ – ۶۴ = ۳۲۵، ۵۷۳ – ۱۳۰ = ۴۴۳، ۶۵۹ – ۲۷ = ۶۳۲

**کورنۍ دنده:**

۶۸۹ – ۲۵۳ = ۴۳۶، ۵۸۷ – ۳۳۷ = ۲۵۰، ۴۸۹ – ۱۶۴ = ۳۲۵، ۶۷۳ – ۱۳۲ = ۵۴۱، ۶۵۹ – ۴۳۷ = ۲۲۲

۷۹

اوسي چې زده کوونکی په ترتيب سره له ۷ يو څخه، ۴ يو، له ٦ لسو څخه ۳ لسه او له ۵ سلو څخه ۲ سله کموي او که نه؟ که چيرې په ترتيب سره کم کړي ښه به وي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې ووايي او د زده کوونکو په ياد دې راوړي د دوه رقمي په عددونو کې لومړی يو يز له يويزو او بيا لسيز له لسيزو څخه تفريق کيدل دلته هم ترتيب داسی ده چې لومړی يويز له يويزو څخه تفريق کړئ، دويم لسيز له لسيزو څخه تفريق کړئ او دريم سليز له سليزو څخه تفريق کړئ زده کوونکي بايد پورته سرته رسيدلی فعاليت داسی حل کړئ:

| يويز | لسيز | سليز |
| --- | --- | --- |
| ۷ | ٦ | ۵ |
| ۴ | ۳ | – ۲ |
| ۳ | ۳ | ۳ |

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکی بايد دري رقمي عددونه له پور اخستلو پرته، تفريق کړي، ښايي چې ځنی زده کوونکی لومړي، سليز يو له بله تفريق کړي، هغوی ته يې څرګند کړي چې دا غلط ده.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۷۹) مخ ته راوګرزوي، هغه مثال چې په دې مخ کې حل شوئ دئ تشريح دي کړي او مواد دې وکاروي، بيا دې (۱) ګڼه پوښتنه لومړی ګروپ ته، دويم ګڼه پوښتنه دې دويم ګروپ ته او ۳ ګڼه پوښتنه دې دريم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو په پوښتنو باندې په ګروپي ډول کار وکړي او هغه حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار د جريان څارنه کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړی د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايې چې د تفريق په عمليه کې لومړئ کومي مرتبې او دويم کومي مرتبې يو له بله تفريق کيږي؟

– څوک وايې چې په لومړي وار يويز يو له بله تفريق کيږی او که سيليز

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي لاندې پوښتنې يو له بله تفريق کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۷۸۵ | ۴۹۵ | ٦۵۸ |
| – ۳۵۱ | – ۲۷۰ | – ۴۳۷ |

**ذهنيت:**

د تفريق د دې عمليې په زده کولو سره، د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې عمليې په پوهيدلو او پيژندلو سره کولای شي د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار ورڅخه واخلي هغوی د پلورلو او رانيولو په لويو عددونو کې خپل ستونزی حل کوي او له نورو سره مرسته کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۷۹) مخ (۴) ګڼه پوښتنه دې د کورنۍ دندې په توګه زده کوونکو ته ورکړل شي ترڅو حل يې کړي او له ځانو سره يې راوړي.

# عنوان: د درې رقمي عددونو تفریق، په پور (قرض) اخستلو سره

**اته دیرشم لوست، (۸۰) مخ**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ د قیقه یي)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي له یوه درې رقمي عدد څخه درې رقمي عدد که چیرې پور اخستلو ته اړتیاوي تفریق کړي.

**اصطلاح ګاني:** عددونه، درې رقمې، پور اخستل، یویز، لسیز، سلیز.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو، د سلګونو بنډلونه، د لس ګونو بنډلونه او یو دانه یې.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښووونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي، اشتباه ګاني دې په درې باندې ولیکل شي زده کوونکو ته اجازه ورکړئ ترڅو په اشتباه ګانو باندې په آزاده توګه بحث او مذاکرې وکړي، صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي. او لاندې پوښتنې دې په ګروپي ډول یا انفرادې ډول له زده کوونکو څخه وپوښتل شي.

له لومړی ګروپ څخه: احمد دې ووایي له کوچنۍ عدد څخه لوی عدد تفریق کولای شئ؟

له دویم ګروپ څخه: محمود دی ووایي له لوی عدد څخه کوچنۍ عدد تفریق کولای شئ؟

له دریم ګروپ څخه: فرید دې ووایي د تفریق په عملیه کې لومړی کومې مرتبې، دویم کومې مرتبې او دریم کومې مرتبې یو له بله تفریق کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی دې د یوه زده کوونکی مثلاً صابر نوم واخلي د ټولګي مخې ته دې راوغواړي، هغه ته دې د لرګوټو ۴ بنډله سلګونې، ۳ بنډله لس ګونې او ۲ یو دانه یې ورکړي او ورته ودې وایي چې دا لرګوټي وشمیره چې څو دي، هغه یې شمیری او وایي ۴۳۲ لرګوټي دي، بیا دې هغه ته ووایي له دې لرګوټو څخه ۲۱۵ دانې لرګوټي خپل ټولګیوال فرید ته ورکړه. ښاغلی ښوونکی دې پام ونیسی چې زده کوونکی څرنګه یا په څه ډول یو دانه یې لرګوټي کموي. په څه ډول یو دانه یې لرګوټي کموي. که

**اته دیرشم لوست**

**د درې رقمي عددونو تفریق په پور (قرض) اخستلو سره**

هدف: زده کوونکي وکولای شي له یوه درې رقمي عدد څخه درې رقمي عدد چې پور اخستلوته اړتیا ولري تفریق کړای شي.

تاسو د ۱۴۶ عدد له ۳۱۸ څخه په لاندې توګه تفریق کولای شئ.

لومړی: یویز تفریق کړې که چیرې اړتیاوې د لسیزو له مرتبې څخه پور واخلئ (لسیز، په یوه دانه یې بدلې کړئ)

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |

۳۱۸
− ۱۴۶
۲

دویم: لسیز تفریق کړئ که چیرې اړتیاوې د سلیزو څخه پور واخلئ.

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |

۲ ۱۱
۳۱۸ ۱۱
− ۱۴۶ − ۴
۷۲ − ۷

په دې لوست کې مونږ یو سلی په ۱۰ لسونو بدل کړی دی.

دریم: سلیز تفریق کړئ.

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |

۲ ۱۱
۳۱۸
− ۱۴۶
۱۷۲

د خپل یوه ټولګیوال سره کار وکړئ لومړی یویز تفریق کړئ که چیرې پور اخستلو ته اړتیاوې د لسیزو له مرتبې څخه پور واخلئ.

مثال:

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ☐ | ۸ | ۱۵ |
| ۶ | ۹ | ۵ |
| − ۲ | ۴ | ۸ |
| ۴ | ۴ | ۷ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ☐ | ☐ | ☐ |
| ۷ | ۴ | ۵ |
| − ۵ | ۳ | ۱ |
| ۲ | ۱ | ۴ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ☐ | ۵ | ۱۱ |
| ۴ | ۶ | ۱ |
| − ۲ | ۵ | ۳ |
| ۲ | ۰ | ۸ |

۸۰

چیری زده کوونکی ووایې چې له ۲ یوه دانه یې څخه ۵ یو دانه یې کمولای نشو. باید یو لسیز په یویزو سره بدل او یا مات کړو چې ۱۲ یویز جوړ کړي بیا له ۱۲ یویزو څخه ۵ یویزه کموو چې ۷ دانې پاتې کیږي په لسیزو کې ۲ بنډله سلګونې، یو بنډل لس ګون او ۷ یو دانه یې پاتې کیږي. ښاغلی ښوونکی دې صابر ته ووایې ویې شمیره چې څو دي، هغه یې بیا هم شمیري وایې ۲۱۷ لرګوټي پاتې دي. که چیرې زده کوونکي د تفریق په دې عملیه کې ستونزې درلودې، ښاغلی ښوونکی دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي په همدې ډول نور فعالیتونه دې هم د زده کوونکو په واسطه سرته ورسول شي.

– ښاغلی ښوونکی دا عملیه داسې حل کړي:

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| | ۲ | ۱۲ |
| ۴ | ۳ | ۲ |
| − ۲ | ۱ | ۵ |
| ۲ | ۱ | ۷ |

تاسو وینئ چې ۲ یویز له ۵ یویزو څخه لږ دي نو یو لسئ له ورروستۍ مرتبې (لسیزو) څخه د یویزو مرتبې ته پور اخلو

چې ۱۲ یو دانه یې شي نو کله چې اوس ۵ کم کړو ۷ یو دانه یې پاتې کیږي، او د لسیزو په مرتبه کې ۲ لسه پاتې کیږي، په همدې ډول له ۲ لسو څخه ۲ لسه کموو او له ۴ سلو څخه ۲ سله کموو چې په نتیجه کې ۲۱۷ پاتې کیږي.
– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي باید دوه، درې رقمي عددونه یو له بله سره تفریق کړي. ښایي چې ځنې زده کوونکي بې له فکر کولو څخه، یعنی که چیرې اړتیا هم نه وي پور واخلي. هغوی ته وواياست. له اړتیا پرته پور اخستل غلط دہ او ورته وواياست، هغه وخت پور اخستلو ته اړتیا ده چې په مفروق منه، کې یویز او لسیز په بشپړ یا کافي توگه ونه لرئ په هغه صورت کې پور واخلئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۸۰) مخ ته راوگرزوئ هغه مثال چې په کتاب کې حل شوی ده هغه په ترتیب سره زده کوونکوته تشریح کړه، او هغوی ته وواياست، چې لومړی یویز یو له بله تفریق کړئ که چیرې اړتیا وی له وروستی مرتبې د لسیزو څخه پور واخلئ (لسیز په یویز بدل کړئ) په دویم واری لسیز یو له بله تفریق کړئ که چیرې اړتیا وي له وروستئ مرتبې د سلیزو څخه پور واخلئ (سلیز په لسیزو بدل کړئ) په دریم واري سلیز تفریق کړئ.
بیا د همدې مخ (۱) گڼه پوښتنه چې درې پوښتنې دي. و هر یوه گروپ ته دې یوه، یوه پوښتنه ورکړل شي چې په ټولگی کې په گروپي ډول کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوښته:**

– څوک وایې که چیری د مفروق منه د یویزو مرتبه د مفروق د یویز له مرتبې څخه کمه وي له کومي وروستی مرتبی څخه پور اخلئ او څومره؟
– څوک وایې که چیری د مفروق د لسیزو مرتبه د مفروق منه د لسیزو له مرتبې څخه زیات وي له کومې وروستی مرتبې څخه پور اخلئ او څومره؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړائ شي د موادو په مرسته د لاندې جدولونو له مخې د تفریق عملیه سرته ورسوي.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۵ | ۲ | ۳ |
| ۸ | ۰ | ۲ − |
| | | |

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۸ | ۳ | ۵ |
| ۵ | ۴ | ۳ − |
| | | |

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۷ | ۱ | ٦ |
| ۲ | ۵ | ۳ − |
| | | |

**ذهنیت:** د تفریق د دې نوی عملیې د طریقې په زده کولو سره، د زده کوونکو په ذهن کې بدلون رامنځ ته کیږی او خوبنی ښکاره کوي.
**ارزښت:** هر هغه شی چې زده کوونکو په دې نوي طریقه کې زده کړی دي هغوی د خپل ژوند په ورځنی معاملو کې کار ورڅخه اخلي د اړتیا په وخت کې یو لس گون نوټ په یو افغانیو سره او سلگون نوټ په لس گونو سره بدلوي خپل اړتیاوی او ستونزی حل کوي.

**۴– کورنی دنده:**

هر یو زده کوونکئ دې لاندې پوښتنې حل کړی له ځان سره دې راوړي.

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۳ | ۷ | ۳ |
| ۷ | ۸ | ۱ − |
| | | |

| یویز | لسیز | سلیز |
|---|---|---|
| ۸ | ٦ | ۴ |
| ۵ | ۷ | ۲ − |
| | | |

## عنوان: د پور اخستلو په صورت کې د درې رقمې عددونو د تفریق مشق او تمرین

**مخونه:** (۸۱ او ۸۲)
**وخت:** دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي له یوه درې رقمي عدد څخه درې رقمي عدد، د پور اخستلو د اړتیا په صورت کې تفریق کړي.
**اصطلاح گانې:** عددونه، درې رقمي، پور اخستل، یویز، لسیز، سلیز.
**د لوست مرستندوی مواد:** د لرگوټو د سلگونو بنډلونه، د لس گونو بنډلونه او یو دانه یې.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي هغه چا چې پوښتنې یې له اشتباه کولو، په صحیح ډول حل کړي دي په تشویق کوونکو کلمو ویلو سره دې تشویق شي او هغه چا چې اشتباه گانې کړي دي په یوه ځانگړي صمیمیت سره دې لارښوونه ورته وشي. کوښش دې وشي چې صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه په یوه آزاد بحث او مذاکره کولو سره پیدا شي، او پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي او له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی گروپ: د یویزو مرتبې ته څه وخت پور اخستلو ته اړتیا ده؟ او له کومې مرتبې څخه پور اخستل کیږي؟

دویم گروپ: د لسیزو مرتبې ته څه وخت پور اخستلو ته اړتیا ده؟ او له کومی مرتبې څخه پور اخستل کیږي؟

دریم گروپ: که چیری د مفروق منه د ټولو مرتبو رقمونه د مفروق د مرتبو له رقمونو څخه لوي وي پور اخستلو ته اړتیا شته؟

– ښاغلی ښوونکی د لرگوټو د سلگونو بنډلونه، د لس گونو بنډلونه او یو دانه یې چې مخکې دی تیار کړي دي په خپل میز باندې داسې کښیږده ترڅو ټول زده کوونکی یې ولیدلای شي، بیا یوه زده کوونکی ته ووایه چې له دې لرگوټو څخه ۴ بنډله سلگونې، یو بنډل لس گون او ۷ یو دانه یې جلا کړه. زده کوونکی هغه جلا کوي بیا پوښتنه وکړه چې ټوله څو دي هغه به ووایې ۴۱۷ لرگوټې دي. که چیرې ونشي ویلای ښاغلی ښوونکی دې لارښوونه ورته وکړي. بیا یو دویم زده کوونکي ته ووایه چې له دې

**۲.**

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| □ | ۲ | ۱۷ |
| ۵ | ۳ | ۷ |
| − ۳ | ۱ | ۹ |
| ۲ | ۱ | ۸ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| □ | ۱ | ۱۱ |
| ۷ | ۲ | ۱ |
| − ۴ | ۱ | ۴ |
| ۳ | ۰ | ۷ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۳ | ۱۲ | □ |
| ۴ | ۲ | ۹ |
| − ۱ | ۶ | ۱ |
| ۲ | ۶ | ۸ |

**۳.**

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| □ | ۳ | ۱۵ |
| ۶ | ۴ | ۵ |
| − ۲ | ۱ | ۸ |
| ۴ | ۲ | ۷ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۴ | ۱۸ | □ |
| ۵ | ۸ | ۹ |
| − | ۹ | ۲ |
| ۴ | ۹ | ۷ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| □ | □ | □ |
| ۷ | ۴ | ۱ |
| − ۲ | ۳ | ۰ |
| ۵ | ۱ | ۱ |

**۴.**

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۷ | ۱۴ | □ |
| ۸ | ۴ | ۶ |
| − | ۹ | ۵ |
| ۷ | ۵ | ۱ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| □ | □ | □ |
| ۹ | ۳ | ۶ |
| − ۴ | ۲ | ۶ |
| ۵ | ۱ | ۰ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| □ | □ | □ |
| ۷ | ۵ | ۹ |
| − ۶ | ۱ | ۳ |
| ۱ | ۴ | ۶ |

**۵.**

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۳ | ۱۵ | □ |
| ۴ | ۵ | ۰ |
| − ۳ | ۶ | ۰ |
| | ۹ | ۰ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۴ | ۱۳ | □ |
| ۵ | ۳ | ۷ |
| − | ۶ | ۴ |
| ۴ | ۷ | ۳ |

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۶ | ۱۲ | □ |
| ۷ | ۲ | ۵ |
| − | ۹ | ۱ |
| ۶ | ۳ | ۴ |

**کورنۍ دنده** : په تش ځایونو کې مناسب عددونه ولیکي .

۱.

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۵ | ۵ | ۷ |
| − ۲ | ۴ | ۸ |
| ۳ | ۰ | ۹ |

۲.

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۵ | ۳ | ۷ |
| − ۲ | ۴ | ۸ |
| ۲ | ۸ | ۹ |

۸۱

لرگوټو څخه په ترتیب سره ۲ بنډله سلگونې، ۳ بنډله لس گونې او ۵ یو دانه یې کم کړه زده کوونکئ په لومړی واري له ۷ یوه دانه یي څخه ۵ یو دانه یې کموي. بیا وینې چې له یوه لس گون څخه ۳ لس گونې کم کیدای نشي که چیری زده کوونکی یو سلگون د سلیزو له مرتبې څخه واخلي په لسیزو یې بدل کړي وواياست چې اوس ۱۱ لس گون شول کولای شم چې ۳ ورڅخه کم کړم چې ۸ لس گون پاتې کیږي، که چیری داسی وکړای شي ښه به وی له هغه پرته ښاغلی ښوونکئ دې مرسته وکړي په دریم واري، بیا گوري چې له ۴ سلگونو څخه ۳ سلگونې پاتې دی، له هغه څخه ۲ سلگونې کموي چې یو سلگون پاتې کیږي.

ددې فعالیت په پای کې دې د یوه زده کوونکی مثلاً: احمد نوم واخلي و درې ته دې راوغواړي او هغه ته دې ووایي چې د دې فعالیت د ریاضي عملیه په درې باندې ولیکي. زده کوونکی باید داسي حل کړي:

$$\begin{array}{ccc} ③ & ⑪ & \\ ۴ & ۱ & ۷ \\ -\ ۲ & ۳ & ۵ \\ \hline ۱ & ۸ & ۲ \end{array}$$

– ښاغلی ښوونکی! که چیری زده کوونکي د پوښتنې په حل کې، اشتباه کوی له هغه سره دې مرسته او لارښوونه دې ورته وشي او د دوه رقمي عددونو د تفریق عملیه، د هغه په یاد راوړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی دې په لومړی واری د زده کوونکو پام د کتاب (۸۱) مخ ته راوګرزوي، (۲) ګڼه پوښتنه دې لومړی ګروپ ته، (۳) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او (۴) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړي چې په ګډه سره په ګروپونو کې کار وکړي، که چیری (۵) ګڼه پوښتنه په ټولګی کې حل نشي د کورنۍ دندې په توګه دې ورکړل شي. په همدې ډول د (۸۲) د مخ د مشق او تمرین پوښتنې دې زده کوونکو ته تشریح شي د دې مخ حل شوی مثال دې ګام په ګام زده کوونکو ته کار وشي ترڅو زده کوونکي د تفریق عملیه د پور اخستلو په صورت کې زده کړي. او کوشش دې وشي چې دې فعالیت ته زیات وخت ورکړل شي، بیا دې (۱) ګڼه پوښتنه دریم ګروپ ته، (۲) پوښتنه دې لومړی ګروپ ته او (۳) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته ورکړل شي چې په ټولګی کې کار وربانديې وکړي. او ښاغلی ښوونکی دې په شا او خوا بانديې قدم ووهي د کار د جریان څارنه دې کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوي لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د سلیزو له مرتبې څخه د یویزو مرتبې ته پور اخستل کیدای شي او که نه؟

– څوک وایې چې د لسیزو له مرتبې څخه د سلیزو مرتبې ته پور اخستل کیدای شي او که نه؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۴۸۵ | ۷۳۵ | ۸۴۹ | ۷۷۳ |
| – ۱۲۶ | – ۲۵٦ | – ۴٦۵ | – ۳۸۵ |

**دپور اخستلو په صورت کې د تفریق مشق او تمرین**

تاسو درې رقمي عددونه په لاندې توګه تفریق کولای شئ.

لومړی مرحلهٔ: یویز تفریق کړئ که چېرې اړتیاوې پور واخلئ.

دوهمه مرحلهٔ : لسیز تفریق کړئ که چېرې اړتیاوې پور واخلئ.

دریمه مرحلهٔ: سلیز تفریق کړئ.

| لومړی مرحله | دوهمه مرحله | دریمه مرحله |
|---|---|---|
| ۶۴۲ − ۲۶۷ (۱۲ − ۷ = ۵) → ۵ | ۶۴۲ − ۲۶۷ (۱۳ − ۶ = ۷) → ۷۵ | ۶۴۲ − ۲۶۷ = ۳۷۵ |

فرق یې ۳۷۵ دی

تفریق یې کړئ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱. | ۳۴۶ − ۱۶۳ = ۱۸۳ | ۵۱۶ − ۳۵۵ = ۱۶۱ | ۴۲۹ − ۱۵۶ = ۲۷۳ | ۸۴۰ − ۴۱۵ = ۴۲۵ | ۸۳۷ − ۴۷۲ = ۳۶۵ | ۴۱۷ − ۳۳۲ = ۸۵ |
| ۲. | ۷۶۳ − ۲۸۴ = ۴۷۹ | ۴۸۰ − ۱۲۶ = ۳۵۴ | ۵۹۳ − ۳۲۸ = ۲۶۵ | ۹۶۳ − ۷۸۹ = ۱۷۴ | ۷۵۴ − ۶۵۷ = ۹۷ | ۸۱۶ − ۴۳۲ = ۳۸۴ |
| ۳. | ۶۵۵ − ۳۷۷ = ۲۷۸ | ۵۷۶ − ۱۳۸ = ۴۳۸ | ۳۶۵ − ۱۸۷ = ۱۷۸ | ۵۷۴ − ۱۸۸ = ۳۸۶ | ۷۲۵ − ۲۵۶ = ۴۶۹ | ۹۳۲ − ۵۵۶ = ۳۷۶ |

۸۲

**ذهنیت:**

د لویو عددونو د تفریق د عملیې په زده کولو سره زده کوونکی د ریاضي سره مینه پیدا کوی او خپل رضایت څرګندوي.

**ارزښت:**

د دې نوي عملیې په زده کولو سره زده کوونکی کولای شي د ژوند ورځنۍ معاملې بی له کومو ستونزو سرته ورسوي، او له دې عملیې څخه په کار اخستنې سره د خپل ځان او نورو ستونزې حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۸۱) مخ د کورنۍ دندې پوښتنې چې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي دي زده کوونکو ته دې وویل شي چې د کتاب د هدایت سره سم پوښتنې حل کړي او له ځانو سره دې راوړي.

# عنوان: د یوه درې رقمي عدد تفریق کول د داسې یوه درې رقمي عدد څخه چې یویز او لسیز یې صفر وي

**نه دیرشم لوست، (۸۳) مخ**

**وخت: دوه ساعته(۴۵دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي له درې رقمي صفر لرونکی عددونو څخه درې رقمي عددونه تفریق کړای شي.

**اصطلاح ګاني:** تفریق، درې رقمي صفر لرونکي، یویز، لسیز.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوتو د سلګونو بنډلونه، د لس ګونو بنډلونه او یو دانه یې.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي هغه اشتباه ګانې چې د زده کوونکو په واسطه اعلانیږي په درې باندې دې ولیکل شي د اشتباه ګانو په برخه کې زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې د اشتباګانو په برخه کې آزاد بحث او مذاکره وکړي. او صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي او له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي او بیا دې لاندې پوښتنې وکړي:

له دریم ګروپ څخه فرید: د تفریق په پوښتنه کې مفروق او مفروق منه وښیاست.

له لومړي ګروپ څخه امین: د تفریق په یوه عملیه کې مفروق کوچنی ده او که مفروق منه؟

له دویم ګروپ څخه احمد: د تفریق په یوه عملیه کې د تفریق حاصل زیات ده او که مفروق منه؟

– ښاغلی ښوونکی دې د یوه زده کوونکي مثلاً نذیر نوم واخلي او هغه ته دې د لرګوتو درې بنډله سلګوني ورکړي او له هغه څخه پوښتنه وکړه، له تا سره څو داني لرګوټي دي، هغه به ووایي له ما سره ۳۰۰ لرګوټي دي. بیا دې له نذیره پوښتنه وکړي چې د دې عدد د یویز او لسیز په مرتبو کې کوم عددونه دي، هغه ځواب ورکوی صفرونه

نه دیرشم لوست

د درې رقمي عددونو تفریق چې یویز او لسیز یې صفر وي

هدف: زده کوونکي دصفر لرونکي درې رقمي عددونو څخه درې رقمي عددونه تفریق کړاي شي.

تاسو د صفر لرونکو عددونوڅخه د نورو عددونو تفریق په لاندې ډول کولای شئ.

لومړي مرحلهٔ: یویز تفریق کړئ ځرنګه چې لسیز رقم صفر دی چې په یویزو بدلیدای نشي.

۴۰۰
– ۱۳۶

دوهمه مرحلهٔ: سلیز په لسونو سره بدل کړئ لکه مقابل شکل:

۳ ۱۰
~~۴~~ ~~۰~~ ۰
– ۱۳۶

دریمه مرحلهٔ: یولسئ په ۱۰ یودانه یې سره بدل کړئ.

~~۳~~ ~~۹~~ ۱۰
۴۰۰
– ۱۳۶

څلورمه مرحلهٔ: تفریق یې کړئ.

③⑨⑩
۴۰۰
– ۱۳۶
۲۶۴

پورته حل شوي مثال په نظر کې ونیسئ او تفریق یې کړئ.

مثال: ۱.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ⑦⑩⑩ ۸۱۰ | ۴ ۱۳ ۱۰ ۵۴۰ | ۴ ۱۳ ۱۰ ۴۰۰ | ۷۰۰ | ۶۰۳ | ۵۰۶ |
| ۳۲۵ – | ۲۷۳– | ۱۵۸– | ۳۶۳– | ۴۸۹– | ۴۹ – |
| ۴۸۵ | ۲۶۷ | ۲۴۲ | ۳۳۷ | ۱۱۴ | ۴۵۷ |

۲.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳۰۰ | ۹۰۸ | ۷۰۰ | ۵۰۰ | ۳۰۰ | ۲۷۰ | ۹۰۳ – |
| ۱۲۳– | ۲۸۰– | ۵۴۰– | ۱۲۴– | ۳۷ – | ۲۰۷– | ۳۲۴– |
| ۱۷۷ | ۶۲۸ | ۱۶۰ | ۳۷۶ | ۲۶۳ | ۶۳ | ۵۷۹ |

۸۳

دي، ځرنګه یا څه ډول کولاي شي چې له ۳۰۰ څخه ۱۲۷ تفریق کړي، ښایي چې زده کوونکی وکولای شي ځواب ووایي او یا ونشي کولاي، ښاغلی ښوونکی دې له نورو زده کوونکو څخه وپوښتي آیا داسې څوک شته دئ چې صحیح ځواب وویلای شي او که نه؟ که چیرې ځواب ونشي ویلاي ښاغلی ښوونکی دې داسې ووایي تاسو لومړې د یویزو مرتبه یو له بله تفریق کوئ، بیا د لسیزو مرتبه، نو په دې صورت کې لومړئ یو سلګون په لس ګونو بدل کړئ چې ۱۰ لسیه کیږي، بیا یو لسئ په ۱۰ یو دانه یې بدل کړئ او په پای کې د تفریق عملیه سرته ورسوئ.

لکه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ②⑨⑩ | ②⑨⑩ | ②⑩ | |
| ۳۰۰ | ۳۰۰ | ~~۳~~ ~~۰~~ ۰ | ~~۳~~~~۰~~۰ |
| ۱۲۷ – | ۱۲۷ – | ۱۲۷ – | ۱۲۷ – |
| ۱۷۳ | | | |

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي باید له یوه درې رقمي عدد څخه بل درې رقمي عدد چې د یویز او لسیز په مرتبو

کې صفر لرى تفريق کړي، ښايې چې زده کوونکي ووايې څرنګه د هيڅ شى څخه، يو شئ واخلئ کله چې صفر يوازي وي او يا د يوه عدد ښئ خواته شتوالي ونه لريو هيڅ ده. که چيرى د يوه عدد ښى خواته وي نو د يوى مرتبې قيمت لري، چې په دې صورت کې وروستى مرتبه، په لومړى مرتبې باندې بدليږى، ښاغلى ښوونکى دې د موادو په واسطه ګام په ګام عمليه سرته ورسوي.

**۲- مشق او تمرين:**

ښاغلى ښوونکى دې د زده کوونکو پام د کتاب (۸۳) مخ ته راوګرزوي هغه پوښتنه چې د شکلونو او تصويرونو په واسطه مرحله په مرحله کار شوي ده زده کوونکو ته يې تشريح کړئ ترڅو هغوى په خپله سلګون په لس ګون او لس ګون په يوه دانه يې بدل کړاي شي. بيا دې د (۱، ۲) ګڼې پوښتنې ګروپونو ته وويشل شي ترڅو په ټولګى کې په ګروپى ډول کار وکړي او ښاغلى ښوونکى دې د کار د جريان څارنه کوى او متوجه دې اوسي چې په بدلولو کې لس، لس په نظر کې نيسى او که نه؟ له هغه پرته په تکراري توګه دې کار وکړي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلى ښوونکي ډاډمن شي چې زده کوونکو نوى لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنى وکړى د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

- څوک وايې په کوم حالت کې صفر هيڅ شئ ده؟
- څوک وايې که چيري صفر د يوه عدد ښئ خواته شتوالى ولري کومه مرتبه جوړوي او که نه؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۸۰۹ | ۷۰۰ | ۵۰۰ | ۴۰۰ |
| − ۴۱۰ | − ۵۴۰ | − ۳۲۸ | − ۲۳۲ |

**ذهنيت:**

د تفريق د عمليې د دې طريقې په پوهيدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په خپل ځان او نفس باور پيدا کوي خوښى کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي کولاي شي د تفريق له دې طريقى څخه د ژوند په ورځنى معاملو کې کار واخلى. مثلاً: د ورکړې او راکړې په وخت کې، که چيرى يو څوک د ۵۰۰ افغانيو لوټ يوه زده کوونکي ته ورکړي او پلورل شوى جنس ۲۴۵ افغاني بيه ولري. هغه د پورتنى طريقې څخه په کار اخستنې سره کولاى شي سلګون په لس ګونو او په يوه افغانيزو بدل کړي او خپل ستونزي حل کړي.

# عنوان: د درې رقمي عددونو دجمعې او تفریق مشق او تمرین

**(۸۴ او ۸۵) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** دا لوست د جمعې او تفریق د عملیو د تقویت لپاره تکراری ده او د تقویت لپاره مرسته کوي.

**اصطلاح ګاني:** مشق او تمرین، تقویت، د جمعې او تفریق عملیې.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو د سلګونو بنډلونه، د لس ګونو بنډلونه او یو دانه یې.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلان کیږي د درې په مخ باندې دې ولیکل شي صحیح او سم ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي او پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي بیا دې لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: که چیرې د ۳ د عدد کیڼي خواته دوه صفره قرار ولري څو لوستل کیږي؟

دویم ګروپ: که چیرې د ۴ د عدد ښئ خواته دوه صفر قرار ولري څو لوستل کیږي؟

دریم ګروپ: که چیرې د ۵ د عدد یو صفر ښی خواته او یو صفر کیڼې خواته قرار ولري څو لوستل کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی د جمعې او تفرق د زیات مشق او تمرین لپاره د یوه ګروپ یوه زده کوونکئ د ټولګي مخې ته راوغواړه او ورته ووایاست. خپل دواړه لاسونه یو له بله لرئ ونیسه، بیا هغه ته په یوه لاس کې د لرګوټو ۳ بنډله د سلګونو او په بل لاس کې ۲ بنډله د سلګونو ورکړه او هغه ته ووایه چې لرګوټي سره یو ځای کړه کله چې لرګوټي سره یوځای کړل، له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړی، چې دې فعالیت ته په ریاضی کې څه وایې، زده

د درو رقمي عددونو د جمعې او تفریق مشق او تمرین:




آیا تاسو کولاشئ پوښتنوته ځواب ووایاست.

د شکلونو څخه په ګټه اخیستو سره تش ځایونه په مناسبو عددونو ډک کړئ.

۱. 

۶ سله = ۳ سله + ۳ سله

۶۰۰ = ۳۰۰ + ۳۰۰

۲. 

۱ سله ۱ لسه ۵ یودانه یې

۲ سله ۱ لسه ۲ یودانه یې +

۳ سله ۲ لسه ۷ یودانه یې

۱۱۵ + ۲۱۲ = ۳۲۷

د قانون څخه په کار اخستنې سره لاندې جدولونه بشپړ کړئ.

۳.

| ۲۰۰ جمع کړي | |
| --- | --- |
| ۴۲۰ | ۲۲۰ |
| ۸۷۰ | ۶۷۰ |
| ۷۱۰ | ۵۱۰ |
| ۳۷۰ | ۱۷۰ |

| ۴۰۰ جمع کړي | |
| --- | --- |
| ۹۰۰ | ۵۰۰ |
| ۷۵۰ | ۳۵۰ |
| ۸۳۰ | ۴۳۰ |
| ۹۷۰ | ۵۷۰ |

| ۳۰ جمع کړي | |
| --- | --- |
| ۷۶۰ | ۷۳۰ |
| ۸۰۰ | ۸۷۰ |
| ۲۲۰ | ۱۹۰ |
| ۴۵۰ | ۴۲۰ |

۸۴

کوونکی به ووایې جمع، بیا دې یو زده کوونکی درې ته راوغواړي او هغه ته دې ووایې چې د هغه د ریاضي افاده په دوو طریقو ولیکه. که چیر هغه داسې ولیکل ښه به وي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې له هغه سره مرسته وکړي.

۵ سله = ۲ سله + ۳ سله

۵۰۰ = ۲۰۰ + ۳۰۰

په همدې ډول نور فعالیتونه سرته ورسوئ.

بیا دې له یوه بل ګروپ څخه یو زده کوونکئ راوغواړي. او د سلګونو د ۴ بنډلونو په شمیر لرګوټي دې هغه ته ورکړي. او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي ستاسو د ټولګیوال سره د لرګوټو څو بنډله سلګوني دي، هغوی لرګوټو ته کوري او وایې د لرګوټو ۴ بنډله سلګوني دي.

په همدې ډول یوه زده کوونکي ته دې وویل شي چې د همدې ۴ بنډلونو سلګونو څخه ۲ بنډله سلګوني په خپل لومړنۍ ځای کې کښیږده او یا یې کم کړه، کله چې دوه بنډله یې کم کړل، ښاغلی ښوونکی دې بیا هم له هم هغه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي. چې اوس له تا سره څو

بنډله د سلګونو پاتې دي. هغه به ووايې دوه بنډله د سلګونو، بيا له همدې ګروپ څخه يوه زده کوونکۍ ودرېږي ته راوغواړه او هغه ته وواياست. چې د دې فعاليت د رياضي افاده په درېږ باندې وليکه که چيرې هغه په لاندې توګه وليکل ښه به وي او له هغه پرته مرسته ورسره وکړئ.

۲ سله = ۲ سله – ۴ سله

۴۰۰ – ۲۰۰ = ۲۰۰

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۸۴) مخ ته راوګرزوي د (۱، ۲) ګڼې پوښتنې دې لومړی ګروپ ته، د (۳) ګڼې پوښتنې دوه لومړی جدولونه دې دويم ګروپ ته، او دريم جدول دې دريم ګروپ ته ورکړي او په ټولګې کې دې په ګروپي ډول کار وکړي. د پوښتنو له حل کولو وروسته د زده کوونکو پام دې د (۸۵) مخ ته راوګرزوي، (۴) ګڼه پوښتنه دې دويم ګروپ ته، (۵) ګڼه پوښتنه دې دريم ګروپ ته او (٦) ګڼه پوښتنه دې لومړی ګروپ ته ورکړي ترڅو په ګډه سره کار وکړي. د جمعې او تفريق پوښتنې په دقت سره حل کړي. دا يو تکراري لوست دئ چې زده کوونکې په تمرين باندې کار وکړي.

ستاسو په فکر هر هغه مواد چې د زده کوونکو لپاره ښه وي کار ورڅخه واخلی، لکه: لرګوټي، ورې ډبرې، کارتونه او نور دې ورکړل شي.

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو شا او خوا راګرزي مراقبت دې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته ورسره وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوي لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي او د ستونزو په صورت کې دي له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوښتنه:**

– څوک وايې۳ سله + ۴ سله، څو سله کيږي؟

– څوک وايې له ۵ سلو څخه چې ۳ سله کم شي څو سله پاتې کيږي.

جمع يې کړئ .

۴.

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | ☐ ۱ | ☐ |
| ۳ | ۷ | ۶ |
| ۹ | ۱ | + |
| ۲ | ۹ | ۶ |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | ☐ ۱ | ☐ |
| ۵ | ۲ | ۴ |
| ۸ | ۴ | + ۳ |
| ۳ | ۷ | ۷ |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| | ☐ ۱ | ☐ ۱ |
| ۶ | ۷ | ۲ |
| ۵ | ۴ | + ۱ |
| ۱ | ۲ | ۴ |

۵. تفريق يې کړي.

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| ☐ | ☐ | ☐ |
| ۷ | ۳ | ۸ |
| ۵ | ۲ | – ۲ |
| ۲ | ۱ | ۶ |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| ☐ | ☐ ۱۳ | ☐ ۲ |
| ۷ | ~~۳~~ | ۳ |
| ۱ | ۶ | – |
| ۶ | ۷ | ۲ |

| يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|
| ☐ ۱۶ | ☐ ۱۱ | ☐ ۴ |
| ~~۶~~ | ~~۲~~ | ۵ |
| ۸ | ۴ | – ۱ |
| ۸ | ۷ | ۳ |

جمع يا تفريق يې کړئ .

٦.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | ① | | ⑥⑨⑩ | ① | ①① |
| ۷۶۲ | ۸۲۳ | ۳۲۴ | ۷۰۰ | ۳۲۴ | ۱۲۷ |
| – ۵۷۱ | + ۶۹ | – ۳۲ | – ۲۱۱ | + ۲۵۸ | + ۵۸۴ |
| ۱۹۱ | ۸۹۲ | ۲۹۲ | ۴۸۹ | ۵۸۲ | ۷۱۱ |

**کورنۍ دنده:**

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۴۹۵ | ۳۰۷ | ۵۵۷ | ۶۸۳ | ۵۹۱ | ۷۰۰ |
| + ۱۰۸ | – ۱۲۲ | – ۳۲۹ | + ۷۷ | – ۱۰۳ | – ۳۳۱ |
| ۶۰۳ | ۱۸۵ | ۲۲۸ | ۷۶۰ | ۴۸۸ | ۳۶۹ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ①① | | ①① | | ①① | ① |
| ۴۹۹ | ۹۴۷ | ۲۷۴ | ۶۰۱ | ۱۳۹ | ۲۹۰ |
| + ۲۰۱ | – ۳۵۸ | + ۶۶۶ | – ۱۲۷ | + ۴۸۳ | + ۵۷۵ |
| ۷۰۰ | ۵۸۹ | ۹۴۰ | ۴۷۴ | ۶۲۲ | ۸۶۵ |

۸۵

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شی لاندې پوښتنې حل کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۷۸۲ | ۸۴۷ | ۷۰۰ | ۳۰۰ |
| + ۲۹ | – ۵۳۸ | – ۳٦۸ | + ۵۵۵ |

**ذهنيت:**

د تمرينونو په حل کولو سره زده کوونکی په خپل ځان او نفس باور پيدا کوی او خوښی ښکاره کوی.

**ارزښت:**

زده کوونکی د پورته پوهي په پوهيدو سره کولای شي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي. هغوی په خپل ورځنی معاملو کې د درې رقمي عددونو د جمعې او تفريق له پوښتنو سره مخامخ کيږي. په آسانی سره کولای شي خپل ستونزی حل کړی.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۸۵) مخ (۷ او ۸) ګڼې پوښتنې چې په کتاب کې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي دي زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې حل او له ځانو سره دې راوړي.

## عنوان: د ضرب مفهوم، د دوو، دوو، درى زياتول او شميرل

**څلويښتم لوست، (۸٦) مخ**

**وخت: ۴۵ دقيقې**

**هدف:** دا لوست زده کوونکي چمتو کوي ترڅو د ضرب مفهوم په آسانی سره زده کړي.

**اصطلاح ګانې:** مفهوم، ضرب، دوه، دوه، درې، درې.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبيا دانې، ورې ډبرې، لرګوټې او نور د چاپيريال د شميرلو وړ مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانيږي د درې په مخ باندې دې وليکل شي. د دې لپاره چې زده کوونکی صحيح او سم ځوابونه ووايي، اجازه ورکړئ ترڅو هغوی په خپل منځ کې آزاد بحث او مذاکره وکړي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه تشريح کړي او بيا دې لاندې پوښتنې وکړي:

له لومړي ګروپ څخه فريد دې د: ۵۲٦

پوښتنه په درېږ باندې حل کړي؟ ۱۴۸ –

له دويم ګروپ څخه احمد دې د: ۲۵۸ + ۳۲۴ پوښتنه په درېږ باندې حل کړي.

له دريم ګروپ څخه صابره: پورتنۍ پوښتنې چې د لومړي او دويم ګروپ د زده کوونکو په واسطه حل شوی دي صحيح دي او که غلط؟ که چيرې غلطي وي صحيح يې کوم دي؟

– ښاغلی ښوونکی يو مقدار لوبيا په خپل ميز باندې کښيږده بيا يوه زده کوونکی ته وواياست چې راشي او له دې لوبيا څخه ۲ دانې واخلي، بيا يو دويم زده کوونکئ راوغواړه او هغه ته ووايياست. چې نظر لومړئ زده کوونکئ ته ۲ دانې لوبياوی زياتې واخلي. هغه بايد ۴ دانې لوبيا واخلي بيا دريم زده کوونکی راوغواړی او هغه ته ووايياست چې نظر دويم زده کوونکی ته ۲ دانې لوبيا زياتې

### اووم فصل

### د عددونو ضرب او ويش عمليې

### څلويښتم لوست

### د ضرب مفهوم

### دوه، دوه، درې، درې زياتول او شمېرل

هدف: دا لوست زده کوونکي چمتو کوي ترڅو د ضرب او تقسيم مفهومونه په ښه آسانۍ سره زده کړي.

۲ ډبرې ۴ ډبرې ٦ ډبرې ۸ ډبرې

ټوله ۸

متناوب شميرل يعنی د عين عدد جمع کول تکراری توګه.

د خپل يوه ټولګيوال سره کار وکړئ کوچنۍ ډبرې وکاروئ او له هغې څخه مساوي ګروپونه جوړ کړئ، متناوب شمېر وکړئ، او مجموعه يې و ليکئ؟

مثال:

۵ واري ۲، ۲ زيات کړئ
۲ ، ۴ ، ٦ ، ۸ ، ۱۰
ټوله ____

۱. ۴ وارې ۴، ۴ زيات کړي
۴ ، ۸ ، ۱۲ ، ۱٦
ټوله ۱٦

۲. ۳ وارې ۵ ، ۵ زيات کړئ
۵ ، ۱۰ ، ۱۵
ټوله ۱۵

۳. ۴ وارې درې، درې زيات کړئ.
۳ ، ٦ ، ۹ ، ۱۲
ټوله ۱۲

۴. ۵ وارې ۳ ، ۳ زيات کړي
۳ ، ٦ ، ۹ ، ۱۲ ، ۱۵
ټوله ۱۵

۵. ۴ وارې ۵ ، ۵ زيات کړئ.
۵ ، ۱۰ ، ۱۵ ، ۲۰
ټوله ۲۰

۸۶

واخله هغه بايد ٦ دانې لوبياوې واخلي، څلورم زده کوونکی راوغواړه هغه ته ووايياست چې نظر دريم زده کوونکی ته ۲ دانې لوبيا زياتې واخله هغه بايد ۸ دانې لوبيا واخلي، او همدارنګه پنځم زده کوونکی راوغواړه او هغه ته ووايياست چې نظر څلورم زده کوونکی ته ۲ دانې لوبيا زياتې واخلي، هغه هم بايد ۱۰ دانې لوبياوی واخلي په همدې ډول د (دوو، دوو) په زياتولو سره دی فعاليت ته ادامه ورکړي تر شلو پورې دې وشميرى.

– ښاغلی ښوونکی دې يو شمير ورې ډبرې په خپل ميز باندې کښيږدي. او زده کوونکی دې په وار سره راوغواړي او هغو ته دې ووايي چې لومړی زده کوونکی دې ۳ ورې ډبرې واخلي، دويم، دريم، څلورم، ... هر يو دې له خپل مخکنۍ ټولګيوال څخه درې، درې ورې ډبرې زياتې واخلي. او تر ۳۰ پورې دې وشميرى. بيا دې ښاغلی ښوونکی يو شمير لرګوټي په خپل ميز باندې کښيږدي او زده کوونکي دې په وار سره راوغواړي، لومړی زده کوونکي ته دې ووايي ۴ لرګوټي واخله، بيا دې دويم،

دریم، څلورم ... زده کوونکو ته ووایی تاسو هر یو څلور، څلور لرګوټي له خپل مخکنۍ ټولګیوال څخه زیات واخلئ او تر ۲۴ پوری وشمیری. بیا دې ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنی وکړي:

څو واري ۲، ۲ لوبیا وي زیاتې شوي، تر څو ۲۰ لوبیاؤ ته ورسیدلی هغوی ځواب وایي ۱۰ واري.

څو واري ۳، ۳ وړي ډېری زیاتې شوي، تر څو د هغو شمیر ۳۰ شوي دي، بیا هم ځواب ووایي ۱۰ واري.

څو واري ۴، ۴ لرګوټي زیات شول، ترڅو د لرګوټو شمیر ۲۴ شول. هغوی ځواب وایي ٦ واري.

۱٦ = ۴ + ۴ + ۴ +۴ څلورم زده کوونکی ۴ لومړئ زده کوونکی

۲۰ = ۴ + ۴ + ۴ +۴ + ۴ پنځم زده کوونکی ۸ = ۴ + ۴ دویم زده کوونکی

۲۴ = ۴ + ۴ + ۴ +۴ + ۴ + ۴ شپږم زده کوونکی ۱۲ = ۴ + ۴ + ۴ دریم زده کوونکی

زده کوونکو دا تکراری زیاتول یعنی متناوب شمیرل مخکې هم لوستلي دي په دې لوست کې زده کوونکي باید د پرتله کولو په ډول د دوو، دوو، درو، درو .... په زیاتولو پوه شي، چې د ضرب د عملیې په مفهومونو کې مرسته کوي. د متناوب دا ډول شمیرل د ضرب د مفهوم لپاره یو ښه اساس ګڼل کیږي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۸٦) مخ ته راوګرزوي، (۱، ۲) ګڼې پوښتنې دې لومړی ګروپ ته، (۳، ۴) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته او (۵، ٦) ګڼې پوښتنی دې دریم ګروپ ته ورکړي چې په ګروپې ډول کار وکړي او ښاغلی ښوونکي دې د کار د جریان څارنه کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وایې ۳ واري ۵، څو کیږی؟

– څوک وایې ۴ واري ۳،څو کیږی؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي:

٦ واری ۲، ۲ زیات کړئ، ۵ واری ۴ ، ۴ زیات کړئ.

۳ واری ۷، ۷ زیات کړئ ، ۲ واری ۸، ۸ زیات کړئ.

**ذهنیت:**

د تکراری ډول په زیاتولو یا په متناوب شمیرلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په ځان باور پیدا کوي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې عملیې په پوهیدو سره، د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار ورڅخه اخلي. مثلاً هغه جنسونه او شیان چې مساوي قیمتونه (بیه) ولري د متناوب شمیر (تکراری زیاتول) څخه په کار اخستی سره کولای شي د خپل ځان او نورو ستونزی حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې هر یو لاندې پوښتنې حل او له ځان سره دې راوړي.

۹ واري ۲، ۲ زیات کړئ، مجموعه یې څو کیږي؟

۵ واري صفر، صفر زیات کړئ، مجموعه یې څو کیږي ؟

۷ واري ۳، ۳ زیات کړئ، مجموعه یې څو کیږي ؟

# عنوان: د ضرب مفهوم دوه، دوه، درې، درې زیاتول

**(۸۷) مخ**

**وخت: دوساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** دا لوست زده کوونکي چمتو کوي ترڅو ضرب په آساني سره زده کړي.

**اصطلاح ګانې:** متناوب، دوه، دوه، درې، درې، ضرب.

**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د جوارو دانې او نور د شمېرلو وړ ساده شیان.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي. اشتباه ګانې دې په درې باندې ولیکل شي زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې په اشتباه ګانو باندې په آزاده توګه بحث او مذاکره وکړي. صحیح او سم ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي. بیا دې په ګروپي شکل یا انفرادي شکل له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وشي:

له لومړي ګروپ څخه امین: ۷ واري ۲، ۲ زیات کړه، وواياست چې څو کیږي؟

له دویم ګروپ څخه فرید: ۸ واري صفر، صفر زیات کړه وواياست چې څو کیږي؟

له دریم ګروپ څخه صابر: ۵ واري ۳، ۳ زیات کړه وواياست چې څو کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی! دوه زده کوونکی مثلاً احمد او محمود لکه لاندې شکل د ټولګي په دوو ګوټو کې ودروه. او هر یوه د هغو ته ۵، ۵ دانې لوبیا ورکړه.



۱۰ دانې لوبیاوې

بیا له یوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړه تاسو پنځه څو واري وینئ، هغه به ووایې چې ۲ واری پنځه یو بل زده

دوه بکسه هر یو یې شپږ هګۍ لري

د چرګې ټولې ۱۲ هګۍ

د چرګې هګۍ رسم کړئ متناوب شمېر وکړئ ویې لیکئ څومره؟

مثال: ۲ بکسونه، هر بکس ۳ هګۍ لري

د چرګې ټولې ۶ هګۍ

۱ – ۴ بکسونه،هر بکس ۵ هګۍ لري

د چرګې ټولې ۲۰ هګۍ

۲ – ۲ بکسونه، هر بکس ۴ هګۍ لري

د چرګې ټولې ۸ هګۍ

۳ – ۴ بکسونه، هر بکس ۴ هګۍ لري

د چرګې ټولې ۱٦ هګۍ

۴ – ۳ بکسونه، هر بکس ٦ هګۍ لري

د چرګې ټولې ۱۸ هګۍ

۵ – ٦ بکسونه، هر بکس ۳ هګۍ لري

د چرګې ټولې ۱۸ هګۍ

**کورنۍ دنده:** ۴ چرګان هر یو یې ۲ پښې لري په یوه ونه باندې ناست دي شکل یې رسم کړئ متناوب شمېر وکړئ ویې لیکئ ټولې څو پښې دي؟

۲ ، ۴ ، ٦ ، ۸

ټوله ۸ پښې

۸۷

کوونکی و درې ته راوغواړئ ترڅو هغه په درې باندې جمع کړي او ټوله زده کوونکي ولیدلای شي.

۱۰ = ۵ + ۵

په همدې ډول درې نور زده کوونکي دې راوغواړئ او د ټولګي مخې ته دې ودریږي او هر یوه ته د جوارو ۴، ۴ دانې ورکړئ. بیا له یوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړئ څو واری ۴ وینئ هغه به هم ووایې ۳ واري ۴، بیا دې یو دریم زده کوونکی راوغواړی د هغو مجموعه دې په درې باندې پیدا کړي:

۱۲ = ۴ + ۴ + ۴

په همدې ډول زده کوونکي دې فعالیتونه د وړو ډبرو، لوبیا، او جوارو په واسطه په تکراري توګه سرته ورسوي ترڅو متناوب شمیرل او د تکراري جمع کول د زده کوونکو په ذهن کې ځای ونیسی.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکی دې په لومړي وار د پنځو تنو څو ګروپونو، په دویم واری د درې تنو څو ګروپونه، او په دریم واري د څلورتنو څو ګروپونه جوړ کړي او ودې دروي. د زده کوونکو شمیر باید په ګروپونو کې یو له بله سره مساوی وي. بیا دې پوښتنې وکړي څو ګروپونه پنځه

تنه ئيزه دي. څو ګروپونه څلور تنه ئيز دي، څو ګروپونه دري تنه ئيزه دي. زده کوونکي ګروپونه ويني او د ګروپونو شمير وايې او په عين حال کې دې د هغو د رياضي افاده د جمعې په شکل وليکي. او د مساوي ګروپونو د جمعې حاصل دې په لاس راوړي.

**۲- مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۸۷) مخ ته راوګرزوي، هغه مثال چې د هګيو د مساوی ګروپونو لپاره حل شوی ده هغه دې زده کوونکو ته تشريح کړي بيا دې (۱، ۲) ګڼې پوښتنې دريم ګروپ ته (۳، ۴) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ ته او همدارنګه (۵، ٦) ګڼې پوښتنې دې دويم ګروپ ته ورکړي ترڅو پوښتنې په ټولګی کې حل او تش ځايونه ډک کړي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکي خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

- څوک وايې ۴ واري ۵، څو کيږي؟
- څوک وايې ۳ واري ٦، څو کيږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي په لاندې تشو ځايونو کې شکلونه رسم او د هغو مجموعه پيدا کړي.

۴ دانه يې هګۍ په ۵ بکسونو کې

د ٦ دانه يې لوبيا ۴ بکسونه

ټوله ــــــ هګۍ

ټوله ــــــ لوبيا

**ذهنيت:**

د متناوب په شميرلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوبنی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د داسې شميرلو په پوهيدو سره زده کوونکي کولای شي د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار واخلی په کوم ځای کې چې متناوب شمير ته اړتيا وي په آسانې سره له هغه څخه کار اخلي او خپل ستونزې حل کوي.

**۴- کورنۍ دنده:**

هغه عبارتې پوښتنه چې د کتاب په (۸۷) مخ کې د کورنۍ دندې په توګه تاکل شوی ده زده کوونکي دې ولولی او حل دې کړي.

# عنوان: د هغو عددونو جمع کول چې مساوي اجزاوې ولري (تکراري جمع)

**یو څلوېښتم لوست، (۸۸) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** د زده کوونکو چمتو کول د ضرب کولو لپاره ده.
**اصطلاح ګاني:** جمع، عددونه، مساوي اجزاوې.
**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د لوبیا دانې، د جوارو دانې او د چاپېریال د شمېرلو وړ مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلي ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په ډېر غور او دقت سره وکتل شي، اشتباه ګانې په دړې باندې فهرست کړئ. بیا دې زده کوونکو ته اجازه ورکړل شي ترڅو په اشتباه ګانو باندې په آزاده توګه بحث او مذاکره وکړي. صحیح او سم ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي او له هغه پرته ښاغلي ښوونکی دې صحیح او سم ځوابونه په دړې باندې تشریح کړي. بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: متناوب شمېر څه ډول شمېر دی؟
دویم ګروپ: آیا متناوب شمېرلو ته تکرارې جمع ویلای شو؟
دریم ګروپ: ۳ وارې ۶، ۶ زیات کړئ او وواياست څو کیږي؟

– ښاغلي ښوونکی دې یو مقدار وړې ډبرې په خپل میز باندې کښېږدې ترڅو ټوله زده کوونکی یې ولیدلای شي بیا دې یو زده کوونکی را وغواړي هغه ته دې ووایي: له دې وړو ډبرو څخه ۳ ګروپ چې هر ګروپ یې ۳ داني ولري جلا کړه، او جلاء جلاء یې کښېږده. کله چې زده کوونکی دا فعالیت سرته ورسوي، بیا دې ورته وویل شي چې یو له بله سره یې جمع کړه چې څو کیږي زده کوونکی داسې ۹=۳ +۳+ ۳ جمع کوي.

په همدې ډول یو بل زده کوونکی دې راوغواړي او هغه ته دې ووایي هغه لوبیا ګاني چې په میز باندې ایښودل شوي دي ۳ ګروپ چې هر ګروپ یې ۴ داني وي جلاء،

یو څلوېښتم لوست
دهغو عددونو جمع کول چې مساوي اجزاوې ولري (تکراري جمع)
هدف: د جمعې د مساوي اجزاوو څخه په ګټه اخیستنې د زده کوونکو چمتوکول د ضرب د زده کړې لپاره

د منو مساوی ګروپونه جمع کوو تر څو مجموعه یې پیدا ګړو.

مساوي ګروپونه څه ډول جوړولای شئ

۳ + ۳ + ۳ + ۳ = ۱۲

۳ دانه یې ۴ ګروپونه = ۱۲

ویې لیکئ څومره؟

مثال:
۵ + ۵ + ۵ = ۱۵
د۵ دانه یې ۳ ګروپونه = ۱۵

۱.
۲ + ۲ + ۲ = ۶
۳ ګروپه د ۲ دانه یې = ۶

۲.
۳ + ۳ = ۶
۲ګروپونه د ۳ دانه یې = ۶

۳.
۴ + ۴ = ۸
۲ ګروپونه د ۴ دانه یې = ۸

۴.
۳ + ۳ + ۳ = ۹
۳ ګروپونه د ۳ دانه یې = ۹

۵.
۶ + ۶ = ۱۲
۲ ګروپونه د ۶ دانه یې = ۱۲

۸۸

جلاء یې کښېږده، زده کوونکی ۴، ۴ دانې په دړې مختلف ځایونو کې ایږدي بیا دې همدې زده کوونکی ته وویل شي هغه سره جمع کړه وواياست څو کیږي؟ زده کوونکی داسې ۱۲ = ۴ + ۴ + ۴ جمع کوی. او همدارنګه ښاغلی ښوونکی دې یو دریم زده کوونکی را وغواړي او هغه ته دې ووایې هغه مواد چې په میز باندې ایښودل شوي دي ۵ ګروپ چې هر ګروپ یې ۴، ۴ دانې وي، جلاء، جلاء کښېږده زده کوونکی له وړو ډبرو یا جوارو څخه ۴، ۴ دانې جلاء کوي او په ۵ مختلف ځایونو کې ایږدي بیا دې همدې زده کوونکي ته وویل شي چې هغه سره جمع کړه د جمعې حاصل یې پیدا کړه زده کوونکی د هر ګروپ د جوارو شمېر چې ۴ دي داسې ۲۰ = ۴ + ۴ + ۴ + ۴ + ۴ جمع کوي.

بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وشي وړې ډبرې څو ګروپ او څو دانه یې دي؟ ۳ ګروپ ۳ دانه یې، د ډبرو شمېر په ګروپونو کې مساوی دي او که مختلف؟ زده کوونکی به ووایي مساوي. احمد د لوبیا د دانو څو ګروپه څو دانه یې دي؟

احمد ځواب وايې ۳ ګروپ ۴ دانه يې دی د لوبياؤ شمير په ګروپونو کې مساوي دي او که مختلف احمد وايې مساوی دي. فريده د جوارو د دانو څو ګروپ څو دانه يې دي، ۵ ګروپه ۴ دانه يې دي. د جوارو شمير په هر ګروپ کې څو، څو دانې دي. ۴، ۴ داني دي. يو له بله سره مساوي دي؟ هو

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايې که چيری لومړی مساوی ګروپونه جوړ کړئ او بيا يې جمع کړئ په ډيره اسانتيا سره د جمعې حاصل پيدا کولای شئ.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۸۸) مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې د مساوي ګروپ په شکل حل شوی دئ لومړی زده کوونکو ته تشريح کړه بيا د همدې مخ (۱، ۲) ګڼې پوښتنی لومړی ګروپ ته (۳، ۴) ګڼې پوښتنې دويم ګروپ ته او (۵، ٦) ګڼي پوښتنې دريم ګروپ ته ورکړئ ترڅو په ټولګی کې په ګروپی شکل کار وکړي هغه تش ځايونه چې د هر شکل تر لاندې دي د شکل له مخې دې په مناسب عددونو سره ډک کړي. او ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو په شاو خوا راګرزي او د کار د جريان مراقبت دې کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي، چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وايې که چيري ۳ واري ۲، ۲ زيات کړو څو کيږي؟

– څوک وايې که چيري ۲ واري ۷، ۷ زيات کړو څو کيږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي له لاندې موادو څخه مساوي ګروپونه جوړ کړي:

له ۱۵ وړو ډبرو څخه ۳ دانه يې مساوي ګروپونه جوړ کړئ، له ۸ دانو جوارو څخه ۲ دانه ئيزه مساوی ګروپونه جوړ کړئ. له ۲۰ دانو لوبيا څخه ۵ دانه ئيزه مساوي ګروپونه جوړ کړي، له ۱۲ دانو لرګوټو څخه ۳ دانه ئيزه مساوی ګروپونه جوړ کړئ.

**ذهنيت:**

د مساوي ګروپونو په جوړولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د داسې ګروپونو په پوهيدلو او جوړولو سره کولای شي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي مثلاً: هغوی د هم جنس شيانو څخه مساوي ګروپونه جوړوي د ګروپونو له مخې په آساني سره کولای شي د ورکړي او راکړي قيمتونه يا د شيانو شمير حساب کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

هر يو زده کوونکی دې لاندې پوښتنې حل او له ځان سره راوړي.

– له ۱۲ دانو لوبيا څخه څو مساوي ګروپونه جوړ کړئ او د هغو د جمعې عمليه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

– له ۱٦ دانو وړو ډبرو څخه ۴ مساوي ګروپونه جوړ کړئ او د هغو د جمعې عمليه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

– له ۹ دانو لرګوټو څخه ۳ مساوی ګروپونه جوړ کړئ او د هغو د جمعې عمليه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# عنوان: د هغو عددونو جمع کول چې مساوي اجزاوي ولري

**(۸۹) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** د زده کوونکو چمتو کول د ضرب د زده کولو لپاره.
**اصطلاح ګاني:** جمع، عددونه، مساوي اجزاوي، ګروپ.
**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د لوبیا دانې، د جوارو دانې، لرګوټي او د چاپیریال د شمیرلو وړ نور مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې بل ګروپ په واسطه وکتل شي، کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو له خوا اعلانیږي د درې په مخ باندې دې ولیکل شي د صحیح او سم ځوابونو د پیدا کولو لپاره زده کوونکي دې په خپل منځ کې آزاد بحث او مذاکرې وکړي. که چیرې زده کوونکو صحیح ځوابونه وویلای شي ښه به وي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې په ګروپي شکل یا انفرادي شکل وکړي:

لومړی ګروپ: له ۱۸ دانو جوارو څخه د ۲ دانه ئیزو څو مساوی ګروپونه جوړولای شو.

دویم ګروپ: ۵ مساوي ګروپونه چې هر ګروپ یې ۳ دانې ولري څو کیږي؟

دریم ګروپ: له ۱۴ دانو لرګوټو څخه د ۷ دانه ئیزو څو مساوی ګروپونه جوړولای شو.

– ښاغلی ښوونکی دې د ۱۲ دانو په شمیر لرګوټې په خپل میز باندې کښیږدي یو زده کوونکی دې راوغواړي او هغه ته دې ووایي دا لرګوټې په مساوی ګروپونو سره په مختلف ځایونو کې کښیږده، ښایي چې زده کوونکی یې په ۲ ګروپونو کې چې هر ګروپ یې ٦ دانې وي کښیږدي، صحیح ده، له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ نو ر مساوی ګروپونه هم جوړیږی، ښایي چې ووایي هو، نو یو

جمع یې کړي ویې لیکئ څومره کیږی؟

.٦
۱۰ = ۵ + ۵
۲ ګروپونه د ۵ = ۱۰

.۷
۱۲ = ۴ + ۴ + ۵۴
۳ ګروپونه د ۴ = ۱۲

.۸
۱۸ = ٦ + ٦ + ٦
۳ ګروپونه د ٦ = ۱۸

.۹
۱۲ = ۳ + ۳ + ۳ + ۳
۴ ګروپونه د ۳ = ۱۲

.۱۰
___ = ___ + ___ + ___ + ___
___ ګروپونه د ___ = ___

.۱۱
۴ = ۲ + ۲
۲ ګروپونه د ۲ = ۴

.۱۲
۸ = ۲ + ۲ + ۲ + ۲
۴ ګروپونه د ۲ = ۸

.۱۳
۲۰ = ۵ + ۵ + ۵ + ۵
۴ ګروپونه د ۵ = ۲۰

**کورنۍ دنده :** جمع یې کړي ویې لیکئ څومره کیږی؟

.۱۴
۲۴ = ٦ + ٦ + ٦ + ٦
۴ ګروپونه د ٦ = ۲۴

۸۹

زده کوونکی دې ګروپونه جوړ کړي. که چیرې زده کوونکی ٦ مساوی ګروپونه چې هر ګروپ یې ۲ دانې وي جوړ کړي. ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایي ډیر ښه، نور مساوی ګروپونه هم جوړیږي؟ که چیرې زده کوونکي ووایي هو، د هغو په واسطه دې جوړ شي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دی ۴ مساوی ګروپونه چې هر ګروپ یې ۳ دانې وي جوړ کړي او همدارنګه ۳ مساوي ګروپونه چې هر ګروپ یې ۴ دانې وي جوړ کړي.

په دې صورت کې زده کوونکی زیات چمتو کیږی چې مساوی ګروپونه جوړ کړي، بیا دې ښاغلی ښوونکی د یوه زده کوونکی نوم واخلي (۷) ګڼه پوښتنه چې په (۹۰) مخ کې ده د هغه په واسطه دې حل او تش ځایونه دې ډک کړي همدارنګه بل زده کوونکی دې راوغوښتل شي (۸) ګڼه پوښتنه دې د شکل او تصویرونو له مخې حل او تش ځایونه دې ډک کړي.

– ښاغلی ښوونکی یو شمیر شیان په مساوي ګروپونو کې جلاء، جلاء کښیږده او یو له بله سره جمع کړئ. بیا زده

کوونکو ته وواياست تاسو وليدل چې څه ډول مساوی ګروپونه جوړولای شو او بيايې جمع کولای شو.

**۲- مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۸۹) مخ ته راوګرزوئ، د ګروپونو، شکلونو او تصويرونو په برخه کې دې هغو ته معلومات ورکړل شي. بيا دې (۹، ۱۰) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ ته (۱۱، ۱۲) ګڼې پوښتنې دې دويم ګروپ ته او همدارنګه (۱۳، ۱۴) ګڼې پوښتنې دې دريم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو د شکل او تصويرونو له مخې مساوي ګروپونه تشخيص کړي او تش ځايونه په صحيح او سم توګه ډک کړي ښاغلی ښوونکی دې د کار د جريان څارنه کوي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ لاندې پوښتنې دې له زده کوونکو څخه وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

- څوک وايي له ۲۰ دانو جوارو څخه د ۵ دانه ئيزو څو ګروپونه جوړيږي؟
- څوک وايي ۳ مساوی ګروپونه چې هر ګروپ ۳ دانې دي له څو دانو لوبياؤ څخه جوړيږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي د لاندې هر يوه شي څخه مساوي ګروپونه چې ۴ دانې ولري جوړ کړي.







___ = ___ + ___ + ___     ___ = ___ + ___ + ___ + ___ + ___     ___ = ___ + ___

___ ګروپونه د ___ = ___     ___ ګروپونه د ___ = ___،     ___ ګروپونه د ___ = ___

**ذهنيت:**

زده کوونکي د مساوي ګروپونو په جوړولو سره خوشحاليږی او په ذهن کې بدلون راځي له رياضی سره مينه پيدا کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی د دې نوي طريقی څخه په خپل ورځنی ژوند کې کار اخلي د جوړو او ګروپونو په جوړولو سره په ډيره ښه توګه کولای شي خپل او د نورو ستونزی په ورځنی راکړه او ورکړه کې حل کړي.

**۴- کورنی دنده:**

د دې مخ په پای کې ۱۳ ګڼه پوښتنه چې د کورنی دندې په توګه ټاکل شوي ده زده کوونکي دې د شکل له مخې د هغه افاده ترتيب او حل کړي او له ځانو سره دې راوړي.

# عنوان: د ضرب د علامي (نښي) پيژندل

**دوه څلويښتم لوست، (۹۰) مخ**

**وخت: ۴۵ دقيقه**

**هدف:** د ضرب د علامي د پيژندلو په برسيره زده کوونکي پوه شي که چيرى د جمعي اجزاوي مساوى وي د جمعي عمليه په ضرب باندې بدليږي.

**اصطلاح ګاني:** جمع، ضرب، علامه، ګروپ، واري، مساوي، د ضرب حاصل.

**د لوست مرستندوى مواد:** د لوبيا داني، د جوارو داني، وري ډبري او نور د چاپيريال مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلى ښوونکى د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په ډير دقت سره وکتل شى، اشتباه ګاني دې په دړې باندې وليکل شي. داوطلب زده کوونکي دې صحيح او سم ځوابونه په دړې باندې تشريح کړي پرته له هغه ښاغلى ښوونکى دې صحيح ځوابونه په دړې باندې تشريح کړي. او بيا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتني وکړي.

لومړى ګروپ: له ۵ دانو لوبيا څخه ۳ څو دانه ئيزه مساوي ګروپونه جوړيدلاى شي؟

دويم ګروپ: له څو دانو جوارو څخه ۴ دانه ئيزه ۲ مساوى ګروپونه جوړيدلاى شي؟

دريم ګروپ: له ۸ دانو ورو ډبرو څخه څو ۲ دانه ئيزه مساوى ګروپونه جوړيدلاى شي؟

– ښاغلى ښوونکى دې يو زده کوونکى د ټولګى مخې ته راوغواړي او هغه ته دې ووايي هغه وري ډبرې چې په ميز باندې ايښودل شوي دي ۱۶ داني وري ډبرې ورڅخه واخله ۴ ګروپونو جوړ او په مختلف ځايونو کې کښيږده، کله چې زده کوونکى دا کار وکړي له يوه بل زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي چې هر ګروپ څو داني دي، هغه به ووايي ۴ داني، همدې زده کوونکي ته دې ووايي د هغه د جمعې افاده وليکه هغه يې ليکي:

۴+ ۴ + ۴ + ۴ = ۱۶

دوه څلويښتم لوست

ضرب

هدف: زده کوونکي د ضرب عمليه زده کړي او علامه يې وپيژني.

که چيرې ګروپونه مساوي او هم جنسه وي هغه جمع يا ضرب کولاى شو ترڅو چې مجموعه يې پيدا شي.

۴ + ۴ + ۴

۳ واري څلور

۱۲ حاصل ده

۳× ۴ = ۱۲

دا × نښه د ضرب ده

۳ واري ۴ مساوي له ۱۲ هلته په ۳ ګلدانيوکې ۱۲ ګلان دي.

په ډله ئيزه توګه کار وکړئ جمع يا ضرب يې کړئ ترڅوچې مجموعه يې پيداکړئ.

مثال: ۴ ګروپونه د۳ دانه يې څومره چوغکى کيږى؟

۳ + ۳ + ۳ + ۳ = ۱۲

۳ واري ۴ = ۱۲

يا ۴ × ۳ = ۱۲ چوغکې

۱.

۵ + ۵ + ۵ = ۱۵

۳ واري پنځه = ۱۵

۳ × ۵ = ۱۵ سپي

۲. ۲ ګروپونه د۳ دانه يې څومره ميزونه کيږى؟

۳ + ۳ = ٦

۲ واري دري = ٦

۲ × ۳ = ٦ ميزونه

۳.

۱ + ۱ + ۱ = ۳

۳ واري يو = ۳

۳ × ۱ = ۳ بايسکيلونه

۹۰

له نورو زده کوونکو څخه دې وپوښتي، په دې افاده کې ۴ څو واري ليدل کيږى هغوى ځواب وايي ۴ واری.

په همدې ډول ښاغلى ښوونکى دې له نورو ګروپونو څخه يو زده کوونکى راوغواړي او هغه ته دې ووايي هغه لوبيا ګاني چې د ټولګى مخې ته ايښودل شوى دي. له هغه څخه د ۱۵ په شمير لوبيا واخله ۳ مساوى ګروپونه چې هر ګروپ يې ۵ داني وي جوړ کړه، او جلاء، جلاء يې کښيږده. کله چې زده کوونکى ۳ مساوى ګروپونه جوړ کړل له يوه بل زده کوونکى څخه دې وپوښتي، هر ګروپ څو داني دي؟ هغه به ځواب ورکړي ۵ داني دي. همدا زده کوونکى دې راوغواړي چې د هغه د جمعې افاده وليکي هغه داسى ليکي:

۵ + ۵ + ۵ = ۱۵

بيا دې له ټولو زده کوونکو څخه پوښتنه وشي په دې افاده کې ۵ څو واري ليدل کيږي؟ هغو به ووايي دري واري ۵ دي.

– ښاغلى ښوونکى دې زده کوونکو ته ووايي تاسو وليدل چې ۴ وارى ۴ جمع شول، په حقيقت کې مساوى اجزاوي جمع شوى دي.

بيا درى واري ۵ جمع شول، چې دلته هم د جمعې اجزاوي

مساوي دي. کله چې د جمعې داسې یوه عملیه وي مونږ له یوی بلي عملیې څخه کار اخلو چې ضرب بلل کیږي یعنی کله چې د جمعې اجزاوي مساوي وي مونږ د ضرب په عملیه کې له (×) نښې څخه د ضرب د نښې په توګه کار اخلو.
بیا هم پاملرنه وکړئ چې څرنګه کولای شو د جمعې عملیه په ضرب باندې بدله کړو یا واړه ؤو .

۴ + ۴ + ۴ + ۴ = ۱٦      ۵ + ۵ + ۵ = ۱۵

۴ وراي ۴      ۳ واري ۵

۴ × ۴ = ۱٦      ۳ × ۵ = ۱۵

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست چې لومړی یې جمع کړي کله چې ګروپونه، د جمعې اجزاوی مساوی وي بیا یې ضرب کړئ هغه مجموعه چې په ضرب کې په لاس راوړئ د ضرب د حاصل په نامه یادیږي. زده کوونکو ته د ضرب او د ضرب د حاصل اصطلاحات د ضرب په یوه افاده کې وروپیژنه، زده کوونکو ته ووایاست چې په ضرب کې لومړی د ګروپونو شمیر ولیکئ او بیا بل عدد په هغه کې ضرب کړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۹۰) مخ ته راوګرزوئ هغه مثال چې په کتاب کې حل شوی دئ د شکل او تصویرونو له مخې یې هغو ته تشریح کړه او همدارنګه (۱) ګڼه پوښتنه چې حل شوی ده په هغه باندې دی هم رڼا واچول شي. بیا دې (۲) ګڼه پوښتنه لومړی ګروپ ته (۳) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او (۴) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي. ترڅو د (۱) پوښتنې په څیر یې حل کړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلي ښوونکي خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي. د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې ۳ ګروپونه د ۴ دانه یې څو کیږی؟
– څوک وایې ۵ ګروپونه د ۵ دانه یې څو کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي د شکلونو له مخې د لاندې پوښتنو افادې ولیکي او حل یې کړي:



___ + ___ + ___ = ___

___ ګروپونه د ___ = ___



_____ + _____ = _____

___ ګروپونه د ___ = ___

**ذهنیت:**

د زده کوونکو ذهن د شیانو د ګروپونو په پوهیدو سره بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د مساوي ګروپونو له جوړولو څخه د ژوند په ورځنی معاملو کی کار اخلي. او له دې طریقې څخه په ډیره آسانی سره کولای شي د خپل ځان او نورو ستونزي حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د جمعې لاندې عملیې په ضرب باندې واړه وي حل دې کړي او له خپل ځانو سره دې راوړي.

٦ + ٦ + ٦ =?،    ۴ + ۴ + ۴ + ۴ + ۴ =?،    ۲ + ۲ + ۲ + ۲ + ۲ =?،    ۵ + ۵ + ۵ + ۵ + ۵ =?

# عنوان: د ضرب د نښې (علامې) پیژندنه

**(۹۱، ۹۲) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکې د ضرب د نښې د پیژندلو سربیره پوه شي که چیرې د جمعې اجزاوي مساوي وي د جمعې عملیه په ضرب بدلیږي.

**اصطلاح ګانې:** د جمعې مساوي اجزاوي، د ضرب نښه، مساوي ګروپونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د جوارو دانې، وړې ډبرې او نور د چاپېریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، اشتباه ګانې دې په دړې باندې ولیکل شي صحیح او سم ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح او سم ځوابونه په دړې باندې تشریح کړي ترڅو د زده کوونکو قناعت حاصل شي. بیا دې لاندې پوښتنې په ګروپي یا انفرادی ډول وپوښتې:

لومړی ګروپ: ۳ مساوي ګروپونه چې هر ګروپ یې ٦ دانې وي څو کیږي؟

دویم ګروپ: ۴ مساوی ګروپونه چې هر ګروپ یې ۳ دانې وي څو کیږي؟

دریم ګروپ: ٦ مساوي ګروپونه چې هر ګروپ یې ۴ دانې وي څو کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی! یو شمیر لوبیا په خپل میز باندې کېښیږده او د یوه زده کوونکي مثلاً فرید نوم واخله راوغواړه او هغه ته ووایاست چې له دې لوبیا ګانو څخه ۲ مساوي ګروپونه چې هر ګروپ یې ۵ دانې وی جلا کړه او جلاء، جلاء یې کېښیږده کله چې زده کوونکی دا فعالیت سرته ورسوي، بیا دې ورته وویل شي چې د جمعې د عملیې په واسطه د هغو مجموعه پیدا کړه. زده کوونکی باید ۱۰ = ۵ + ۵ ولیکي که چیرې ستونزې ولرې مرسته

۴– دجمعې دافادو له مخې د ضرب د افادو تش ځایونه ډک کړئ.

۱– [۲] = ۲×۱ یا ۲ = ۱ + ۱

۲– ۳ = [۱] ×۳ یا ۳ = ۱ + ۱+۱

۳– ۴ = [۱] ×۴ یا ۴ = ۱ + ۱ + ۱ + ۱

۴– ۸ = [۲] ×۴ یا ۸ = ۲ + ۲ + ۲ + ۲

۵– ۱۵ = [۳] ×۵ یا ۱۵ = ۳ + ۳ + ۳ + ۳ +۳

٦– ۱۲ = [۴] ×۳ یا ۱۲ = ۴ + ۴ + ۴

۷– ۱۰ = ۵ × [۲] یا ۱۰ = ۵ + ۵

جمع او ضرب یې کړئ، ترڅو حاصل یې پیداکړئ.

مثال:



۱۲= ۴ + ۴ + ۴

۳ ګروپونه د ۴ = ۱۲

۳ وارې څلور = ۱۲

یا ۳ × ۴ = ۱۲ قفله

۱. ټول څودانې موټرونه دي؟



۹ = ۳ + ۳ + ۳

۳ ګروپونه د ۳ = ۹

۳ واري دري = ۹

موټره ۹ = ۳ ×۳

۹۱

ورسره وکړئ، بیا له یوه دویم زده کوونکي څخه پوښتنه وکړئ چې د ۵ دانه ئیزو څو مساوي ګروپونه دي؟ هغه به هم ووایې چې د ۵ دانه ئیزو ۲ مساوي ګروپونه دي. او ورته ووایاست چې د ضرب د عملیې په توګه یې ولیکه، زده کوونکی باید ۱۰ = ۵ × ۲ ولیکي.

په همدې ډول د یوه بل زده کوونکي لکه احمد نوم واخله او هغه ته ووایاست چې له دې وړو ډبرو څخه ۳ مساوی ګروپونه چې هر ګروپ یې ٦ دانې وي جلا کړه او په مختلفو ځایونو کې کېښیږده. کله چې زده کوونکی دا فعالیت سرته ورسوي، بیا دې احمد ته وویل شي چې د یوې عملیې په واسطه د هغو مجموعه وښایست.

احمد باید ۱۸ = ٦ + ٦ + ٦ ولیکي. که چیرې ویې نه لیکل. له یوه بل زده کوونکي څخه دې غوښتنه وشي ترڅو د جمعې د عملیې په واسطه مجموعه وښیي.

بیا دې له یوه بل زده کوونکي څخه وپوښتل شي چې څو مساوي ګروپونه دې او هر ګروپ یې څو دانې دي؟ هغه د ګروپونو شمیر ته کتنه کوي او وایي ۳ مساوی ګروپونه

دي او هر ګروپ یې ٦ داني دي. که چیرې ونشي ویلای په وار سره دي له نورو زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي ترڅو صحیح ځواب په لاس راوړي هغه زده کوونکي چې صحیح ځواب یې ویلی دئ ورته وواياست چې د ضرب د عملیې په واسطه صحیح ځواب وښیاست. زده کوونکی باید ۱۸ = ٦ × ۳ ولیکي.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۹۱) مخ ته راوګرزوئ ترڅو د جمعې د افادو له مخې د ضرب د افادو تش ځایونه ډک کړي بیا (۱، ۲، ۳) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ ته، (۴، ۵) ګڼې پوښتنې دویم ګروپ ته او په پای کې (٦، ۷) ګڼې پوښتنې دریم ګروپ ته ورکړئ ترڅو په ګروپي ډول په ټولګي کې کار وکړي. او د دې پوښتنو له حل کولو وروسته د (۹۲) مخ (۸) ګڼه پوښتنه چې حل شوې ده تشریح یې کړه او وروسته د (۹۲) مخ (۹) ګڼه پوښتنه لومړي ګروپ ته، (۱۰) ګڼه پوښتنه دویم ګروپ ته او (۱۱) ګڼه پوښتنه دریم ګروپ ته ورکړئ. ترڅو د حل شوی مثال په توګه په ګروپي شکل په ټولګي کې کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت کوي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغه سره مرسته او لارښوونه ورته وشي.

**پوهه:**

- څوک وایې چې څه وخت د جمعی عملیه په ضرب باندې بدلولای شو؟
- څوک وایې که چیرې د جمعې په یوه افاده کې د جمعې اجزاوې یو له بل سره مساوي وي نوموړې افاده په ضرب بدلیدای شي او که نه؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د ضرب لاندې عملیې په جمع باندې واړه وي.

۲ × ۳ = ?، ۲ × ۴ = ?، ۳ × ۴ = ?

۲. ټولې څومره کوترې دي؟



۵ + ۵ = ۱۰

۲ ګروپونه د ۵ = ۱۰

۲ واري پنځه = ۱۰

یا ۲ × ۵ = ۱۰ کوترې

۳ . ټول څو دانې ګیلاسونه دي؟



۴ + ۴ + ۴ + ۴ = ۱٦

۴ ګروپونه د ۴ = ۱٦

۴ واري څلور = ۱٦

یا ۴ × ۴ = ۱٦ ګیلاس

**کورنۍ دنده:**

۱- ټول څودانې دانې ګلان دي؟



۵ + ۵ + ۵ + ۵ = ۲۰

۴ ګروپونه د ۵ = ۲۰

۴ واري پنځه = ۲۰

یا ۴ × ۵ = ۲۰ ګلونه

۲- ټول څودانې خټکي دي؟



۴ + ۴ = ۸

۲ ګروپونه د ۴ = ۸

۲ واري څلور = ۸

یا ۲ × ۴ = ۸ خټکۍ

۹۲

**ذهنیت:**

د جمعې د عملیې بدلول په ضرب باندې او ددې طریقې په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومې په خپل ځان او نفس باور پیدا کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی کولای شي د ضرب له دې عملیې څخه چې د جمعې کولو لنډه طریقه، په هغه صورت کې چې د جمعې اجزاوې مساوي وی د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي. ځکه د دې لپاره چې عین عدد څو واري یو له بله سره جمع کړي له لنډې طریقې څخه کار واخلي او ضرب یې کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د (۹۲) مخ (۱۲ او ۱۳) ګڼې پوښتنې د شکلونو او تصویرونو له مخې حل او له ځانو سره دې راوړي.

# عنوان: د کتارونو جوړول

**درې ځلویښتم لوست، (۹۳) مخ**

**وخت:دوه ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي که چیرې د جمعې اجزاوې مساوي نه وي د جمعې عملیه په ضرب باندې بدلیدلای نشي.

**اصطلاح ګانې:** کتارونه، مساوي، مساوي اجزاوې.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د جوارو دانې، زده کوونکي او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنی دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي هغه اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانیږي په درې باندې دې ولیکل شي، صحیح او سم ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي، له هغه پرته ښاغلی شوونکی دې صحیح او سم ځوابونه په درې باندې تشریح کړې. بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وشي.

لومړی ګروپ: ۳ مساوی ګروپونه چې هر ګروپ یې ۵ دانې وي څرنګه یې د جمعې او ضرب د افادو په شکل لیکلای شو؟

دویم ګروپ: ۵ مساوی ګروپونه چې هر ګروپ یې ۳ دانې وي څرنګه یې د جمعې او ضرب د افادو په شکل لیکلای شو؟

دریم ګروپ: ۴ + ۴ + ۴ + ۴ + ۴ په افاده کې څو مساوی ګروپونه دي او هر یو یې څو دانې دي؟

– ښاغلی ښوونکی دې ۸ دانې لوبیا ګانې په خپل میز باندې کښیږدي او یو زده کوونکی دې راوغواړي هغه ته دې ووایې چې دا لوبیا وې په شکل سره په کتارونو کې کښیږده ښایي زده کوونکی ۲ کتاره چې هر کتار یې ۴ دانې وي جوړ کړي او یا ۴ کتارونه چې هر کتار یې ۲ دانې وي جوړ کړي. بیا دې د ۱۲ تنو په شمیر زده کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي او هغو ته دې ووایې تاسو داسې ودریږئ چې ۲ مساوي کتارونه جوړ شي زده کوونکي په دوو کتارونو کې دریږي. او له نور زده

درې ځلوېښتم لوست

د کتارونو جوړول

هدف: زده کوونکي وپوهیږي که چیرې دجمعې اجزاوې مساوي نه وي دجمعې عملیه په ضرب باندې بدلیدلای نشي.




په دې کتارونوکې د رنګ شویو مربعاتو مختلف شمېر شتون لري.
کتارونه یوله بله سره مساوي نه دي.
مونږ هغه ضربولای نشو.

دا کتارونه سره مساوي دي
په هرکتار کې ۳مربع ګانی رنګ شوي دي.
۴ کتارونه شتون لري.
په هر کتارکې۳ مربع ګاني
۴ × ۳ = ۱۲ رنګه مربع ګانې

هر زده کوونکی دې په خپله خوښه کتارونه رنګ کړي او دهغوي شمیرد وښيئ.

.۱
–۴– مساوي کتارونه
–۳– په هر کتار کې
–۲۰– حاصل

.۲
——— مساوي کتارونه
——— په هر کتار کې
——— حاصل

.۳
——— مساوي کتارونه
——— په هر کتارکې
——— حاصل

.۴
——— مساوي کتارونه
——— په هر کتار کې
——— حاصل

۹۳

کوونکو څخه چې کتارونه وینې پوښتنه دې وکړې څو کتاره دې هغوی په وواېې ۲ کتاره، هر کتار څو تنه دي؟ بیا هم ځواب وایې ٦ تنه، د زده کوونکو شمیر په کتارونو کې یو له بله سره مساوی دي؟ هو له زده کوونکو څخه دې وپوښتې په تاسو کې څوک شته دي چې دا عبارت د ضرب د عملیې په توګه ولیکي او د زده کوونکو شمیر معلوم کړي. که چیرې کوم زده کوونکی وکولای شي ښه تر ښه پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې تشریح کړي:

۲ کتاره دې په هر کتار کې ٦ تنه دي څرنګه چې کتارونه یو له بله سره مساوي دي داسې ضرب کوو:

ټوله ۱۲ تنه کیږي ۱۲= ٦ × ۲ ⟵ ۲ مساوی کتارونه

په هر کتاپ کې ٦ تنه

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې ۱۴ زده کوونکي په ۲ مساوی کتارونو کې ودروي. او بیا دې د هغه د ضرب عملیه د زده کوونکو په واسطه بشپړ کړي. د ستونزو په صورت کې دې مرسته ورسره وکړي.

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې ۱۳ زده کوونکي د ټولګي

په مخ کې ودروي او یوه زده کوونکی ته دې ووایې چې دا زده کووونکي په مساوي کتارونو وویشه زده کوونکی دوه کتاره ٦ تنه یې جوړوي، خو لیدل کیږی چې یو تن زیات ده. ښایې چې هغه ووایې دوه مساوی کتارونه، نه جوړیږی یو کتار یې ٦ تنه او بل یو کتار یې ٧ تنه کیږی یو بل زده کوونکی ته دې ووایې چې هغه راشي. ۱۳ تنه په دوو مساوي کتارونو کې ودروي. هغه هم کله چې دوه کتاره ٦ تنه جوړ کړي بیا هم یو تن زیاتیږي. له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي څوک کولاي شي د دې کتارونو لپاره د ضرب عملیه ولیکي؟ ښایې چې څوک پیدا شي، بیا هم که چیری اشتباهاً څوک پیدا شي او افاده ولیکی ښاغلی ښوونکی دې داسې ورته ووایې: مونږ د مساوي کتارونو لپاره د ضرب عملیه لیکلای شو، هغه کتارونه چې یو له بله سره مساوي نه دي مونږ هغه ضربولای نشو. او دا دې په ټینګار سره زده کوونکو ته ووایې. ښاغلی ښوونکی زده کوونکی دې نور مساوی کتارونه جوړ کړي ترڅو په هغو کې د ضرب عملیه و ښيي او همدارنګه د مساوي ګروپونو او مساوي کتارونو مفهوم چې دواړه یو شئ دي د اړیکو له مخې دې هغو ته تشریح کړي.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۹۳) مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې په کتاب کې حل شوی دئ. د چارت د رسم له مخې مساوي مربع ګانې دې په مساوی کتارونو کې او همدارنګه د مختلفو مربع ګانو شمیر دې په نامساوي کتارونو کې تشریح کړي. بیا دې (۱) ګڼه پوښتنه لومړی ګروپ ته (۲) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او همدارنګه (۳) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړي ترڅو په ګروپي ډول په ټولګی کې په هغه باندې کار وکړي. او په خپله خوښه مساوي کتارونه جوړ کړي او رنګه یې کړي او د ضرب د افادې په شکل یې ولیکي. د کار د جریان مراقبت دې وکړي.

**۳- ارزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې له ٦ دانو جوارو څخه ۳ مساوی کتارونه جوړولاې شو او ودې وایې چې په هر کتار کې څو دانې دي؟
- څوک وایې چې له ۹ دانو شیانو څخه دوه مساوي کتارونه جوړیدای شي او که نه؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې شیان په مساوي کتارونو کې ترتیب کړي.

- ۱۲ دانې لوبیا په ۳ مساوي کتارونو کې ترتیب کړای شي.
- ۱۵ دانې جواري په ۳ مساوي کتارونو کې ترتیب کړای شي.

**ذهنیت:**

د زده کوونکو ذهن د مساوي کتارونو په جوړولو سره بدلون مومي احساس د خوښی کوي.

**ارزښت:**

د کتارو د جوړولو په پوهیدو سره زده کوونکي کولای شي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي شیان او جنسونه چې عینی شکل او رنګ ولري د کتارونو په شکل یې کېښیږدي او خپل ستونزي حل کړي.

**۴- کورنی دنده:**

د (۹۳) مخ (۴) ګڼه پوښتنه چې د کورنی دندې په توګه د زده کوونکو لپاره ټاکل شوي ده هغوی دې جدول په خپلو کتاپچو کې رسم کړي هر یو د هغوې د خپل ذهن او علاقي سره سم مساوي کتارونه جوړ کړي او د ضرب عملیه دې ولیکي.

# عنوان: د مساوي کتارونو جوړول

**(۹۴) مخ**
**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقیقه يې)**

**هدف:** زده کوونکی پوه شي که چیرې د جمعي په یوې افاده کې د جمعي اجزاوي مساوي نه وي د جمعې عملیه په ضرب باندې بدلیدلای نشي.
**اصطلاح ګانې:** کتارونه، مساوي، نامساوي.
**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د جوارو دانې، زده کوونکی او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**
– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي. اشتباه ګانې دې په درې باندې ولیکل شي کوشش وکړئ چې صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح او سم ځوابونه په درې باندې تشریح کړي. بیا دې په انفرادې توګه له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.
له لومړي ګروپ څخه فریده: د څه ډول کتارونو څخه د ضرب عملیه لیکلای شو؟
له دویم ګروپ څخه احمد: مساوی ګروپونه او مساوی کتارونه کوم توپیر (فرق) لري او که په ضرب کې عیني مفهوم لري؟
له دریم ګروپ څخه محمود: د ضرب یوه عملیه له مساوی کتارونو څخه لیکلای شو او که د نامساوی کتارونو څخه؟
– ښاغلی ښوونکی دې د ۱۰ په شمیر د جوارو دانې په خپل میز باندې کښیږدي او یوه زده کوونکی ته دې ووایې راشه دا په دوو مساوي کتارونو کې کښیږده. زده کوونکی راځي هغه په دوو مساوي کتارونو کې ایږدي. بیا دې له یوه دویم زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي په هر کتار کې څو، څو دانې جواری دي؟ هغه کتارونو ته ګوري وایې، پنځه، پنځه دانې جوار دي. دریم زده کوونکی ته دې ووایې چې راشي د هغو د ضرب افاده په درې باندې ولیکي زده کووونکی باید ۱۰ = ۲ × ۵ ولیکي.

مساوي کتارونه رنګه کړئ او دهغوي شمیر معلوم کړئ.

۵. ۳ کتاره د۴ وښیاست
۳ کتاره
۴ په هر کتار کې
۱۲ = ۴ × ۳

۶. ۴ کتاره د۲ وښیاست
۴ کتاره
۲ په هر کتار کې
۸ = ۲ × ۴

۷. ۴ کتاره د۵ وښیاست
۴ کتاره
۵ په هر کتار کې
۲۰ = ۵ × ۴

۸. ۵ کتاره د۵ وښیاست
۵ کتاره
۵ په هر کتار کې
۲۵ = ۵ × ۵

۹.
۲ کتاره
۳ په هر کتار کې
٦ = ۳ × ۲

۱۰.
۳ کتاره
۵ په هر کتار کې
۱۵ = ۵ × ۳

**کورنۍ دنده :** ټوله تمرینونه حل کړئ وروسته:
۱. داسې شکلونه رسم کړئ چې ۳×۵ وښئي
۲. داسې شکلونه رسم کړئ چې ۵ × ۷ وښئي

۱.
۱۵ = ۵ × ۳

۲.
۳۵ = ۷ × ۵

۹۴

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې ۱۵ تنه زده کوونکي د ټولګی مخې ته ودروي او هغو ته دې ووایې تاسو په داسې دوو کتارونو کې ودریږئ چې یو له بله زیات نشئ، زده کوونکی چې هر څومره کوشش وکړي بیا هم یو کتار یې ۷ تنه او بل کتار یې ۸ تنه کیږي او ويني چې د دوو مساوي کتارونو کیدل نا ممکن دئ بیا ورته ووایاست څوک کولای شي د هغو د ریاضی افاده د ضرب په شکل ولیکي؟ زده کوونکي د مخکنۍ معلومات له مخې وایې د هغو لپاره د ضرب افاده لیکل کیدای نشي بیا دې همدې زده کوونکو ته ووایې چې اوس تاسو په درې مساوي کتارونو کې ودریږئ.
په دې صورت کې زده کوونکي ۳ مساوي کتارونه جوړوي. کله چې ۳ کتارونه یې جوړ کړل بیا دې یوه زده کوونکی ته ووایې چې اوس په هر کتار کې څو تنه دي؟ هغه به ووایې پنځه تنه دي، ایا په کتارونو کې د زده کوونکو شمیر یو له بله سره مساوي دي. هغه کتارونو ته پاملرنه کوي شمیرې وایې هو مساوي دي.

– ښاغلی ښوونکی دې بیا له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې اوس د دې کتارونو لپاره د ضرب په توګه د ریاضي افاده لیکل کیدای شي او که نه؟ که چیري زده کوونکي ووایې هو نو زده کوونکی راوغواړئ ترڅو د ریاضی افاده یې ولیکي، له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې په تاکید ډول ووایې چې د ۱۵ تنو لپاره، د دوو مساوي کتارونو په شکل د ضرب افاده لیکلای نشو خو د دري کتارونو لپاره چې هر کتار یې پنځه تنه کیږي داسې افاده د ۱۵ = ۳ × ۵ لیکلای شو په تکراري توګه دې ووایې یوازې او یوازې د مساوي کتارونو لپاره د ضرب په شکل د ریاضی افاده لیکلای شو او د نامساوي کتارونو لپاره د ریاضي افاده د ضرب په شکل لیکلای نشو.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۹۴) مخ ته راوګرزوئ. (۵، ٦) ګڼې پوښتنې دریم ګروپ ته (۷، ۸) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ ته او (۹، ۱۰) ګڼې پوښتنې دویم ګروپ ته ورکړئ چې په ګروپی شکل په ټولګی کې د کتاب له هدایت سره سم په خپلو کتابچو کې کار وکړي او پوښتنې حل کړي ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وی چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې د ۳ مساوي کتارونو لپاره چې هر یویې ۵ دانه یې وي د ضرب افاده لیکل کیدای شي؟

– څوک وایې د ۲ نامساوي کتارونو لپاره چې یو یې ۳ دانه یې او بل یې ۴ دانه یې وي د ضرب افاده لیکل کیدائ شي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي د لاندې افادو لپاره د مساوی کتارونو شکل رسم کړي.

۲ × ۴ په شکل کې وښیې.

۵ × ۲ په شکل کې وښیې.

۳× ۳ په شکل کې وښیې.

**ذهنیت:**

د مساوي کتارونو په پوهیدو او جوړولو سره د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راځی او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د داسې مساوي کتارونو په پوهیدو سره زده کوونکي کولای شی د ژوند په ورځنی معاملو کې کار ورڅخه واخلي د مساوي کتارونو په جوړولو سره له ډیره آساني طریقي د ضرب څخه کار اخلي د خپل ځان او نورو ستونزي په آسانی سره حل کوي.

**۴– کورنی دنده:**

د کتاب په (۹۴) مخ کې کومه پوښتنه چې د زده کوونکو لپاره د کورنی دندې په توګه ټاکل شوی ده په خپلو کتاپچو کې دې حل او له ځانو سره دې راوړي.

# عنوان: په ضرب کې د بدلون خاصيت

**څلور څلوېښتم لوست، (۹۵، ۹۶) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي که چيرې د ضرب د اجزاؤ ځايونه بدلون ومومي فرق نه کوي يعنې د ضرب په حاصل کې بدلون نه راځي.

**اصطلاح گاني:** د ضرب اجزاوي، بدلون، د ضرب حاصل، مساوي کتارونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبيا دانې، زده کوونکي او نور د چاپيريال مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د يوه گروپ کورنۍ دنده دې د بل گروپ په واسطه وکتل شي هره اشتباه چې د کوم گروپ يا هر گروپ په واسطه اعلانيږي جلاء، جلاء دې په دړې باندې وليکل شي. صحيح ځوابونه دې د هغو زده کوونکو په واسطه پيدا شي چې اشتباه گانې يې په گوته کړې دي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په دړې باندې تشريح کړي بيا دې په انفرادي يا گروپي ډول له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی گروپ: که چيرې ۱۲ دانې ختکې په ۳ مساوي کتارونو کې ولرو په هر کتار کې څو دانې ختکی کيږي؟

دويم گروپ: له ۱۵ تنو څخه څو مساوي کتارونه جوړيږي؟ او په هر کتار کې څو تنه راځي؟

دريم گروپ: له ۱۱ تنو څخه څو مساوي کتارونه جوړيږی او په هر کتار کې څو تنه راځي؟

– ښاغلی ښوونکۍ دې د ۸ په شمير د لوبيا دانې په خپل ميز باندې کښيږدي او يوه زده کوونکي ته دې ووايي راشه له دې لوبيا څخه ۲ مساوي کتارونه جوړ کړه زده کوونکی راځي له هغو څخه دوه مساوي کتارونه جوړوي بيا دې پوښتنه وکړي په هر کتار کې څو دانې لوبيا دي هغه لوبياوي ويني وايي ۴ دانې لوبياوي دي. زده کوونکی ته دې ووايي د هغه د رياضي افاده د ضرب په شکل وليکۍ هغه داسې ۸=۴×۲ ليکي. بيا دې د يوه بل زده کوونکۍ لکه فريد نوم واخلي هغه ته دې ووايي له هم هغو ۸ لوبيا څخه ۴ مساوي کتارونه جوړ کړه. زده کوونکی راځي له هغو څخه ۴ مساوی کتارونه جوړوي. بيا دې له همدې زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي په هر

څلور څلوېښتم لوست
په ضرب کې د بدلون خاصيت

هدف: زده کوونکي په دې پوه شي که چيرې د ضرب د اجزاو ځايونه بدلون وکړي د ضرب په حاصل کې بدلون نه راځي.

تاسو عددونه په لاندې ډول ضرب کولای شئ چې عين حاصل ولري.

عين حاصل

$۲ \times ۴ = ۸$ $۴ \times ۲ = ۸$

مساوي کتارونه جوړ کړئ هر کتار رنگ کړئ او حاصل يې پيدا کړئ.

۱. $۵ \times ۳ = ۱۵$ ، $۳ \times ۵ = ۱۵$

۲. $۴ \times ۳ = ۱۲$ ، $۳ \times ۴ = ۱۲$

۳. $۲ \times ۳ = ۶$ ، $۳ \times ۲ = ۶$

۴. $۵ \times ۱ = ۵$ ، $۱ \times ۵ = ۵$

۵. $۴ \times ۵ = ۲۰$ ، $۵ \times ۴ = ۲۰$

۶. $۴ \times ۲ = ۸$ ، $۲ \times ۴ = ۸$

۹۵

کتار کې څو دانې لوبيا شته دي، هغه ورته گوري او وايي په هر کتار کې ۲ دانې لوبيا دي. او ورته وواياست چې د هغه د رياضي افاده د ضرب په شکل وليکۍ هغه داسې ۸ = ۲ × ۴ ليکي.

په همدې ډول د ۱۵ په شمير زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راوغواړي هغو ته دې ووايي چې تاسو په درې مساوي کتارونو کې ودريږئ، کله چې زده کوونکي په درې مساوی کتارونو کې دريږي. له زده کوونکو څخه دې وپوښتي، په هر کتار کې څو زده کوونکي دي؟ هغوی ځواب ورکوي ۵ زده کوونکي، بيا دې يوه زده کوونکی ته ووايي د هغه د ضرب افاده وليکه زده کوونکی داسې: ۱۵ = ۳ × ۵ ليکي.

بيا دې همدې ۱۵ زده کوونکو ته ووايي چې اوس تاسو په ۵ مساوي کتارونو کې ودريږئ، کله چې زده کوونکي په ۵ مساوي کتارونو کې دريږي. هغوی په دې صورت کې ځواب وايي په هر کتار کې ۳ زده کوونکي دي. يوه زده کوونکی ته دې ووايي د هغه د ضرب افاده وليکه زده کوونکی بايد داسې ۱۵ = ۵ × ۳ وليکي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکی بايد د ضرب اړوند عمليه تشخيص کړي. ښايي چې ځنې زده کوونکي په دې پوه

نښي چې ولې د عددونو د ترتیب بدلون د ضرب په حاصل باندې تاثیر نلري که چیرې زده کوونکی یې غلط کوي ښاغلی ښوونکی دې داسې ولیکي:

۳ کتاره — ۵ کتاره

۵ زده کوونکي په هر کتار کې — ۳ زده کوونکي په هر کتار کې

$۵ \times ۳ = ۱۵$ ، $۳ \times ۵ = ۱۵$

| د ضرب حاصل | | د ضرب دویم جزء | | د ضرب لومړی جزء |
|---|---|---|---|---|
| یا ۱۵ | = | ۳ | × | ۵ |
| ۱۵ | = | ۵ | × | ۳ |

د ضرب حاصل — د ضرب دویم جزء — د ضرب لومړی جزء

که چیرې پاملرنه وکړئ یوازې د ضرب د اجزاؤ ځایونه بدلون کړی دی خو د ضرب حاصل بدلون کړی نه دی.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته وواياست چې تاسو عددونه په مختلفو طریقو سره ضرب کولای شئ. چې د ټولو طریقو د ضرب حاصل عیني شئ دی.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۹۵) مخ ته راوګرځوي هغه مثال چې په کتاب کې کار شوی دی د موادو په کارولو سره دې تشریح کړي ترڅو زده کوونکي په ضرب کې د بدلون په خاصیت ښه پوه شي. بیا دې (۲، ۱) ګڼې پوښتنې لومړۍ ګروپ ته، (۳، ۴) ګڼې پوښتنې دویم ګروپ ته او همدارنګه (۵، ۶) ګڼې پوښتنې دې دریم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو د ریاضي د کتاب د ورکړل شوي افادو سره سم په ګروپي ډول جدولونه رنګه کړي. بیا دې ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۹۶) مخ ته را ګرزوي (۷، ۸) ګڼې پوښتنې دې دریم ګروپ ته، د هغه وروستۍ پوښتنه چې ګڼه نه لري لومړي ګروپ ته، او (۹، ۱۰، ۱۱) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته ورکړي چې د هدایت سره سم پوښتنې په ګروپي شکل حل کړي ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکي خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښته:**

– څوک وایي چې د ۳×۴ او ۴×۳ د ضرب حاصل یو له بله څه توپیر لري؟

د ضرب حاصل پیداکړئ.

۶. $۵\times ۳ = ۱۵$ ، $۳ \times ۵ = ۱۵$

۷. $۲\times ۵ = ۱۰$ ، $۵ \times ۲ = ۱۰$

۸. عددونه ولیکئ او کتارونه یې رنګ کړئ. د ضرب ډول، ډول پوښتنې ولیکي.

$۴ \times ۳ = ۱۲$ — $۳ \times ۴ = ۱۲$

وړې ډبرې استعمال کړئ ترڅو له تاسو سره د ضرب د حاصل پیدا کولو کې مرسته وکړي.

| ۹. | ۱۰. | ۱۱. |
|---|---|---|
| $۴ \times ۶ = ۲۴$ | $۲ \times ۹ = ۱۸$ | $۴ \times ۵ = ۲۰$ |
| $۶ \times ۴ = ۲۴$ | $۹ \times ۲ = ۱۸$ | $۵ \times ۴ = ۲۰$ |

**کورنۍ دنده:** د لاندې پوښتنو د ضرب حاصل په لاس راوړئ.

| ۱. | ۲. | ۳. |
|---|---|---|
| $۲ \times ۷ = ۱۴$ | $۳ \times ۶ = ۱۸$ | $۸ \times ۳ = ۲۴$ |
| $۷ \times ۲ = ۱۴$ | $۶ \times ۳ = ۱۸$ | $۳ \times ۸ = ۲۴$ |

۹۶

– څوک وایي که چیرې په ضرب کې د ضرب د اجزاو ځایونه ته بدلون ورکړو په حاصل ضرب کې بدلون راځي او که نه؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي د لاندې پوښتنو هره جوړه حل او د ضرب حاصل یې سره پرتله کړي.

۵×۳=? ، ۶×۴=? ، ۳×۷=? ، ۵×۶=?

۳×۵=? ، ۴×۶=? ، ۷×۳=? ، ۶×۵=?

**ذهنیت:** د ضرب د بدلون د خاصیت په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي شکاره کوي.

**اهمیت:** زده کوونکي د دې ډول له ضربولو څخه په خپل ورځنۍ ژوند کې کار اخلي هغوی کولای شي قیمتونه د شیانو په شمیر کې یا د شیانو شمیر په قیمتونو کې ضرب کړي ځکه هغوي پوهیږي چې ځواب یو شئ دی چې د ضرب د اجزاو د ځایونو بدلون د ضرب په حاصل کې بدلون نه راوړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د کتاب په (۹۶) مخ کې هغه پوښتنې چې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي دي د ګروپونو په منځ کې دې وویشل شي او هر ګروپ دې خپله پوښتنه د کتاب له هدایت سره سم حل کړي

# عنوان: ضرب کول په عمودي شکل

**پنځه څلويښتم لوست، (۹۷، ۹۸) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يي)**

**هدف:** زده کوونکي سربېره په افقي ضرب (په يوه ليکه کي) په عمودي طريقه (يو تر بل لاندي) باندي هم پوه شي.
**اصطلاح ګاني:** ضرب، افقي، عمودي، کتار.
**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبيا داني، زده کوونکي او نور د چاپيريال مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي کومي اشتباه ګاني چې د ګروپونو په واسطه اعلانيږي په دړې باندی دې وليکل شي. صحيح او ټک ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پيدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په دړې باندي تشريح کړي او له زده کوونکو څخه دې لاندي پوښتني وکړي.

له لومړی ګروپ څخه احمده: ۵ مساوي کتارونه چې هر کتار يې ۴ داني ولری څرنګه يې د ضرب په شکل ليکلای شو په دړې باندي وليکه؟

له دويم ګروپ څخه صابر: د ۳ مساوي کتارونو مجموعه چې هر کتار يې ٦ داني وي د ضرب په شکل پيدا کولای شو په دړې باندي وليکه.

له دريم ګروپ څخه محمود: ۴ مساوي کتارونه چې هر کتار يې ۷ داني وي د جمعي په شکل يې څرنګه پيدا کولای شو د دړې په مخ باندي وليکه.

– ښاغلی ښوونکی دې يو شمير د لوبيا داني په خپل ميز باندي کښيږدي يو زده کوونکی دې راوغواړي او هغه ته دې ووايي له دې لوبيا څخه ۳ مساوي کتارونه چې هر کتار يې ۷ داني وي جوړ کړه زده کوونکی له لوبيا څخه دري مساوي کتارونه چې په هر کتار کي ۷ داني راشي جوړوي. کله چې زده کوونکئ دا فعاليت سرته ورسوي. بيا دې له نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي څو مساوي کتارونه دي؟ او په هر کتار کې څو داني دي؟ هغوی لوبيا ته پاملرنه کوي او وايي ۳ مساوي کتارونه دي او په هر کتار کي ۷ داني دي. ښاغلی ښوونکی دې له يوه بل زده کوونکي څخه وغواړي او هغه ته دې ووايي چې د هغه د رياضي افاده د ضرب په شکل وليکئ. زده کوونکی ۲۱ = ۳ × ۷ ليکي.

پنځه څلويشتم لوست
په عمودي شکل ضرب کول

هدف: زده کوونکي سربېره په افقي (په يوه ليک کې) ډول د ضرب په عمودي ډول (يوتربل لاندې) هم پوه شي

کله چې ضرب کوي تاسو دضرب عمليه په دوه ډوله ليکلای شي.

په هر کتار کې ۴ منې
کتارونه ۳ ×
ټوله ۱۲ دانې منې

۴ × ۳ = ۱۲

مثال: دضرب حاصل پيداکړئ. ۲کتاره، دي هر کتار۷ دانه يې.

۷ × ۲ = ۱۴

۷
کتاره ۲ ×
۱۴

۱ – ۴ ګروپونه، هر ګروپ کې ۲ داني پيالي.

۴ × ۲ = ۸

۴
۲ ×
۸
ګروپ

۲. ۵ ګروپونه،هر ګروپ کې ۳ داني پاڼې.

۵ × ۳ = ۱۵

۵
۳ ×
۱۵
ګروپ

۳. ۳ کتاره، هر کتار کې ٦ توپونه.

۳ × ٦ = ۱۸

۳
ګروپ ٦ ×
۱۸

۹۷

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ۴ کتارونو کې داسي ودروي چې په هر کتار کې ٦ زده کوونکي ودريږي. بيا دې له يوه زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي چې څو کتاره دي او په هر کتار کې څو زده کوونکي ولاړ دي؟ زده کوونکي هغوی ته ګوري وايي ۴ مساوي کتارونه دي او په هر کتار کې ٦ زده کوونکي دي بيا دې همدې زده کوونکي ته ووايي د هغه د رياضي افاده د ضرب په شکل وليکه زده کوونکی ۲۴ = ۴ × ٦ ليکي. په همدې وخت کې دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ تاسو دوه عددونه په څو طريقو يو له بل سره ضرب کوئ. که چيري ځواب ووايي ښه به وي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې ووايي کله چې دوه عددونه يو له بله سره ضرب کوئ تاسو د ضرب عمليه په دوو طريقو سره ليکلای شي چې يو يې افقي شکل دئ او بل يې عمودي شکل دئ

| افقي شکل | | عمودي شکل | |
|---|---|---|---|
| ۱۲=۳×۴ منې په هر کتار کې | | ۴ | منې په هر کتار کې |
| ټولې منې، کتارونه | | ۳ × | کتارونه |
| | | ۱۲ | ټولې |

– ښاغلی ښوونکئ دې زده کوونکو ته ووايي لکه جمع او

تفریق چې هم په افقي شکل او هم په عمودي شکل جمع او تفریق کېدل او ځوابونه یې عینې شي ؤو. د ضرب عملیه هم په عمودي شکل او هم په افقي شکل سره سرته رسېدلای شي او په دواړو حالتو کې د ضرب حاصل یو له بله سره توپیر نه کوي عیني شی ده.

– ښاغلی ښوونکی ښایي چې زده کوونکي د ضرب عملیه په عمودي ډول ولیکي خو که چیرې یو زده کوونکئ په ضرب کولو کې د افقي او عمودي په شکلونو کې اشتباه وکړي. د افقي او عمودي د جمع کولو په برخه کې له هغو سره خبري وکړئ. چې ضرب هم په دوو طریقو د افقي او عمودي سره لیکل کېدای شي او ورته وواياست چې په ضرب کې لومړی عدد ګروپونو ښودنکی دی او دویم عدد د شیانو د شمیر ښودنکی په هر ګروپ کې دئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۹۷ او ۹۸) مخونو ته راوګرزوي هغه مثال چې په (۹۷) مخ کې حل شوئ ده هغو ته یې تشریح کړئ بیا د (۹۸) مخ، (۲، ۳ او ۴) ګڼې پوښتنې دې لومړئ ګروپ ته او د (۹۸) مخ، (۷، ۸) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ ته، او همدارنګه د (۹۸) مخ، (۹، ۱۰) ګڼې پوښتني دې دریم ګروپ ته ورکړئ چې په ګروپي ډول په ټولګي کې کار ورباندې وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي. د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې که چیرې عینی عددونه هم په عمودي او هم په افقي شکل یو له بله سره ضرب کړو د ضرب حاصل یې توپیر (فرق) کوي او که نه؟

– څوک وایې چې دوه عددونه په څو طریقو یو له بله سره ضرب کولای شو؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د ضرب افقي افادې په عمودي شکل واړه وي او ضرب یې کړي.

۸ × ۴ =?، ۷ × ۳ =?، ۴ × ۵ =?

۴ × ٦ =?، ۳ × ۷ =?، ۵ × ٦ =?

۴– عددي جملې په دوه ډوله ولیکئ

۲ کتاره، په هر کتار کې ۸ دایري.

۸ × ۲ = ۱٦

۸ × ۲ = ۱۶

۵. ۴ ګروپونه، په هر ګروپ کې ۵ هګۍ

۴ × ۵ = ۲۰

۴ × ۵ = ۲۰

٦. ۴ کتارونه، په هر کتار کې۴ دایرې

۴ × ۴ = ۱٦

۴ × ۴ = ۱۶

۷. ۵کتاره، په هر کتار کې ۲ دایرې.

۵ × ۲ = ۱۰

۵ × ۲ = ۱۰

د محیطي موادو څخه ګټه واخلئ او ضرب یې کړئ.

۱. ۲ × ۲ = ۴ ، ۵ × ۲ = ۱۰ ، ۳ × ۴ = ۱۲ ، ۷ × ۲ = ۱۴ ، ۲ × ۷ = ۱۴ ، ۴ × ۲ = ۸ ، ۷ × ۱ = ۷

کورنۍ دنده:

۲. ۴ × ۳ = ۱۲ ، ۳ × ۳ = ۹ ، ۲ × ۳ = ٦

۳. ۴ × ۴ = ۱٦ ، ۳ × ۴ = ۱۲ ، ۲ × ۴ = ۸

۹۸

**ذهنیت:**

د ضرب د دوو طریقو په پوهېدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي خوښی کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې ډول له ضرب کولو څخه د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار اخلي په ډیر لږ وخت کې په آسانتیا سره خپل او یا د نورو ستونزې حل کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۹۸) درې وروستۍ پوښتنې زده کوونکوته دې د کورنۍ دندې په توګه ورکړل شي چې سبا ته یې حل کړي او له ځانو سره یې راوړي.

(۱) ګڼه پوښتنه دې لومړی ګروپ ته

(۲) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته

(۳) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته

**شپږ څلویښتم لوست**
**د ضرب عبارتي پوښتنې**

هدف: زده کوونکي د عبارتي پوښتنو په مفهوم وپوهیږي او د ریاضي افاده یې ولیکي.

د ضرب د عملیې څخه په کار اخستو سره ٦ پوښتنې حل کړئ عددي جملې یې ولیکئ او د ضرب حاصل پیداکړئ.

١. د مرسل په بوټي کې ٣ سره ګلونه دي او هر ګل ٦ پاڼې لري ټولې څو پاڼې لري؟

٣ × ٦ = ١٨

______ د ګل پاڼې

٢. جمیله کباب پخوي او هغې دکباب ٦ سیخونه پاخه کړي دي د کباب هر سیخ یې ۴ ټوټې غوښه لري ټوله څو ټوټې غوښه کیږي؟

۴ × ٦ = ٢۴

ټوله ٢۴ ټوټې غوښه

٣. زیبا ۵ ګلدانۍ لري په هره ګلدانۍ کې یې دوه د ګلانو بوټي کینول، د ګلانو ټول شمیر څو کیږي.

٢ × ۵ = ١٠

ټوله ١٠ بوټي

۴. یو بڼوال غواړي په هر کتار کې د خټکیو ۴ بوټي کینوي ٣ کتاره یې پوره کړي دي په آخر کتار کې یې یوازې دوه بوټي کینولي، ټول څو بوټي کیږي.

٣ × ۴ = ١٢

١٢ + ٢ = ١۴ → ټوله ١۴ تخمه

**کورنۍ دنده:**

تاسو په خپله عبارتي پوښتنې جوړې او د عملیې عددي افادې ولیکئ او هم د ضرب حاصل یې پیداکړئ.

٩٩

# عنوان: د ضرب د عملیې کارول په عبارتې پوښتنو کې

**شپږ څلویښتم لوست، (٩٩) مخ**
**وخت: دوساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د ریاضي په عبارتې پوښتنو او کیسو کې د ضرب د عملیې مفهوم واخلي او د هغه د ریاضي افاده ترتیب کړي.

**اصطلاح ګانې:** د ضرب عملیه، مفهوم، عبارتونه یا کیسې، د ریاضي افاده.

**د لوست مرستندوی مواد:** قلم، کتابچې، او نور د چاپیریال مواد.

**١ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو له خوا اعلانیږي په دړې باندې دې ولیکل شي صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړې باندې تشریح کړي بیا دې له ګروپونو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: ۴ کتارونه د ۴ دانه یې په افقي او عمودي شکل یو له بله سره ضرب کړئ.

دویم ګروپ: ۴ ګروپونه د ۵ دانه یې په افقی او عمودي شکل یو له بله سره ضرب کړئ.

دریم ګروپ: د افقي او عمودي د ضرب په حاصل کې کوم توپیر لیدل کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی دې ٣ دانې قلمونه په خپل میز باندې کښیږدي او یوه زده کوونکی ته دې ووایې چې د قلمونو د شمیر او قیمتونو له مخې یو عبارت ترتیب کړه چې د ضرب په یوه طریقه سره ضرب شي که چیری زده کوونکی وکولای شي ښه به وي، پرته له هغه یوه داوطلب زده کوونکی ته دې اجازه ورکړل شي ترڅو عبارت ترتیب کړي مثلاً ودې وایې: که چیري د یوه قلم بیه ٢ افغانۍ وي د ٣ قلمونو بیه څو افغانۍ کیږي او داسې دې حل کړي:

٦ = ٣ × ٢ د دري واړه قلمونو بیه ٦ افغانۍ کیږي.

بیا دې یوه زده کوونکی ته ووایې که چیری د قلمونو بیه، ٣ افغانۍ او ۴ افغانۍ وي عبارتونه ورته ترتیب کړه.

بیا دې ۵ ټوکه کتابچې په خپل میز باندې کښیږدي او یو زده کوونکۍ دې راوغواړۍ هغه ته دې ووایې چې په خپله خوښه د یوې کتابچې لپاره یوه بیه (قیمت) وټاکه او بیا د قیمتونو او کتاپچو د شمیر له مخې یو عبارت ترتیب کړه چې د ضرب د یوې طریقې په واسطه حل شي.

بیا هم که زده کوونکۍ وکولای شي ښه به وي پرته له هغه له نورو زده کوونکو څخه دې مرسته وغوښتل شي. ترڅو عبارت یې ترتیب کړي، کله چې عبارت یې ترتیب کړل بیا دې یو زده کوونکۍ هغه په دړې باندې حل کړي. که چیری ستونزې درلودل، ښاغلی ښوونکۍ دې عبارت ترتیب کړي. او هغه دې حل کړي. مثلاً داسې دې ووایې د یوې کتابچې بیه ۴ افغانۍ دي د ټولو کتابچو بیه څو

افغانۍ کیږي.

د ریاضي افاده یې داسې ترتیب او حل کیږي: ۲۰ = ۵ × ۴ د ټولو کتابچو بیه (۲۰) افغانۍ کیږي. او بیا دې زده کوونکو ته ووایې اوس تاسو د ٦ افغانیو، او ۳ افغانیو قیمتونو لپاره عبارت یا کیسه ترتیب او حل یې کړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۹۹) مخ ته راوګرزوي. په لومړي وار کې عبارت د زده کوونکو په واسطه ولولئ او پام ورته وکړئ چې زده کوونکئ یې په روان توګه لوستلای شي او که نه؟ بیا دې (۱) ګڼه پوښتنه لومړی ګروپ ته، دویم ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته، دریم ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته او څلورم ګڼه پوښتنه دې څلورم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو عبارتې پوښتنې ولولي او مفهوم ورڅخه واخلي او د هغو له مخې عددې افادې د ضرب په شکل ولیکی او حل یې کړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکی د ریاضي د افادی لپاره عبارت ترتیب کولای او حل کولای شي او که نه؟ له هغو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دی له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د ۲ × ۲ افادې لپاره یو عبارت جوړ وي؟

– څوک د $\begin{array}{r}۳\\ \times ۴\\ \hline\end{array}$ افادې لپاره یو عبارت جوړ وي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي د لاندې هري یوي افادې لپاره عبارت ترتیب او حل یې کړي.

۵ × ۴، $\begin{array}{r}۳\\ \times ٦\\ \hline\end{array}$، $\begin{array}{r}۴\\ \times ۷\\ \hline\end{array}$، ۴ × ۲ ، ۴ × ٦

**ذهنیت:**

د عبارتي پوښتنې په روان لوستلو او د هغه د مفهوم په تشریح کولو سره زده کوونکی په خپل ځان باور پیدا کوي او خوښی کوي.

**اهمیت:**

د یوي عبارتی پوښتنې د مفهوم او مقصد په پوهیدو سره زده کوونکي کولای شي د ریاضي افاده یې ترتیب کړي او د هغه له حل څخه د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي او له دې لاري خپل او د نورو ورځنۍ ستونزي حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۹۹) مخ په وروستۍ برخه کې هغه پوښتنه چې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي ده لومړی دې د هغو لپاره توضیح شي ترڅو د کتاب له هدایت سره سم هر یو، یوه عبارتي پوښتنه ترتیب او د هغه عددې افاده ولیکی او حل یې کړی.

## عنوان: د ضرب ښودنه د شکلونو په واسطه

**اووه څلويښتم لوست، (۱۰۰) مخ**
**وخت: ۴۵ دقيقې**

**هدف:** زده کوونکي بايد د ۲ ژبنی ضرب د شيانو څخه په کار اخستنې سره پوه شي او حافظې ته وسپاري.
**اصطلاح ګانې:** ژبنی ضرب، ښودنه، ضرب.
**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبيا دانې، د جوارو دانې، لرګوټې او نور د چاپيريال مواد.

**۱ – فعاليتونه:**
– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنی دنده دې په غور او دقت سره وکتل شي اشتباه ګانې دې په درې باندې وليکل شي صحيح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پيدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په درې باندې تشريح کړي او بيا دې په ګروپی ډول له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وشي.
له لومړی ګروپ څخه احمد: دې د ۳ × ۲ افادې لپاره يو عبارت جوړ کړي.
له دويم ګروپ څخه فريد: دې د لاندې پوښتنی لپاره د رياضي افاده وليکي او حل دې کړئ: يوه زده کوونکی ۴ کتابچې را ونيولی چې د هري کتابچې بيه ۳ افغانی دې ټوله يې د څو افغانيو کتاپچې رانيولي دې.
_____ = _____ × _____
له دريم ګروپ څخه صابر: دې د ۵ × ۳ افادې لپاره يو عبارت ترتيب کړي.
– ښاغلی ښوونکی دې يو شميرد لوبيا دانې په خپل ميز باندې کېښيږدي او يو زده کوونکی دې را وغواړي هغه ته دې ووايي يوازي يو ګروپ چې ۲ دانې ولري جلاء کړه او يو ځای کېښيږده زده کوونکی دا فعاليت سرته رسوي. بيا له هغه څخه پوښتنه وکړه څو دانې دي هغه وايي ۲ دانې، بيا دې يو دويم زده کوونکی را وغواړي هغه ته دې ووايي ۲ ګروپ چې ۲ دانې ولري جلاء کړه، جلا، جلاء يې کېښيږده او ووایاست چې څو دانې دي؟ دويم زده کوونکی راځی ۲، ۲ دانې لوبياوي په دوو مختلفو ځايونو کې ايږدي او شميري چې ټوله ۴ دانې دي. دريم زده کوونکی دې راوغواړي هغه ته دې هم ووايي ۳ ګروپونه چې هر ګروپ ۲ دانې ولري جلا او په مختلف ځايونو کې کېښيږده هغه هم دا فعاليت سرته رسوي. ۲، ۲ دانې لوبيا په درې مختلف ځايونو کې ايږدي وايي چې ټوله ٦ دانې لوبيا دي.
په همدې ډول فعاليت ته دې ادامه ورکړي په وار سره ۱۰ ګروپونه چې هر ګروپ يې ۲ دانې ولري جوړ کړي. بيا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي په لومړی فعاليت کې څو کتاره، يا څو واری او څو ګروپونه ۲ دانه يې دي هغوی به ووايي يو واري يا يو ګروپ د ۲ دانو دي. بيا دې وپوښتي په دويم فعاليت کې څو کتاره، يا څو واري او يا څو ګروپونه د ۲ دانو دي؟ بيا هم وايي ۲ کتاره يا ۲ واري او يا ۲ ګروپونه د ۲ دانو دي. په همدې برخه کې دې په وار سره دې د ټولو ګروپونو شمير له زده کوونکو څخه وپوښتي.

**اوه څلويښتم لوست**
**د شکلونو څخه په کار اخستو سره د ضرب ښوونه**

هدف: دشيانو په کارولو سره زده کوونکي بايد د۲ ژبنی ضرب زده کړي او حافظې ته وسپاري.

۱ ★★ ۲ — ۱ × ۲ = ۲
۲ ★★ ★★ ۴ — ۲ × ۲ = ۴
۳ ★★ ★★ ★★ ۶ — ۳ × ۲ = ٦
۴ ★★ ★★ ★★ ★★ ۸ — ۴ × ۲ = ۸
۵ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ۱۰ — ۵ × ۲ = ۱۰
۶ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ۱۲ — ٦ × ۲ = ۱۲
۷ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ۱۴ — ۷ × ۲ = ۱۴
۸ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ۱٦ — ۸ × ۲ = ۱٦
۹ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ۱۸ — ۹ × ۲ = ۱۸
۱۰ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ★★ ۲۰ — ۱۰ × ۲ = ۲۰

۱۰۰

په پای کې دې ښاغلی ښوونکی د لسم فعالیت په برخه کې پوښتنه وکړي چې په لسم فعالیت کې، څو کتاره، څو واري یا څو ګروپونه د ۲ دانو دي؟ او په پای کې دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وشي تاسو کولای شئ دا فعالیتونه د ریاضی په افاده کې د ضرب په شکل ولیکئ که چیری چا ځواب ورکړل یا یې ولیکل ښه به وي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې وواېي چې لومړی عدد د ګروپونو یا کتارونو شمیر دئ او دویم عدد شمیر یا د شیانو مقدار په هر ګروپ یا کتار کې ښیېي او داسې لیکي:

۱ × ۲ = ۲

۲ × ۲ = ۴

۳ × ۲ = ٦

...

۱۰ × ۲ = ۲۰

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۰) مخ ته راوګرزوي د ضرب هغه جدول چې د ستورو د شکلونو له مخې ترتیب شوی دئ زده کوونکو ته دې تشریح کړي او زده کوونکي دې په وار سره د ۲ ژبنی ضرب په ټولګی کې ولولي او مفهوم دې وواېي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې ٦ واري ۲ څو کیږي؟

– څوک وایې ۸ واري ۲ څو کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي د ضرب لاندې پوښتنی حل کړي:

۹ × ۲ = ?، ۷ × ۲ = ?، ٦ × ۲ = ?، ۸ × ۲ = ?

**ذهنیت:**

د ۲ د عدد د ژبنی ضرب په زده کولو سره د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راځی او خوښی کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی کولای شي د ۲ د عدد له ژبنی ضرب څخه د ژوند په ورځنی معاملو کې چې د جمعې ډیره آسانه طریقه ده کار واخلي خوښی به وکړي، هغوی به وپوهیږي چې د ۲ عدد څو واري د ۲۰، ۱۸، ۱٦، ۱۴ .... ۲۰ په عددونو کې شامل دئ.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکی د لاندې شکلونو له مخې د ضرب افادې ترتیب کړی:

___ × ___ = ___ ___ × ___ = ___ ___ × ___ = ___

## عنوان: د ۳، ۴ او ۵ د ضرب ښودنه د شکلونو په واسطه

**(۱۰۱، ۱۰۲) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي باید د ۳، ۴ او ۵ ژبنۍ ضرب د شیانو څخه په کار اخستنې سره پوه شي او حافظې ته وسپاري.

**اصطلاح ګانې:** ژبنۍ ضرب، شیان، ښودنه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د جوارو دانې، لرګوټې او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شی کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانیږي په دړی باندې دې ولیکل شي صحیح ځوابونه دې د د اوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړی باندې تشریح کړي بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

احمد: ۲ × ۶ له څو سره مساوي کیږي؟

فرید: ۲ × ۴ زیات دي او که ۲ × ۳؟

صابر: ۲ × ۵ په شکل کې په دړې باندې وښیاست؟

– ښاغلی ښوونکی! لکه عددونه چې په ۲ کې ضرب شول، د عددونو ضرب په ۳، ۴ او ۵ کې هم د موادو څخه په کار اخستنې سره د زده کوونکو په واسطه کار وکړئ. مثلاً یو شمیر لوبیا په میز باندې کښیږده او یو زده کوونکی راوغواړه او هغه ته وواياست له دې لوبیا څخه ۲ واري ۳، ۳ جلاء کړه په مختلف ځایونو کې کښیږه زده کوونکی راځي ۳، ۳ دانې لوبیا په دوو مختلفو ځایونو کې ایږدي. بیا هغه ته وواياست چې لومړی د هغه افاده د جمعې په شکل او بیا د ضرب په شکل یې ولیکی. باید د مخکنۍ معلومات له مخې ولیکي ۲×۳=۳+۳ په همدې ډول نور فعالیتونه دې د لرګوټو او جوارو په واسطه د ۳ د

لکه د۲ ضرب د۳ ضرب هم دشکل له مخې په لاندې توګه په لاس راوړو.




**مشق او تمرین:**

حل شوی مثال په پام کې ونیسی تش ځایونه ډک کړی.

مثال: ۳ × [۲] = ۶

۳ × [ ] = ۹

۳ × [ ] = ۱۲

۳ [ ] ۵ =

[ ] × ۶ = ۱۸

۱۰۱

ضرب کولو لپاره سرته ورسول شي. بیا دې ښاغلی ښوونکی یو شمیر جوار په خپل میز باندې کښیږدي یو زده کوونکی دې راوغواړي هغه ته دې ووایي، له دې جوارو څخه ۳ واري ۴، ۴ د جوارو دانې جلاء کړه، جلا، جلاء یې کښیږده زده کوونکی ۴، ۴ دانې لوبیا په درو مختلفو ځایونو کې ایږدي اوس دې ښاغلی ښونکی یوه زده کوونکی ته ووایي دړې ته دې راشي د هغه د ریاضې افاده لومړی د جمعې په شکل او بیا یې د ضرب په شکل ولیکه هغه به داسې ولیکي:

۴ + ۴ + ۴ = ۴ × ۳ = ۱۲

په همدې ډول نور فعالیتونه دې د ۴ د ژبنی ضرب لپاره سرته ورسوی ترڅو د زده کوونکو په ذهن کې ځای ونیسی.

– په دریم واري دې ښاغلی ښوونکی یو شمیر لرګوټې په خپل میز باندې کښیږدې او یو بل زده کوونکی دې راوغواړی هغه ته دې ووایي له دې لرګوټو څخه ۴ واړې ۵، ۵ لرګوټې جلاء کړه، جلا، جلا یې کښیږده. زده

کوونکی ۵، ۵ داني لرګوټي جلا کوي او په مختلفو ځایونو کې ایږدي. بیا دې یوه زده کوونکي ته ووایې څو واري ۵ داني لرګوټي لیدل کیږي هغه لرګوټو ته ګوري او وایي ۴ واري ۵ داني لرګوټي دي.
په پای کې دې یوه داوطلب زده کوونکي ته اجازه ورکړي چې د هغه د ریاضي افاده لومړی د جمعې په شکل او بیا یې د ضرب په شکل سره ولیکي. زده کوونکی باید داسې ولیکي:

۵ + ۵ + ۵ + ۵ = ۵ × ۴ = ۲۰

په همدې ډول د موادو څخه په کار اخستنی سره زده کوونکی دې نور فعالیتونه د ۵ د ضرب د ښودلو لپاره سرته ورسوي.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۱) مخ ته راوګرزوي د ضرب جدول چې د شکلونو له مخې په کتاب کې ترتیب شوی دئ لومړی دې د جمعې افادې بیا دې د هغو بدلول په ضرب باندې زده کوونکو ته تشریح کړي. او همدارنګه وروسته دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۲) مخ ته راوګرزوي د ۴ او ۵ ژبني ضرب دې زده کوونکو ته تشریح کړي.

| د ۵ ضرب | د ۴ ضرب |
|---|---|
| ۱ × ۵ = ۵ | ۱ × ۴ = ۴ |
| ۲ × ۵ = ۱۰ | ۲ × ۴ = ۸ |
| ۳ × ۵ = ۱۵ | ۳ × ۴ = ۱۲ |
| ۴ × ۵ = ۲۰ | ۴ × ۴ = ۱۶ |
| ۵ × ۵ = ۲۵ | ۵ × ۴ = ۲۰ |
| ۶ × ۵ = ۳۰ | ۶ × ۴ = ۲۴ |
| ۷ × ۵ = ۳۵ | ۷ × ۴ = ۲۸ |
| ۸ × ۵ = ۴۰ | ۸ × ۴ = ۳۲ |
| ۹ × ۵ = ۴۵ | ۹ × ۴ = ۳۶ |
| ۱۰ × ۵ = ۵۰ | ۱۰ × ۴ = ۴۰ |

مشق او تمرین:

له حل شوي مثال څخه په کار اخستو سره لاندې تش ځایونه ډک کړئ.

مثال: ۶ = [۲] × ۳

۹ = [۳] × ۳

۱۲ = [۴] × ۳

[۱۵] = ۵ × ۳

۱۸ = ۶ × [۳]

۱۰۲

**۳- ارزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

- څوک وایي چې ۳ واري ۴ څو کیږي؟
- څوک وایي چې ۴ واري ٦ څو کیږي؟
- څوک وایي چې ۵ واري ۴ څو کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي.

۷ × ۵، ۹ × ۵، ۸ × ۴،
۷ × ۳، ۵ × ۴

**ذهنیت:**

د ۳، ۴ او ۵ د ژبني ضرب په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهنیت په بشپړه توګه بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې ژبني ضرب څخه د ژوند په ورځنی معاملو کې کار اخلی په پلورلو او رانیولو کې له ستونزو پرته کولای شي د شیانو قیمتونه د ژبني ضرب له طریقې څخه پیدا کړي.

**۴- کورنی دنده:**

د مشق او تمرین هغه پوښتنې چې په (۱۰۲) مخ کې ورکړل شوي دي زده کوونکو ته دې د کورنی دندی په توګه ورکړل شي چې د حل شوي مثال په نظر کې نیولو سره تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړي.

# عنوان: د یوه رقمي عدد ضرب کول په دوه رقمي عدد کې

**اته څلویښتم لوست، (۱۰۳) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د یوه رقمي عدد په دوه رقمي عددونو کې ضرب کړي او په عین وخت کې د ضرب اجزاوي او د ضرب حاصل وپیژني.

**اصطلاح ګاني:** یو رقمي، دوه رقمي، ضرب، د ضرب اجزاوي، د ضرب حاصل.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لس ګونو بندلونه، یو دانه یې لرګوټي او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانیږي د دړې په مخ باندې دې ولیکل شي زده کوونکو ته دې اجازه ورکړل شي چې د صحیح ځوابونو د پیدا کولو په برخه کې په آزاده توګه بحث او مذاکره وکړي. کومې پوښتنې چې زده کوونکی یې حل نشي کړای ښاغلی ښوونکی دې د هغو صحیح ځوابونه په دړې باندې تشریح کړي. او بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: یو تن له تاسو څخه دې د ۵ × ۴ افاده په دړې باندې په شکل کې وښیي.

دویم ګروپ: ۵ × ۴ زیات دی او که ۴ × ۵، د حل نتیجې یې پرتله کړی.

دریم ګروپ: ۵ × ۷ له څو سره مساوي کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی یو شمیر لرګوټي چې یو بنډل د لسی او ۴ یو دانه یې ولري په یوه ځای کې. یو بنډل د لسئ او ۴ یو دانه یې په بل ځای کې کښیږده او یو زده کوونکی راوغواړه او هغه ته وواياست دا لرګوټي چې په دوو مختلف ځایونو کې ایښودل شوي دي یو له بل سره یې جمع کړه. زده کوونکی لرګوټي یو له بله سره یو ځای

اته څلویښتم لوست

د یوه رقمي عدد ضربول په دوه رقمي عدد کې

هدف: زده کوونکي یو رقمي عدد په دوه رقمي عدد کې ضرب کړای شي اوپه عین وخت کې د ضرب اجزاوي اود ضرب حاصل وپیژني.

لاندې مثال په نظر کې نیسو په شکل کې لیدل کیږي چې له ۱۳ څخه کتار جوړ شوی دی او په هر کتار کې ۲ خانې تورې شوې دي، چې د جمعې د دوو مساوي اجزاوو په توګه یې لیکو ۲۶ = ۱۳ + ۱۳
یا ۲۶ = ۲ × ۱۳

د ضرب حاصل   د ضرب دوهم جزء   د ضرب لومړي جزء



اوس غواړو پورتنی مثال د یوې ضربي افادې په توګه ولیکو او ضرب یې کړو.

| | |
|---|---|
| یویز لسیز ۱۳ | ← دضرب لومړئ جز |
| × ۲ | ← دضرب دویم جز |

لومړی د۲ عدد په یویزو یعنې ۳ کې ضرب کوو چې ۶ کیږي او هغه د ضرب د حاصل د یویزو په ځای کې لیکو.

۱۳
× ۲
۶

۱۰۳

کوي. بیا دې له هم هغه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي چې اوس ټوله څو لرګوټې شوي دي. هغه لرګوټو ته ګوري او شمیرې چې ۲ بنډله د لسیو او ۸ یو دانه یې دي چې ۲۸ لرګوټې کیږي. یوه بل زده کوونکی ته وواياست چې د هغه د جمعې افاده ولیکه هغه ۲۸ = ۱۴ + ۱۴ لیکي.

– ښاغلی ښوونکی جمع کول د زده کوونکو په یاد راوړئ ورته وواياست تاسو ولیدل چې یویز له یویزو سره او لسیز د لسیزو سره جمع شوي دي او له یوه زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي. چې په دې عملیه د جمعې کې څو واري، څو ګروپونه او یا څو کتاره د ۱۴ دي، هغه به ځواب ورکړي ۲ واري ۱۴ دي ورته وواياست د جمعي له افادې سره د هغه د ضرب افاده ولیکه هغه به ولیکي:

۱۴ + ۱۴ = ۲۸

۱۴ × ۲ = ۲۸

– ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایې چې د ضرب په دې افادې کې ۱۴ د ضرب لومړی جزء، ۲ د ضرب دویم جز او ۲۸ د ضرب حاصل دي د ضرب په دې افاده کې

لومړی د ۲ عدد د یویزو په مرتبه کې ضرب کړئ چې د ضرب حاصل ۸ کیږی. هغه د ضرب د حاصل د یویزو په مرتبه کې ولیکئ بیا د ۲ عدد د لسیزو په مرتبه کې یعنی په (۱) کې ضرب کړئ چې د ضرب حاصل بې ۲ کیږي. چې دا (۲)، دوه نه دي بلکه ۲ لسه دي او د لسیزو په مرتبه کې لیکو او یا په لنډه توګه داسې ضرب کوو:

```
  ۱۴
× ۲
----
  ۲۸
```

ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایاست چې مونږ هغه داسې هم ضرب کولای شو:

```
  ۱۴   ←—  د ضرب لومړی جزء
× ۲    ←—  د ضرب دویم جزء
-----
   ۸   —→  د یویزو د ضرب حاصل
+ ۲۰   —→  د یویزیو او لسیزو د ضرب حاصل
-----
  ۲۸   ←—  د ضرب حاصل
```

په همدې ډول نورې پوښتنې دې د زده کوونکو په واسطه حل شي ترڅو زده کوونکي د ضرب کولو طریقه زده کړي.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۳) مخ ته راوګرزوئ هغه مثال چې په دې مخ کې حل شوی دئ هغه په واضح او ښه توګه نشریح کړئ. بیا د حل شوي مثال په ډول نوري پوښتنې په دړې باندې ورته ورکړئ ترڅو زده کوونکي یې په خپلو کتابچو کې حل کړي.

**۳- آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د یوه رقمې عدد ضرب کول په دوه رقمې عدد کې لومړی کوم دوه عددونه او وروسته کوم دوه عددونه یوه له بله سره ضرب کیږي؟

– څوک وایې که چیرې لومړی د ضرب دویم جز په لسیزو او بیا په یویزو کې ضرب کړو صحیح ده او که غلطه؟

**مهارت:** زده کوونکی وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۱ | ۱۲ | ۱۴ | ۱۱ |
| × ۳ | × ۲ | × ۲ | × ۵ |

**ذهنیت:** د داسې ضرب په زده کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی کوي.

**ارزښت:** زده کوونکي د دې ډول ضرب کولو څخه د ژوند په ورځنی معاملو کې کار اخلي د هغو جنسونو او شیانو قیمتونه چې له لسو څخه زیات وي هغوی د ضرب د دې طریقي په واسطه یې په آساني سره پیدا کولای شي.

**۴- کورنی دنده:**

زده کوونکی دې لاندې پوښتنې په کور کې حل کړي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲۲ | ۲۱ | ۱۱ | ۲۳ |
| × ۳ | × ۴ | × ۵ | × ۳ |

## عنوان: د یوه رقمي عدد ضرب کول په دوه رقمي عدد کې

**(۱۰۴، ۱۰۵) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**هدف:** زده کوونکی وکړای شي یو رقمي عدد په دوه رقمي عدد کې ضرب کړي او په عین وخت کې د ضرب اجزاوي او د ضرب حاصل وپیژني.

**اصطلاح ګانې:** یو رقمي، دوه رقمي، د ضرب لومړۍ جزء، د ضرب دویم جزء، او د ضرب حاصل.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لسیو بنډلونه، یو دانه یې لرګوټي او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کوربنې دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. کومې اشتباه ګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانیږي په درې باندې دې ولیکل شي زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې د صحیح ځوابونو د پیدا کولو په برخه کې په آزاده توګه بحث او مذاکره وکړي، هر هغه پوښتنه چې زده کوونکی یې حل کولای نشي، ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي بیا دې لاندې پوښتنې وکړي:

له لومړي ګروپ څخه فرید، ۱۳ + ۱۳ د ضرب د عملیې په شکل ولیکه او حل یې کړه؟

له دویم ګروپ څخه احمد: د ضرب په یوه افاده کې د ضرب لومړی جزء د ضرب دویم جزء او د ضرب حاصل وښیاست؟

له دریم ګروپ څخه محمود: ۲ × ۱۲ د جمعې د عملیې په شکل یې وښیاست؟

– ښاغلی ښوونکی دې د لرګوټو یو بنډل د لسیو او ۴ یو دانه یې په یوه ځای کې او یو بنډل د لسیو او ۴ یو دانه یې په بل ځای کې او همدارنګه یو بنډل د لسیو او ۴ یو دانه دي په یوه دریم ځای کې کښیږدي ترڅو ټول زده کوونکي یې ولیدلای شي بیا دې یو دریم زده کوونکی را وغواړي دا لرګوټي چې په دریو مختلفو ځایونو کې ایښودل شوي دي سره یو ځای کړي. هغه راټي لرګوټي یو ځای کوي. بیا دې له یوه بل زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي چې اوس ټوله څو لرګوټي شول او هم

وروسته د۲ عدد په لسیزو یعنې ۱ کې ضرب کوو داچې ۱ د لسیزو په ځای کې شتوالی لري یو لسی دی د۲ سره د هغه د ضرب حاصـــل د۲ عدد نه دی خو ۲ لسیه یعنې ۲۰ دي.

۱۳
× ۲
―――
۶
۲۰

چې د دې دواړو له جمع کولو وروسته د ضرب حاصل یعنې د یـــویزو او لسیزو ځایونه داسې په لاس راځي.

۱۳
× ۲
―――
۶
+۲۰
―――
۲۶ دضرب حاصل

مثال:

غواړو د۱۲ عدد په ۴ کې ضرب کړو.

| یویز | لسیز |
|---|---|
| ۲ | ۱ |

۱۲
× ۴
―――

لکه مخکنی مثال ۴ په یویزو کې ضرب کوو چې ۸ حاصلیږي یعنې:

۱۲
× ۴
―――
۸

اوس د ۴ عدد په لسیزوکې چې په حقیقت کې (۱) لسي دی ضرب کوو چې د هغه د ضرب حاصل ۴ کیږي په دې باندې باید پوه شو چې۴، څلور یویز نـــه دي خو ۴ لسیه دي او هغه د لسیزو په ځای کې لیکو یعنې:

۱۲
× ۴
―――
۴۸

۱۰۴

وواياست چې څو لس ګونې او څو یو دانه یې دي، زده کوونکی لومړی شمیرى او بیا وایي ۴۲ دانې لرګوټي دي. ۳ بنډله لس ګونې او ۱۲ یو دانه یې لیدل کیږي. بیا دې پوښتنه وکړي چې ۱۲ دانې د یویزو په توګه د یویزو په مرتبه کې ولیکو او که څرنګه؟ ښایي چې زده کوونکی ووایې چې د ۱۲ یو دانه یې څخه یو بنډل د لسو جوړ‌ؤو او هغه د لس ګونو له بنډلونو سره یو ځای کوو. او ۲ دانې یې د یویزو په مرتبه کې لیکو. که چیرې زده کوونکی یې ونکړاي شي، چې ووایې ښاغلی ښوونکی دې په پورته ډول ورته تشریح کړي بیا دې صابر ته ووایې چې راشه د هغو د جمعې عملیه ولیکه هغه به ولیکي:

$$۱۴ + ۱۴ + ۱۴ = ?$$

او یا داسې لیکي:

① 
۱۴
۱۴
+ ۱۴
―――
۴۲

– ښاغلی ښوونکی دې ورته ووايي چې اوس يې د ضرب په شکل ليکو. ۳ × ۱۴ يا ۱۴ کله چې وغواړو چې ۳ په ۴ کې ضرب کړو.

× ۳

نو داسي ضرب کوو لومړئ ۳ د يويزو په مرتبه کې يعنی په ۴ کې ضرب کوو چې د ضرب حاصل يې ۱۲ کيږي د ۱۲ د يويزو رقم يعنی ۲ د ضرب د حاصل د يويزو په مرتبه کې ليکو د هغه د لسيزو رقم چې (۱) لسئ دئ د حاصل په توګه يې د ۱۴ د لسيزو د مرتبې د پاسه يې ليکو کوم وخت چې ۳ د لسيزو له مرتبې يعنی د (۱) سره ضرب کړو د ليکل شوی حاصل سره يې جمع کوو چې ۴ حاصل کيږي د ۴ عدد د ضرب د حاصل د لسيزو په مرتبه کې ليکو. په حقيقت کې د هغه د ضرب حاصل ۴۲ کيږي. ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي کله چې يو عدد په يويزو کې ضرب کړو او د ضرب حاصل يې د ۹ څخه زيات شي د هغه لسيز تل د لسيزو د ضرب له حاصل سره جمع کيږي لکه:

(۱)
۱ ۲
× ٦
۷۲
(۱) (۲)

حاصل شوی عدد ۴۸ دی چې د ۸ يويزو او ۴ لسيزو څخه عبارت دی.

مثال: غواړو د ۱۳ عدد د ۵ په عدد کې ضرب کړو.

| يويز | لسيز |
|---|---|
| ۳ | ۱ |

۱۳
× ۵

لومړی د ۵ عدد په يويزو يعنې (۳) کې ضرب کوو چې د هغو د ضرب حاصل ۱۵ کيږي د۱۵ د يويزو رقم يعنې ۵ د ضرب د حاصل د يويزو په ځای کې ليکو او د هغه د لسيزو رقم چې (۱) لسی دی د حاصل په توګه د ۱۳ د لسيزو د مرتبې پورته يې ليکو.

کوم وخت چې ۵ د لسيزو په مرتبه يعنې (۱) کې ضرب کړو د حاصل شوي ياددابنت سره يې جمع کوو چې د٦ عدد په لاس راځي او د ٦ عدد د ضرب د حاصل د لسيزو په مرتبه کې ليکو چې ٦۵ حاصل کيږي.

(۱)
۱۳
× ۵ ← ۱۵
٦۵

**مشق او تمرين:**

د لاندې پوښتنو د ضرب حاصل په لاس راوړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| (۲) ۲۵ × ۴ = ۱۰۰ | (۲) ۱۴ × ۵ = ۷۰ | (۲) ۱۷ × ۳ = ۵۱ | (۳) ۱۶ × ۵ = ۸۰ | (۳) ۱۸ × ۴ = ۷۲ | ۲۱ × ۲ = ۴۲ |

۱۰۵

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۴) مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې په دې مخ کې حل شوئ دئ زده کوونکو ته دې تشريح کړي وروسته د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۵) مخ ته راوګرزوئ. هغه مثال چې په (۱۰۵) مخ کې حل شوی دئ او په هغه کې حاصل نيول شوي ده هغه هم زده کوونکو ته تشريح کړه، هغه پوښتنې چې د مشق او تمرين په شکل ورکړل شوی دي په ټولګی کې دې د زده کوونکو په واسطه حل شي او د کار د جريان څارنه وکړئ.

**۳– آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي که چيری يويز له يويزو سره ضرب شي او د ضرب حاصل يې يو دوه رقمي عدد شي لسيز يې چيری ليکل کيږي؟

– څوک وايي که چيری يويز له يويزو سره ضرب شي او حاصل ونه لري په کومه مرتبه کې او همدارنګه د يويزو او لسيزو د ضرب حاصل په کومه مرتبه کې ليکل کيږي؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱٦ | ۱۵ | ۱۴ | ۱۲ |
| × ۲ | × ۳ | × ۵ | × ٦ |

**ذهنيت:** د ضرب د داسې پوښتنو په حل کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوی.

**ارزښت:** زده کوونکي له داسي عمليو څخه د ژوند په ورځنی معاملو کې کار اخلي. په پلورلو او رانيولو کې خپل او د نورو ستونزی حل کوي

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل او له ځانو سره دې راوړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱٦ | ۱۷ | ۲۴ | ۲٦ |
| × ۴ | × ۴ | × ۵ | × ۳ |

# عنوان: د ضرب په عملیه کې د (۱) د عدد خاصیت

**نه څلویښتم لوست، (۱۰۶) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي (۱) چې په هر عدد کې ضرب شي د ضرب حاصل یې هم هغه عدد دئ.
**اصطلاح ګانې:** د ضرب عملیه، خاصیت، د ضرب حاصل.
**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټې او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، کومې اشتباه ګانې چې د زده کوونکو په واسطه ویل کیږي په دړې باندې دې ولیکل شي. صحیح ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړې باندې تشریح کړي. وروسته دې لاندې پوښتنې وکړي:
لومړی ګروپ: د ۱٦ + ۱٦ + ۱٦ + ۱٦ جمعې افاده د ضرب په افادې باندې واړه وئ او حل یې کړئ.
دویم ګروپ: د ۵ × ۱۵ د ضرب افاده د جمعې د افادې په شکل ولیکئ او حل یې کړئ.
دریم ګروپ: د ۱۷ + ۱۷ + ۱۷ + ۱۷ + ۱۷، په افادې کې څو ګروپونه د ۱۷ شته دي او څو کیږي؟
– ښاغلی ښوونکی دې د ټولګې مخې ته یو زده کوونکی را وغواړي د هغه په ښئ او کیڼ لاسونو کې دې یو، یو لرګوټی ورکړي ترڅو زده کوونکو ته یې وښیي. او له زده کوونکو څخه دې وپوښتي، ستاسو د ټولګیوال په لاسونو کې څو دانې لرګوټې دي، هغوی ورته ګوري او وایې یو، یو دانه، بیا دې همدې زده کوونکی ته وواېي اوس دواړه لرګوټې سره یو ځای کړه او ووایه چې څو کیږي. هغه لرګوټې سره جمع کوي ځواب وایې ۲ لرګوټې دي. او ۲ لوستل کیږي. ښاغلی ښوونکی دې پوښتنه وکړي څو دانو لرګوټو ۲ جوړ کړي دي؟ هغه به بیا هم ځواب وواېي ۲ یو دانه یې، ۲ جوړ کړل. او یو بل زده کوونکی ته دې وواېي چې دا فعالیت په دړې باندې

ولیکه هغه داسې لیکي: ۲ = ۱ + ۱
– ښاغلی ښوونکی دې له همدې زده کوونکی څخه بیا پوښتنه وکړي د ۲ په عدد کې څو واري یو ده؟ هغه به وواېي دوه واري یو، بیا دې زده کوونکی ته وواېي هغه د ضرب په شکل ولیکه هغه داسې لیکي:

۲ × ۱ = ۲

په همدې ډول ۴ زده کوونکي دې د ټولګې مخې ته را وغواړي، او هر یوه د هغو ته دې یو، یو لرګوټی ورکړي. کله چې لرګوټې ورکړل شول بیا دې یو پنځم زده کوونکی راوغواړي. او ۴ واړه زده کوونکو ته دې وواېي تاسو ټوله خپل لرګوټې پنځم زده کوونکی ته ورکړئ. کله چې لرګوټې یې پنځم زده کوونکی ته ورکړل. بیا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې اوس له پنځم زده کوونکي سره څو دانې لرګوټې دي؟ هغوی به ځواب ورکړي ۴ دانې لرګوټې دي. بیا دې وپوښتي، څو یو دانه یې سره یو ځای شوي دي؟ زده کوونکي وایې ۴ یو دانه

---

نه څلویښتم لوست

د ضرب په عملیه کې د(۱) د عدد خاصیت

هدف: زده کوونکي پوه شي (۱) چې په هر عدد کې ضرب شي د ضرب حاصل یې هم هغه عدد دی.

په تیر لوست کې مو ولوستل چې:

۲ = ۱ × ۲ یا ۲ = ۱ + ۱
۳ = ۱ × ۳ یا ۳ = ۱ + ۱ + ۱
۴ = ۱ × ۴ یا ۴ = ۱ + ۱ + ۱ + ۱
۵ = ۱ × ۵ یا ۵ = ۱ + ۱ + ۱ + ۱ +۱

دا لوست مونږ په دې پوهوي هر عدد چې په (۱) کې ضرب شي د ضرب حاصل یې په خپله هم هغه عدد کیږي یعنې:

٦ = ۱ × ٦
۷ = ۱ × ۷
۸ = ۱ × ۸
۲۵ = ۱ × ۲۵ او نور.

**کورنۍ دنده:**

۱۲ = □ × ۱۲ ، ۵ = ۱ × □
□ = ۱ × ۳۵ ، □ = ۱ × ۱۷

۱۰۶

يې سره يوځای شول چې ټوله ۴ کيږي.

– ښاغلی ښوونکی دې يو بل زده کوونکی راوغواړي او هغه ته دې ووايي چې دا فعاليت د جمعې د افادې په شکل وليکه هغه داسې ليکي: ۴ = ۱ + ۱ + ۱ + ۱ له همدې زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي په دې عمليه کې څو وارې يو ليدل کيږی؟ هغه به ووايي ۴ وارې يو لـــيدل کيږي بيا دې ورته وويل شي ترڅو د جمعې افاده د ضرب د افادې په شکل وليکي ۴ = ۱ × ۴

په همدې ډول نور فعاليتونه دې د زده کوونکو په واسطه سرته ورسول شي. ترڅو هغوی پوه شي هر عدد چې په (۱) کې ضرب شي د ضرب حاصل يې په خپله هم هغه عدد کيږي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰٦) مخ ته راوګرزوي، هغه مثالونه چې په دې مخ کې حل شوي دي، يو، يو دې د زده کوونکو يا په خپله د ښوونکی په واسطه تشريح شي او هم د (۱) د عدد خاصيت دې د ضرب په عمليه کې دمختلفو مثالونو په واسطه د موادو څخه په کار اخستنې سره په زده کوونکو باندې مشق او تمرين وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغه سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي چې ? = ۱ × ۷ کيږي او څو وارې يو په هغه کې شامل دئ؟

– څوک وايي ? = ۱ × ۱۱ کيږي څو وارې يو دئ؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي:

? = ۱ × ۱۴، ? = ۱ × ۲۱، ? = ۱ × ۲۴، ? = ۱ × ۳۸

**ذهنيت:**

د ضرب په عمليه کې د (۱) د خاصيت په پوهيدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او رضايت ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې خاصيت څخه په کار اخستنې سره کولای شي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي د دې لپاره چې يو څو وارې جمع کړي کولای شي د هغو شمير په يوه کې ضرب کړي او صحيح ځواب پيدا کړي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکي په لاندې پوښتنو کې تش ځايونه په مناسب عددونو سره ډک کړي.

□ = ۱ × ۲۵، ۱۴ = ۱ × □، ۱۷ = □ × ۱۷

□ = ۱ × ۳۸، ۲٦ = ۱ × □، ۲۱ = □ × ۲۱

# عنوان: د ضرب په عمليه کې د صفر (۰) خاصيت

**پنځوسم لوست، (۱۰۷) مخ**
**وخت: ۴۵ دقيقې**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي هر عدد چې په صفر کې ضرب شي د ضرب حاصل يې صفر کيږي
**اصطلاح ګانې:** خاصيت، صفر، د ضرب عمليه.
**د لوست مرستندوی مواد:** تش پلاستيکی کڅوړي.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. کومې اشتباه ګانې چې د زده کوونکو په واسطه اعلانيږي په ګروپي، او جلاء شکل دې په دړې باندې فهرست شي. صحيح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پيدا شي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په دړې باندې تشريح کړي وروسته دې په ګروپي شکل يا انفرادې شکل له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.:

له لومړی ګروپ څخه صابر: د ۱ × ۷ په عمليه کې يو څو واری ښيي؟

له دويم ګروپ څخه فريد: د ۱ × ۸ په عمليه کې اته څو واري ښيي؟

له دريم ګروپ څخه محمود: که چيری يو عدد په يوه کې ضرب شي دهغه د ضرب حاصل مساوي له څو سره کيږي؟

– ښاغلی ښوونکی دې دوه پلاستکی کڅوړي چې په هغو کې څشی نه وي يعنی صفر وی په څپل ميز باندې کښيږدي يو زده کوونکی دې راوغواړی او هغه ته دې ووايي هغه شيان چې په دې پلاستيکی کڅوړو کې دي سره يو ځای کړه. هغه کڅوړې اخلي او ګوري چې په کڅوړو کې هيڅ شئ شتوالی نه لري وبه وايي څشئ نشته، نو څشئ سره يو ځای کړم. ښاغلی ښوونکی دې بيا وپوښتي کوم وخت چې په کڅوړه کې څشئ نه وي هغه ته څه وايو. که چيری زده کوونکی وويلای شي صفر وايو ښه به وي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې ووايي کله چې په کڅوړه کې څشئ نه وي صفر ورته وايو. په حقيقت کې تاسو دوه صفرونه سره جمع يا يو ځای کړي دي.

**پنځوسم لوست**

**د ضرب په عمليه کې د (۰) صفر خاصيت**

هدف: زده کوونکي پوه شي هر عدد چې په صفر کې ضرب شي د ضرب حاصل يې صفر دی.

مونږ پوهيږو چې په يوازې توګه صفر په معنا د هيڅ دی، په هره اندازه چې د صفرونو شمير زيات شي بيا هم هيڅ دی يعنې:

۰ = ۱ × ۰ = ۰

۰ + ۰ = ۰ يا ۲ × ۰ = ۰

۰ + ۰ + ۰ = ۰ يا ۳ × ۰ = ۰

۰ + ۰ + ۰ + ۰ = ۰ يا ۴ × ۰ = ۰

۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ = ۰ يا ۵ × ۰ = ۰

په همدې ډول:

٦ × ۰ = ۰

۷ × ۰ = ۰

۸ × ۰ = ۰

۹ × ۰ = ۰

د پورتني مثال له مخې ويلای شو هر عدد چې په صفر کې ضرب شـــي د هغه د ضرب حاصل صفر دی.

**مشق اوتمرين:**

۱ – د جمعې افادې په ضرب باندې بدلې کړئ.

۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ = ٦ × ۰

۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ +۰ = ۷ × ۰

۲ – دا افادې په جمع باندې بدلې کړئ.

۹ × ۰ = ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ +۰ + ۰ +۰

۱۱ ×۰ = + ۰ +۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ +۰ + ۰ +۰

۱۰۷

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکی ته ووايي. دوه صفر يو له بله سره جمع کړه د هغو د جمعې حاصل په لاس راوړه ښايي چې زده کوونکی وکړائ شي، او که چيري ونشي کړائ ښاغلی ښوونکی دې عمليه داسې سرته ورسوي:

۰ + ۰ = ۰

– ښاغلی ښوونکی دې له يوه بل زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي. صفر څو وارې يو له بله سره جمع شوی دي؟ هغه صفرونه وينی وايي دوه واري يو له بله سره جمع شوي دي، د جمعې حاصل يې څو کيږي؟ بيا هم ځواب وايي د جمعې حاصل يې صفر کيږي، هغه ته دې ووايي د ضرب په شکل يې څه ډول ليکلای شو. هغه به وليکي: ۰ = ۰ × ۲

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې دري پلاستيکی کڅوړي چې په هغو کې هيڅ شئ نه وي يعنی صفر وي په څپل ميز باني کښيږدي او يو زده کوونکی دې راوغواړي هغه ته دې ووايي هغه شيان چې په پلاستيکی کڅوړو کې دي يو له بله سره يو ځای کړه. هغه کڅوړي اخلي، ګوری

بیا وایې په کڅوړو کې هیڅ شئ نشته، نو څشئ سره یو ځای کړم؟
بیا دې پوښتنه وکړي تاسو مخ کې هم ولیدل کله چې شئ نه وي هغه ته مو څه وویل. ښایي چې زده کوونکی ووایې صفر مو ورته وویل. کله چې صفر مو ورته وویل اوس دري صفرونه جمع کړئ د جمعې حاصل پیدا کړئ او وروسته ۳ په صفر کې ضرب کړئ. او د ضرب حاصل پیدا کړئ. ښایي چې زده کوونکي داسې کار وکړي: ۰ = ۰ × ۳، ۰ = ۰ + ۰ + ۰
په همدې ډول څلور پلاستیکی کڅوړي، پنځه پلاستیکی کڅوړي ... زده کوونکو ته دې ورکړل شي ترڅو هغه لومړی د جمعې له طریقی وروسته د ضرب له طریقی څخه د ضرب په عملیه کې د صفر په خاصیت باندې پوه شي.

**۲- مشق او تمرین:**

- ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۷) مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې د زده کوونکو د لارښووني لپاره په همدې مخ کې کار شوئ ده هغه دې زده کوونکو ته تشریح کړي. ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایې چې صفر په یوازي توګه د هیڅ په معنیٰ ده. هر څومره چې زیات صفرونه یو له بله سره جمع کړو بیا هم هیڅ ده. او مونږ دې نتیجې ته رسیږو هر عدد چې په صفر کې ضرب شي د ضرب حاصل یې صفر کیږي.
- ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ګروپونو وویشي لومړی ګڼه پوښتنه دې لومړی ګروپ ته او دویم ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته ورکړي ترڅو د هدایت سره سم په ټولګی کې کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت وکړي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي. چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې که چیری صفر ۷ واري جمع کړو د جمعې حاصل یې څو کیږي؟
- څوک وایې ? = ۰ × ۷ کیږي؟ او څو واري صفر ده؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي لاندې پوښتنې جمع او تش ځایونه ډک کړي.

۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ = ?

_____ × _____ = _____

۰ + ۰ + ۰ + ۰ + ۰ = ?

_____ × _____ = _____

**ذهنیت:**

د ضرب په عملیې کې د صفر د خاصیت په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د دې عملیې په پوهیدو سره زده کوونکي کولای شي د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار واخلي او د ټل لپاره په ریاضې کې د صفر له دې خاصیت څخه ګټه پورته کوي. خپل او د نورو ستونزي حل کوي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل او له ځانو سره راوړي.

۴۵ × ۰ = ?، ۳۸ × ۰ = ?، ۱۵ × ۰ = ?

۱۲ × ۰ = ?، ۶۷ × ۰ = ?

## عنوان: د ګروپونو جوړول

**یو پنځوسم لوست، (۱۰۸) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** دا لوست زده کوونکي د ویش (تقسیم) د عملیې لپاره چمتو کوي.

**اصطلاح ګانې:** ګروپونه، افادې، د تقسیم عملیه.

**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د لوبیا دانې، د جوارو دانې او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي. د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. کومې اشتباه ګانې چې د هغو په واسطه ویل کیږي د درې په مخ دې ولیکل شي صحیح ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

فرید: صفر په یوازې توګه په څه معنیٰ ده؟

احمد: که چیرې صفر په یوه عدد کې ضرب شي د هغه د ضرب حاصل څو کیږي؟

محمود: که چیرې د صفرونو شمیر زیات شي کوم مقدار راښیي؟

– ښاغلی ښوونکی د ۱۶ دانو په شمیر لوبیا په خپل میز باندې کښیږده او یو زده کوونکی را وغواړه او هغه ته ووایاست له دې لوبیا څخه داسې مساوي ګروپونه جوړ کړه چې په هر ګروپ کې ۵ دانې وي. او ووایاست چې څو ګروپونه کیږي او څو باقې پاتې کیږي؟ زده کوونکۍ راځي له هغه څخه درې مساوي ګروپونه داسې جوړوي چې په هر ګروپ کې ۵ دانې وي او لیدل کیږي چې یوه دانه پاتې ده.

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې ۱۸ دانې جوار په خپل میز باندې کښیږدي او یو بل زده کوونکی دې راوغواړي هغه ته دې ووایي د جوارو له دانو څخه داسې مساوي ګروپونه جوړ کړه چې په هر ګروپ کې ۴ دانې وي او ووایاست چې څو ګروپونه کیږي او څومره پاتې کیږي؟

یو پنځوسم لوست

د ګروپونو جوړول

هدف: دا لوست زده کوونکي د ویش د عملیې دپاره چمتو کوي.




په جوړه یي توګه کار وکړئ هره جوړه دې ۲۰ کوچنۍ ډبـــرې استعمال کړي، عددونه ولیکئ.

| د کوچنیو ډبرو پاتې | مساوي ګروپونه | عملیه | |
|---|---|---|---|
| ۰ | ۵ | د ۴ ګروپونو جوړول | ۱ |
| ۰ | ۴ | د ۵ ګروپونو جوړول | ۲ |
| ۰ | ۱۰ | د ۲ ګروپونو جوړول | ۳ |
| ۴ | ۲ | د ۸ ګروپونو جوړول | ۴ |
| ۲ | ٦ | د ۳ ګروپونو جوړول | ۵ |
| ۲ | ۳ | د ٦ ګروپونو جوړول | ٦ |
| ۸ | ۱ | د ۱۲ ګروپونو جوړول | ۷ |

۱۰۸

زده کوونکی په ترتیب سره د ۴ دانه ئیزو ګروپونه جوړه وي او ګوري چې ۴ ګروپونه د ۴ دانه ئیزو جوړ شوي دي او ۲ دانې پاتې دي.

– ښاغلی ښوونکی دې یو بل زده کوونکۍ را وغواړي او هغه ته دې ووایي له دې ۱۸ دانو جوارو څخه داسې مساوي ګروپونه جوړ کړه چې په هر ګروپ کې ٦ دانې وي، څو ګروپونه کیږي او څومره باقي پاتې کیږي؟ زده کوونکۍ په ترتیب سره له ۱۸ دانو جوارو څخه ٦ دانه ئیزه ګروپونه جوړوي او ګوري چې ۳ مساوي ګروپونه چې په هر ګروپ کې ٦ دانې دي جوړ شوي دي او هیڅ باقي پاتې نه دي.

وروسته دې ښاغلی ښوونکی یو دریم زده کوونکی را وغواړي هغه ته دې ووایي له دې ۱۸ دانو جوارو څخه داسې مساوي ګروپونه جوړ کړه چې په هر ګروپ کې ۵ دانې وي او ووایه چې څو ګروپه کیږي او څو دانې باقې پاتې کیږي. زده کوونکۍ په ترتیب سره له ۱۸ دانو جوارو څخه ۵ دانه ئیز ګروپونه جوړه وي او ګوري چې ۳

مساوي ګروپونه چې په هر ګروپ کې ۵ دانې دي جوړ شوي دي او ۳ دانې پاتې دي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ولیدل او فعالیتونه یې سرته ورسول څو دانه ئیزه ګروپونه چې جوړ کړل هغه دانې چې د ګروپونو له اندازې څخه لږ وي او ټولو ګروپونو ته نه رسیږي د پاتې په نامه یادیږي زده کوونکي باید د شیانو له یوې مجموعې څخه مساوي ګروپونه جوړ کړي. ښایې چې ټوله ګروپونه یو له بله سره مساوي نه وي. زده کوونکي باید له خپل ځانو سره وړې ډبرې، د لوبیا دانې، د جوارو دانې ولرې ترڅو په فعالیتونو کې په ګډه سره کار وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۸) مخ ته راوګرزوي هغه مثال چې په عملي توګه کار شوئ ده د لوست د موادو څخه په کار اخستنې سره دې په عملي شکل تشریح کړي، مساوي ګروپونه، څو ګروپونه او پاتې شوي دې هغو ته تشریح کړي، بیا دې هغه جدول چې په همدې مخ کې زده کوونکو ته ورکړل شوی ده هر ګروپ دې په جلاء، جلاء توګه د لوست د موادو څخه په کار اخستنې سره کار وکړي مساوي ګروپونه او پاتې دې په جدول کې وښیې.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې له ۷ دانو وړو ډبرو څخه څو مساوي ۳ دانه ئیز ګروپونه جوړیږي او څو باقي پاتې کیږي؟

– څوک وایې چې له ۵ دانو لوبیا څخه څو مساوي ۲ دانه یې ګروپونه جوړیږي او څو باقی پاتې کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي له دې موادو څخه مساوي ګروپونه جوړ کړي او پاتې شوی وښیې.

– له ۱۹ دانو وړو ډبرو څخه ۴ دانه یې مساوی ګروپونه جوړ کړئ او پاتې یې وواياست؟

– له ۱۹ دانو لوبیا څخه ٦ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ کړئ او پاتې یې وواياست؟

– له ۱۵ دانو لوبیا څخه ۵ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ کړئ او پاتې یې وواياست؟

– له ۱۵ دانو لوبیا څخه ۴ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ کړئ او پاتې یې وواياست؟

**ذهنیت:**

د مساوي ګروپونو په جوړولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون کوي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي له دې پوهې او مساوي ګروپونو په جوړولو سره کولای شي له هغه څخه په ورځنۍ ژوند کې کار واخلي هغوی شیان او جنسونه په ګروپي شکل سره ترتیب کوي، په پلورلو او رانیولو کې قیمتونه په ګروپي یا درجنۍ شکل سره ټاکي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل کړي او له ځانو سره راوړي.

– له ۱۹ دانو لوبیا څخه دې ۴ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ کړي. او پاتې دې ولیکی؟

– له ۲۳ دانو جوارو څخه دې ۷ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ کړي او پاتې دې وښیې؟

– له ۲۷ دانو جوارو څخه دې د ۹ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ کړي او پاتې دې وښیې؟

# عنوان: د ګروپونو جوړول

**(۱۰۹) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** دا لوست زده کوونکی د ویش (تقسیم) د عملیې لپاره چمتو کوي.
**اصطلاح ګانې:** ګروپونه، مساوي، پاتې (باقي).
**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د جوارو دانې، وړې ډبرې او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**
– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په ځیر سره ولیدل شي هغه اشتباګانې چې زده کوونکو کړې دې په دړې باندې دې ولیکل شي زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې د اشتباګانو په برخه کې په آزاده توګه بحث او خبرې وکړي، چې صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړې باندې تشریح کړي. وروسته دې له زده کوونکو څخه په ګروپي ډول یا انفرادي ډول لاندې پوښتنې وشي:
له لومړي ګروپ څخه احمد: مساوي ګروپونه کوم ګروپونو ته ویل کیږي؟
له دویم ګروپ څخه فرید: نامساوي ګروپونه کوم ګروپونو ته ویل کیږي؟
له دریم ګروپ څخه محمود: په مساوي او نامساوي ګروپونو کې شمیر یا اندازي یو مقدار وي او که نه؟
– ښاغلی ښوونکی دې د ۲۶ دانو په شمیر وړې ډبرې په خپل میز باندې کښېږدي او یو زده کوونکی دې راوغواړي هغه ته دې ووایي له دې وړو ډبرو څخه ۵ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ کړه. ورته ووایاست چې څو مساوي ګروپونه جوړیږي، او څو دانې پاتې کیږي، زده کوونکی راځي، پنځه، پنځه وړې ډبرې جلاء کوي او په پنځو مختلف ځایونو کې ایږدي او یوه دانه یې په لاس کې پاتې کیږي او وایي پنځه ګروپونه چې په هر ګروپ کې پنځه دانې دې جوړ شول او یوه دانه پاتې ده.

وپې لیکي څو ګروپونه کیږي او څوپاتی کې کیږي؟
مثال:
۱۱ ګلان
دهر ۵ ګلانو په شاوخوا دایره
۲ ګروپونه
۱ پاتې

۱
۹ توپ .
دهر ۳ توپونو په شاوخوا دایره وک
۳ توپونه
۰ پاتې

۲
۱۷ خزندې .
دهر۴خزندو په شاوخوا دایره وکاږي.
۴ ګروپونه
۱ پاتې

۳
۲۶ پاڼې .
دهر۶ پاڼو په شاوخوا دایره وکاږئ.
۴ ګروپونه
۲ پاتې

**کورنۍ دنده:** لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړي او له ځان سره یې راوړئ.

۱– ۱۷۴ + ۳۴۸ = ۵۲۲ ، ۶ × ۲ = ۱۲ ، ۳۲ + ۲۹ = ۶۱ ، ۵۶۷ − ۲۱ = ۵۴۶ ، ۲۸ − ۹ = ۱۹
۲– ۷۱۲ − ۲۲۷ = ۴۸۵ ، ۵ × ۲ = ۱۰ ، ۷۲ − ۱۷ = ۵۵ ، ۳۶ + ۱۸ = ۵۴ ، ۴ × ۳ = ۱۲

۱۰۹

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې یو بل زده کوونکی را وغواړي او هغه ته دې ووایي چې د ۳۶ وړو ډبرو څخه داسې مساوی ګروپونه جوړ کړه چې په هر ګروپ کې ۶ دانې وي، او هم ووایاست چې څو ګروپونه جوړیږي او څو پاتې کیږی زده کوونکی راځي په ترتیب ۶، ۶ دانې جلاء کوي او په مختلف ځایونو کې ایږدي. هغه متوجه کیږي، ۶ ګروپونه چې په هر ګروپ کې ۶ دانې دي او هیڅ یوه دانه پاتې نه ده، او خپل ټولګیوالو ته د ګروپونو شمیر او پاتې ښیې.
– ښاغلی ښوونکی دې بیا یوه بل زده کوونکی ته ووایي راشه د همدې ۳۶ دانو وړو ډبرو څخه داسې ګروپونه جوړ کړه چې په هر ګروپ کې ۵ دانې وي او هم ووایاست چې څو مساوی ګروپونه جوړیږي او څو دانې پاتې کیږي. زده کوونکی دا فعالیت سرته رسوي ۵، ۵ دانې جلاء کوي ګوري ۷ ګروپونه چې په هر ګروپ کې ۵ دانې دې جوړ شول او یوه دانه پاتې ده. زده کوونکو ته یې په عملې توګه ښیې.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو باندې وویشی و هر ګروپ ته دي د ۲۵ دانو په شمیر لوبیا، یا وړی ډبري، او یا د جوارو دانې ورکړي او هغو ته دې هدایت ورکړي، لومړئ داسې مساوي ګروپونه چې په هر ګروپ کې ۴ دانې او بیا داسې مساوي ګروپونه چې په هر ګروپ کې ٦ دانې وي جوړ کړي او په دواړو حالتونو کې پاتې یې وښیاست او ولیکي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۹) مخ ته راوګرزوي ۸ ګڼه پوښتنه چې د مثال په توګه ده ښاغلی ښوونکی دې تشریح کړي بیا دې (۹) ګڼه پوښتنه لومړی ګروپ ته، (۱۰) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او همدارنګه (۱۱) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړي ترڅو د هدایت سره سم د شکلونو او تصویرونو له مخې په خپلو کتابچو کې حل کړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکي خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې به له هغو سره مرسته او لارښوونه کوي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې له ۵ دانو مڼو څخه د ۲ دانه یې څو ګروپونه جوړیږي او څو دانې پاتې کیږي؟

– څوک وایې چې له ۷ دانو ناکو څخه د ۳ دانه یې څو ګروپونه جوړیداي شي او څو دانې پاتې کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي:

– له ۱۳ دانو لرګوټو څخه د ۳ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ او پاتې یې وښیې؟

– له ۱۵ دانو وړو ډبرو څخه د ۴ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ او پاتې یې وښیې؟

– له ۹ دانو لوبیا څخه د ۴ دانه یې مساوي ګروپونه جوړ او پاتې یې وښیې؟

**ذهنیت:**

د مساوي ګروپونو په جوړولو او پاتې په پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون کوي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د څو دانه ئیزو د مساوي ګروپونو په ترتیب ورکولو سره په خپل ورځنۍ ژوند کې کار اخلي د اړتیا په وخت کې شیان او جنسونه په مساوي ګروپونو سره ترتیب او ضرب کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د (۱۰۹) مخ وروستۍ پوښتنۍ چې په هغو کې د جمعې، تفریق او ضرب عملیې دي حل کړي او له خپل ځانو سره دې راوړي.

# عنوان: د مساوي ګروپونو جوړول

**دوه پنځوسم لوست، (۱۱۰، ۱۱۱) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** دا لوست زده کوونکي د تقسیم د عملیې د زده کولو لپاره چمتو کوي.

**اصطلاح ګانې:** مساوي ګروپونه، دوه مساوی ګروپونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د لوبیا دانې، د جوارو دانې او نور د چاپېریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کوربې دننه دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي هغه اشتباګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانېږي په درې باندې دې ولیکل شي صحیح او سم ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي بیا دې له ګروپونو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: ستاسو له ګروپ څخه څو ۳ تنه یې ګروپونه جوړېږي او څو تنه له ګروپ څخه د باندې پاتې کیږي؟

دویم ګروپ: ستاسو د ګروپ څخه څو ۴ تنه یې ګروپونه جوړیږي او څو تنه له ګروپ څخه پاتې کیږي؟

دریم ګروپ: ستاسو د ګروپ څخه څو ګروپونه د ۴ تنه یې جوړیږي او څو تنه له ګروپ څخه پاتې کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی د ۸ دانو په شمېر سره لوبیا په خپل میز باندې کښېږده او یو زده کوونکی را وغواړه هغه ته وواياست یوازې دوه مساوی ګروپونه جوړ کړه زده کوونکی راځي له لوبیا څخه دوه مساوی ګروپونه جوړوي بیا له یوه بل زده کوونکي څخه پوښتنه وکړئ په هر ګروپ کې څو دانې لوبیا دي؟ هغه لوبیاویني او وايي په هر ګروپ کې ۴ دانې لوبیا دي.

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې ۱۲ دانې وړې ډبرې په خپل میز باندې کښېږدي او د یوه زده کوونکي مثلاً فرید نوم دې واخلي هغه ته دې ووايي د ۱۲ دانو وړو ډبرو څخه ۳ مساوي ګروپونه جوړ کړه فرید راځي یوه،



مثال:

له ۲۴ کوچنیو ډبرو څخه:

لومړي مرحلهٔ: مساوي ګروپونه جوړ کړئ




دوهمه مرحلهٔ: د هرګروپ لپاره یوچوکاټ رسم کړئ د هرشي یا قلم لپاره یوه نښه وټاکئ.



په هر ګروپ کې __۱۲__ دي

__۲__ ګروپونه د۱۲ په ۲۴ کې شتوالي لري

لوبې ته ادامه ورکړئ! ۲۴ کوچنی ډبرې استعمال کړئ. مساوي ګروپونه جوړ کړئ. دهر ګروپ لپاره یو چوکاټ رسم کړئ.

مثال:



په هر ګروپ کې __۸ کوچنی ډبري__ دي .

__۳__ ګروپونه د __۸__ ۲۴ کیږي.



۱.

په هر ګروپ کې ____۲____ دي.

__۴__ ګروپونه د ____۲____ ۲۴ کیږي.

۱۱۰

یوه دانه ډبره په درې ځایونو کې ایږدي په وار سره، دې فعالیت ته ادامه ورکوي ترڅو چې ډبرې خلاصې شي او د هغو څخه هیڅ شئ پاتې نشي. بیا دې له یوه بل زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي. د ډبرو څو ګروپونه لیدل کیږي. هغه ځواب وايي ۳ ګروپونه بیا دې وپوښتي په هر ګروپ کې څو دانې ډبرې دي. هغه په هر ګروپ کې ډبرې شمیري او وايي په هر ګروپ کې ۴ دانې ډبرې دي. نو ښاغلی ښوونکی دې ووايي د غو ته درې مساوي ګروپونه ویل کیږي چې ۳ ګروپونه د ۴ دانه یې په ۱۲ کې شامل دي.

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې لومړي ګروپ ته (۱۰) دانې جواري، دویم ګروپ ته (۱۴) دانې لوبیا او دریم ګروپ ته ۱۶ دانې وړې ډبرې ورکړي ترڅو ګروپونه په خپل منځ کې کار ورباندې وکړي او هر یو ګروپ دې دوه مساوي ګروپونه جوړ کړي، او د ګروپونو د شیانو شمیر دې نوروته وښیې د دې لپاره چې زده کوونکي وکړائ شي مساوي ګروپونه جوړ کړي باید شیان یا جنسونه په مساوي برخو سره جلاء کړي او د هر ګروپ یا هري برخې د شیانو په شمیر پوه شي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۰ او ۱۱۱) مخونو ته راوګرځوئ هغه مثال چې د کتاب په دې مخ کې د شیانو په واسطه کار شوی دئ او شیان په دوو مساوي برخو ښودل شوي دي زده کوونکو ته يې تشریح کړه ترڅو زده کوونکی د ګروپونو په جوړولو پوه شي. او زده کوونکو ته مواد ورکړئ ترڅو د هغو څخه په کار اخستني سره لاندې پوښتني حل کړي په داسې حال کې چې (۱، ۲) ګڼې پوښتني دې لومړی ګروپ ته، (۳، ۴) ګڼې پوښتني دویم ګروپ ته او همدارنګه (۵، ٦) ګڼې پوښتني دریم ګروپ ته ورکړئ ترڅو د کتاب له هدایت سره سم کار وکړي او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان څارنه کوي.

**۳– ارزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي چې په مساوي ګروپونو کې د شیانو او جنسونو شمیر مساوي دي او که یو له بله توپیر لري؟

– څوک وايي که چیرې له ۸ لوبیا څخه دوه مساوي ګروپونه جوړ شي آیا پاتې هم لري او که نه؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي له لاندې شیانو څخه دوه یا درې مساوي ګروپونه جوړ کړي:





**ذهنیت:**

د مساوي ګروپونو په جوړولو سره او په ګروپونو کې د شیانو د شمیر په معلومولو سره د زده کوونکو په ذهن کې په بشپړ توګه بدلون راځي او رضایت ښکاره کوي.



.۲

په هر ګروپ کې ــــ۴ــــ دي.

ــــ۲ــــ ګروپونه د ــــ۴ــــ ۲۴ کیږي.



.۳

په هر ګروپ کې ــــ۱۲ــــ دي.

ــــــ ګروپونه د ــــ۱۲ــــ ۲۴ کیږي.

۳ هلکان ۱۸ دانې توته لري.

هغوی، توت په مساوي توګه وویشل.

هر هلک څودانې توته په لاس راوړل.

هر هلک ٦ دانې توته په لاس راوړل.




مثال: ۱۲ تنه په ۳ قالینوکې ګډ دي.

نوپه یوې قالینې کې به څوتنه ګډ وي.



۴ تنه په هره قالینې کې

۱. ۸ هلکان په دوو مېزوکې ګډ دي

په هر مېز کې څو هلکان دي؟

ــــ۴ــــ هلکان په هرمېز کې

۲. ۵ هلکان په ۱۰ پنسلونو کې ګډ دي. هر هلک ته څو پنسلونه رسېږي؟

ــــ۲ــــ پنسلونه د هر هلک لپاره.

**کورنۍ دنده:** ۴ هلکان په۱٦ بالونوکې ګډ دي هر هلک ته څو بالونه رسېږي؟

ــــــ بالونونه د هر هلک لپاره

۱۱۱

**ارزښت:**

د شیانو او جنسونو څخه د مساوي ګروپونو جوړول زده کوونکي چمتو کوي چې د تقسیم عملیه زده کړي او د هغه څخه د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار واخلي خپل او د نورو ستونزې حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۱۱۱) مخ ۷، ۸ او ۹ ګڼې پوښتني چې د زده کوونکو د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي دي زده کوونکي دې هغه حل او له خپل څانو سره راوړي.

## عنوان: ویش (تقسیم)

**دري پنځوسم لوست، (۱۱۲) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د دې لوست له زده کولو وروسته د شیانو په ویشلو کې خپل ستونزې حل کړي.

**اصطلاح ګانې:** ویش، مساوي برخې، مقسوم، مقسوم علیه، د ویش حاصل (خارج قسمت).

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوتي، د لوبیا دانې، د جوارو دانې، وړې ډبرې او نور د چاپېریال مواد.

### ۱ – فعالیتونه:

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي، هغه اشتباګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانیږي په درې باندې دې ولیکل شي د صحیح او سم ځوابونو د پیدا کولو لپاره زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې په دې برخه کې په آزاده توګه بحث او خبرې وکړي. که چیرې زده کوونکو صحیح ځوابونه پیدا نشي کړای ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي وروسته دې په ګروپي ډول د هغو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: د مساوي او نامساوي ګروپونو توپیر وواياست؟

دویم ګروپ: که چیرې په یوه ګروپ کې ۴ تنه او په بل کروپ کې ۵ تنه وي نومړي ګروپونه یو له بله سره مساوي دي او که نا مساوي؟

دریم ګروپ: ستاسو شمیر دوه مساوي ګروپونه جوړوي او که دوه نامساوي ګروپونه؟

– ښاغلی ښوونکی دې د ۱۴ دانو په شمیر وړې ډبرې په خپل میز باندې کښیږدي او یوه زده کوونکی ته دې ووایي راشه دا وړې ډبرې خپل دوو تنو ټولګیوالو ته په مساوي توګه ورکړه زده کوونکی راځي ۱۴ دانې وړې ډبرې دوو تنو ته داسې ورکوي، یوه، یوه وړه ډبره په ترتیب سره هر یوه د هغو ته ورکوي ترڅو وړې ډبرې له هغه سره پاتې نشي یعنی خلاصې شي. بیا دې ښاغلی ښوونکی له نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. لومړئ وړې ډبرې څو

**دري پنځوسم لوست**

**د ویش مفهوم**

هدف: زده کوونکي د تقسیم په مفهوم وپوهیږي او دتقسیم عملیه تر سره کړي.

د یوه شي جلاء کول په څو مساوي برخو د تقسیم په نامه یـــادیږي دا ( ⊢ ، ÷ ) دتقسیم نښې دي .

که چیرې په یوه پطنوس کې ۸ دانې مڼې ولرو او هغه په دووبشـــقابو کـــې وویشو په هر بشقاب کې ۴ دانې مڼې راځي.



مونږ په ریاضي کې دمنو دتقسیم عملیه، چې په دوو مساوي برخـــو ویشل کیږي داسې لیکو

$$\underset{\text{د ویش حاصل}}{۴} = \underset{\text{مقسوم علیه}}{۲} \div \underset{\text{مقسوم}}{۸}$$

پورته افاده داسې لوستل کیږي، اته تقسیم پر دوو مساوي لـــه څلـــورو سره په همدې ډول په لاندې چوکاټ کې ۱۲ دانې ناکه شته دي. کـــه چیرې هغه په ۳ مساوي برخو جلاء کړو په هر کوچني چوکاټ کې ۴ دانې ناکه حاصلیږي.




په ریاضي کې د۱۲ ناکو دتقسیم عملیه، چې په درومساوي برخو ویشـــل کیـــږي داسې لیکو:

$$\underset{\text{دویش حاصل}}{۴} = \underset{\text{مقسوم علیه}}{۳} \div \underset{\text{مقسوم}}{۱۲}$$

۱۱۲

دانې وې، هغوی ځواب وایې ۱۴ دانې وړې ډبرې وې، وروسته چې دوو تنو ته ورکړل شوې هر یو د هغو څو دانې وړې ډبرې لري. هغوی دواړو ته ګوري او وایې، د هغو هر یوه سره ۷ دانې وړې ډبرې دي، له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي د ۱۴ دانو وړو ډبرو جلا کول په دوو مساوي برخو د کومې عملیې په نامه یادیږي؟ که چیرې زده کوونکي وویلای شي ښه به وي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې ووایې دې عملیې ته د ویش (تقسیم) عملیه وایې. له دې وروسته داسې وایو په درې مساوي برخو، څلور مساوی برخو او ... وویشئ.

– ښاغلی ښوونکی دې د ویش نښه هغوی ته داسې ولیکي ( ⊢ ، ÷) او هم ورته وواياست دا د ویش نښې دي.

بیا یوه زده کوونکی ته وواياست ٦ دانې لوبیا د ټولګي په مخ کې په دوو مساوي برخو وویشه، زده کوونکی هغه په دوو مساوي برخو ویشي، بیا پوښتنه وکړه هره برخه څو دانې دي؟ هغه د لوبیا دانې شمیرې ځواب وایې هر برخه ۳ دانې لوبیا دي.

بیا دې ښاغلی ښوونکی د هغه د ریاضی افاده داسې ولیکي: ۳= ۲÷۶

– ښاغلی ښوونکی دې ووایې داسې لوستل کیږي: شپږ تقسیم پر دوو مساوي له درو سره. ښاغلی ښوونکی دې په تاکید سره ووایې ۶ د مقسوم په نامه، ۲ د مقسوم علیه په نامه او ۳ د ویش د حاصل یا خارج قسمت په نامه یادیږي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۲) مخ ته راوګرزوي لومړی مثال چې ۸ دانې منې په دوو غابو کې ویشل شوی دي تشریح کړي د ۴ = ۲ ÷ ۸، د ویش د عملیې له مخی دې، مقسوم، مقسوم علیه او د ویش حاصل زده کوونکو ته وښيي. په همدې ډول دویم مثال چې ۱۲ دانې ناکه په دریو مساوي برخو ویشل شوي دي. هغه دې هم زده کوونکو ته تشریح کړي او د ۴ = ۳ ÷ ۱۲، د ویش د عملیې له مخې دې مقسوم، مقسوم علیه او خارج قسمت زده کوونکو ته تشریح او بشپړ معلومات دې ورکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې دا نښه(÷) د څه شی نښه ده ؟

– څوک وایې چې دا ( ⊥ ) د څه شی نښه ده؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي:

؟ = ۴ ÷ ۱۶،  ؟ = ۴ ÷ ۱۲،  ؟ = ۲ ÷ ۴

؟ = ۲ ÷ ۱۸،  ؟ = ۵ ÷ ۱۵

**ذهنیت:**

د ویش د عملیې په زده کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون کوي د ریاضی سره مینه پیدا کوي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د ویش د عملیې په زده کولو سره کولای شي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي. هغوی کولای شي له ستونزو پرته د ویش د عملیې په واسطه شیان او جنسونه په دوو مساوی برخو وویشی.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکی دې لاندې پوښتنې حل او له ځانو سره راوړي (له مواد څخه دې کار واخلي).

؟ = ۳ ÷ ۹،  ؟ = ۳ ÷ ۱۵،  ؟ = ۲ ÷ ۱۴

## عنوان: مشق او تمرین

**(۱۱۳ او ۱۱۴) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکې وکړای شي شیان او جنسونه په مساوي برخو وویشي او عبارتي پوښتنې حل کړي.

**اصطلاح ګاني:** مساوي برخې، تقسیم، مقسوم، مقسوم علیه، د ویش حاصل (خارج قسمت).

**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د لوبیا دانې، د جوارو دانې او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي هغه اشتباګانې چې د زده کوونکو په واسطه ویل کیږي په دړې باندې دې ولیکل شي صحیح ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړې باندې تشریح کړي. بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

له لومړي ګروپ څخه فرید: د ۲ = ۲ ÷ ۴ په عملیه کې مقسوم، مقسوم علیه او د ویش حاصل کوم دې؟

له دویم ګروپ څخه احمد: د ویش یوه افاده ولیکه په هغه کې مقسوم، مقسوم علیه او د ویش حاصل وښیاست؟

له دریم ګروپ څخه محمود: که چیرې شپږ دانې مڼې په دوو مساوي برخو جلاء کړو دا عملیه په ریاضي کې د څه په نامه یادیږي؟

– ښاغلی ښوونکی د ۱۵ دانو په شمیر لوبیا په خپل میز باندې کښیږدئ او یو زده کوونکی را وغواړه هغه ته وواياست دا لوبیا په ۵ مساوي برخو سره جلاء، جلاء کښیږده. زده کوونکی راځي په ترتیب سره یوه، یوه دانه په پنځو ځایونو کې ایږدي، بیا په تکراري توګه یوه، یوه دانه ایږدي دې فعالیت ته ادامه ورکوي ترڅو ټولې لوبیاوې خلاصې شي. او هیڅ شئ له هغه سره پاتې نشي. بیا دې وپوښتي، هره برخه څو دانې لوبیا شوې دي؟ هغه برخو ته کتل کوي او وايي هره برخه درې

**مشق او تمرین**

۵ هلکان په ۱۵ مریوکې ګډ دي. هر هلک څومرې په لاس راوړي؟

لومړي مرحلهٔ: ۵ ګروپونه وښایاست.



دوهمه مرحلهٔ: یوه، یوه مرۍ وهرګروپ ته ورکړئ.



دریمه مرحلهٔ: تر هغه پورې دوام ورکړئ ترڅو چې مرۍ خلاصې شي.



۱۵ تقسیم پر۵ مساوي له ۳ سره ۳ = ۵ ÷ ۱۵

۱۵ مرۍ چې په ۵ ګروپونو تقسیم شي هر ګروپ ته ۳ مرۍ رسیږي.

په جوړه یې توګه کار وکړئ. دمساوي ګروپونو جوړولو دپاره کوچنۍ ډبرې استعمال کړئ عبارتي پوښتنې ولیکئ او حل یې کړئ.

مثال: دوه هلکان په ۱۰ بالونوکې ګډ دي وهر هلک ته څو بالونونه رسیږي.



۵ = ۲ ÷ ۱۰

۱. ۱٦ مرۍ د غاړې په ۲ امیلو باندې وویشئ



۸ = ۲ ÷ ۱٦

۲. ۹ دانې دګیلاس میوه په ۳بشقابونو کې په مساوي ډول کیږدي.



۳ = ۳ ÷ ۹

۳– ۱۲چوغکې د ونې په ۲ ښاخو باندې وویشئ هر ښاخ به څو چوغکې ولري؟

٦ = ۲ ÷ ۱۲

۱۱۳

درې دانې لوبیا دي. ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایي د هغه د ریاضي افاده په تقسیم سره ولیکه. که چیرې زده کوونکی ونکولای شو نبه به وي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې داسې ولیکي: ۳ = ۵ ÷ ۱۵

– ښاغلی ښوونکی دې یو بل زده کوونکی را وغواړي او هغه ته دې ووایي: ۲۰ دانې وړې ډبرې په ۴ پلاستیکي کڅوړو کې په مساوي توګه واچوه، هغه ۴ پلاستیکي کڅوړې اخلي. په ترتیب سره په هره کڅوړه کې یوه، یوه دانه وړه ډبره اچوي ترڅو ټولې وړې ډبرې خلاصې شي. او د هغو څخه هیڅ شئ پاتې نشي. بیا دې له یوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي په هره پلاستیکي کڅوړه کې څو، څو دانې وړې ډبرې اچول شوي دي. هغه د هرې پلاستیکي کڅوړې ډبرې شمیري، وايي په هره یوه کې پنځه، پنځه وړې ډبرې دي، له یوه بل زده کوونکي څخه پوښتنه وکړئ. اوس وواياست چې ۲۰ دانې وړې ډبرې په څو مساوي برخو ویشل شوي دي؟ که چیرې زده کوونکي وویلاس شي نبه به وي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې

وواېي: چې ۲۰ دانې ورې ډبرې په ۴ مساوي برخو ويشل شوي دي چې هره برخه يې پنځه ورې ډبرې دي. همدې زده کوونکې ته دې وواېي چې د هغه د رياضي عمليه وليکه هغه بايد داسې وليکي: ۵ = ۴ ÷ ۲۰
په همدې ډول نور فعاليتونه دې سرته ورسوي ترڅو د ويش عمليه د زده کوونکو په ذهن کې ځای ونيسي.
– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی بايد شيان په دوو مساوي برخو وويشي. که چېرې زده کوونکی د ويش د جملو په بشپړولو کې ستونزي ولري له هغو سره مرسته وکړئ او د ويش (تقسيم) مرحلې ورته تشريح کړئ.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۳) مخ ته راوګرزوئ. لومړی عبارتې پوښتنه چې په درې مرحلو کې کار شوی دئ ګام په ګام يې زده کوونکو ته تشريح کړه. ترڅو زده کوونکې د ويش ټولې طريقې په عملې توګه زده کړي. او بيا يې د افادې په شکل ترتيب او حل يې کړي. همدارنګه د دې مخ (۱) ګڼه عبارتې پوښتنه چې په شکل کې حل شوې ده هم زده کوونکو ته دې څرګند او تشريح شي. او بيا دې د (۱۱۳، ۱۱۴) مخونو عبارتې پوښتنې په ګروپې شکل زده کوونکو ته ورکړل شي په داسې حال کې د (۲، ۳، ۴) ګڼې پوښتنې دې لومړی ګروپ ته، (۵، ٦، ۷) ګڼې پوښتنې دې دويم ګروپ ته او (۸، ۹، ۱۰) ګڼې پوښتنې دې دريم ګروپ ته ورکړل شي چې په ګروپې شکل په ټولګی کې کار وکړي او پوښتنې د هدايت سره سم حل کړي ښاغلی ښوونکی دې د کار مراقبت کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي. د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وواېي د ۲ = ۳ ÷ ٦ په عمليه کې مقسوم کوم يو دئ؟

۴– ۸ ګوډي پرانه د۲ هلکانوترمنځ ګډ دي، هريوه ته څو ګوډي پرانه رسېږي.

۸ ÷ ۲ = ۴

۵– ۳ هلکان په ۱۵ موټرګيوکې ګډ دي، هر هلک ته څو موټرګيه رسېږي.

۱۵ ÷ ۳ = ۵

٦– ۲۰ قلمه تباشير په ۴ چوکاټونوکې په مساوي ډول وويشئ

۲۰ ÷ ۴ = ۵

۷–۵ کڅوړې ۲۵ مرۍ لري هره کڅوړه به څو مرۍ ولري

۲۵ ÷ ۵ = ۵

۸–۱۲هلکان په۳ زانګوګانوکې لوبې کوي په هره زانګوکې څوهلکان لوبې کوي

۱۲ ÷ ۳ = ۴

۹–۹ مرغۍ په ۳ ښاخونوکې په مساوي ډول ناستې وي نو په هر ښاخ کې څومرغۍ ناستې دي:

۹ ÷ ۳ = ۳

**کورنۍ دنده:** ګروپونه جوړ کړئ او پوښتنې حل يې کړئ.

۱– ادريس ۱۸ بوتله اوبه لري که چېرې خپل هر ټولګوال ته ۲ بوتله اوبه ورکـړئ. د ادريس د ټولګوالو شمېر معلوم کړئ؟

د ادريس ټولګوال ۱۴ ÷ ۷ = ۲

۱۱۴

– څوک وواېي هغه عمليه چې په درې باندې ليکل شوي ده مقسوم او د ويش حاصل يې کوم دي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي لاندې پوښتنې حل کړي:

۱۸ ÷ ۳ = ?،  ۲۵ ÷ ۵ = ?،  ۲۴ ÷ ۴ = ?

**ذهنيت:**

د ويش د دې عمليې په زده کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې عمليې څخه د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار اخلي د هغوی د شيانو د ويشلو لپاره په لنډه توګه د ويش له عمليې څخه په کار اخستلو سره خپل او د نورو ستونزې حل کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۱۱۴) مخ په پای کې دوه عبارتې پوښتنې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوی دي زده کوونکی دې هغه حل له او ځانو سره راوړي.

# عنوان: ویش

**(۱۱۵ او ۱۱٦) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**هدف:** زده کوونکي وکړائ شي د عبارتي پوښتنو لپاره مناسب عملیې وټاکي.

**اصطلاح ګاني:** جمع، تفریق، ضرب، ویش.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د جوارو دانې، وریږ ډبرې او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي هغه اشتباګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانیږي په دړې باندې دې ولیکل شي. صحیح ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په دړې باندې تشریح کړي. بیا دې له ګروپونو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: که چیرې ٦ دانې منې په دوو مساوي ګروپونو کې کښیږدو دې ته د ویش عملیه ویلای شو او که نه؟

دویم ګروپ: دوه مساوي ګروپونه چې هر ګروپ یې ۴ دانې ولري د ضرب په شکل یې لیکلای شو تر څو د دواړو ګروپونو د شیانو شمیر معلوم شي؟

دریم ګروپ: دري مساوي ګروپونه چې هر ګروپ یې ۳ دانې ولري د جمعې په شکل یې لیکلای شو تر څو د دري واړو ګروپونو د شیانو شمیر معلوم شي؟

– ښاغلی ښوونکی دې ۲ مساوي ګروپونه چې هر ګروپ یې ۳ دانې ولري په دوو مختلفو ځایونو کې کښیږدي او یو زده کوونکی دې راوغواړي او له هغه دې پوښتنه وکړي. کله چې دا سره یو ځای کړو او د ټولو شمیر پیدا کړو د (تفریق، ضرب او ویش) د عملیو له ډلو څخه کومه یوه یې سرته ورسوو. که چیرې زده کوونکی وویلای شي ښه به وي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې د ګروپونو، کتارونو جوړول د زده کوونکو په یاد راوړي بیا دې ورته ووایي: ۲ مساوي ګروپونه چې هر ګروپ یې ۳ دانې

مشق او تمرین:

۲– حیدر ۱۴ منې لري که چیرې هغه خپل هر ورور ته ۷ منې ورکړي وواياست چې حیدر به څو وروڼه ولري؟

په یوه ډګر کې ٦ خیمې دي چې د هرې خیمې په دننه کې ۳ هلکان دي. ټوله هلته څو هلکان دي؟



آیا تاسو به جمع، تفریق، ضرب یا تقسیم سرته ورسوي؟ کومه یوه عملیه صحیح ده

صحیح ده

٦ ÷ ۳ = ۲ | (٦ × ۳ = ۱۸) | ٦ – ۳ = ۳

دپوښتنود صحیح حل په شاوخوا باندې دایره وکاږئ.

۱. ۲ هلکان په لوپغالي کې قدم وهي.
۳ هلکان نور له هغو سره یوځای کیږي.
اوس څو هلکان قدم وهي؟



۲ × ۳ = ٦ | ۳ – ۲ = ۱ | (۲ + ۳ = ۵) صحیح ده

۲. ۵ هلکان ماهي نیسي.
اوهر هلک ۳ ماهي ونیول
هلکانو ټول څو ماهي نیولي دي؟



صحیح ده

(۵ × ۳ = ۱۵) | ۵ – ۳ = ۲ | ۱۵ ÷ ۳ = ۵

۱۱۵

ولري د ضرب د عملیې په واسطه یې پیدا کولای شو. یعنې: ٦ = ۲ × ۳ دي.

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې یو بل زده کوونکی را وغواړي او له هغه دې پوښتنه وکړي: احمد ۵ افغانۍ لري، ۴ افغانۍ نوري پلار هغه ته ورکړي. اوس د احمد ټولې پیسې معلومې کړئ، د ضرب تفریق او جمعې د عملیو له ډلو څخه کومه یوه یې سرته ورسوو ترڅو د احمد ټولې پیسې پیدا کړو. زده کوونکی باید هغه مناسب عملیه چې د هغه په واسطه پوښتنه حل کیږي وټاکي لکه د جمعې عملیه، که چیرې وویلای شي ښه به وي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې تشریح کړي چې ۹ = ۴ + ۵ کیږي.

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې یو دریم زده کوونکی را وغواړي او هغه ته دې ووایي چې ۱۲ دانې وریږ ډبرې په مساوي ګروپونو سره جلاء کړه، کله چې زده کوونکی هغه په دوو مساوي ګروپونو جلا کړل وروسته دې زده کوونکي ته ووایي د هغه د ریاضي عملیه د (جمعې،ضرب او ویش) کومې یوې عملیې په واسطه سرته رسول کیږي،

ترڅو د هر ګروپ شمیر معلوم شي. څرنګه چې زده کوونکي مخکې کار کړئ ده باید ووایي د ویش د عملیې په واسطه داسې لیکلای شو: ۶ = ۲ ÷ ۱۲

– ښاغلی ښوونکی د دې پوښتنو څخه مقصد دا دئ چې زده کوونکي د مناسب عملیو په ټاکلو سره پوښتنې حل کړي. ښایې چې ځنې زده کوونکي ونشي کړای چې فکر وکړي او تصمیم ونیسي. چې له کومې عملیې څخه کار واخلي. په دې صورت کې زده کوونکو ته وواياست تاسو باید پاملرنه وکړئ چې څه وخت د جمعې، تفریق، ضرب او ویش څخه کار اخستلای شو.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۵) او (۱۱۶) مخونو ته را وګرځوئ او زده کوونکو ته وواياست د هرې پوښتنې د حل لپاره درې عملیې درکړل شوي دي تاسو یوازې یوه صحیح او سم عملیه چې د هغې په واسطه د پوښتنې حل کیدای شي وټاکئ په داسې حال کې چې د (۱۱۵) مخ دوه لومړۍ پوښتنې لومړي ګروپ ته د (۱۱۵) مخ وروستۍ پوښتنه د (۱۱۶) مخ د دریمې پوښتنې سره دویم ګروپ ته او همدارنګه د (۱۱۶) مخ (۴ او ۵) ګنې پوښتنې دریم ګروپ ته ورکړئ. ترڅو په ګروپي شکل کار وکړي. صحیح او سمه عملیه په خپلو کتابچو کې ولیکي. ښاغلی ښوونکی دې د کار مراقبت کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د ضرب او یا د جمعې یوه عبارتي پوښتنه جوړوي؟

– څوک د ویش او یا د تفریق یوه عبارتي پوښتنه وایي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي.

۳. ۵ هلکان ۱۰ دانې ژاولې په مساوي ډول ویشي.
هر هلک ته څو دانې ژاولې رسیږي؟

۱۰ + ۵ = ۱۵    صحیح ده (۱۰ ÷ ۵ = ۲)    ۲ × ۵ =۱۰

۴. ۸ هلکان د اور په شاوخوا ناست دي. ۲ هلکان له هغوی څخه کورته ځي.
اوس څو هلکان داور په شاوخوا باندې ناست دي

۸ + ۲ = ۱۰    ۸ ÷۲ = ۴    صحیح ده (۸ − ۲ = ۶)

۵. ۱۰ هلکان غواړي چې په یوه سفر کې له ۵ بایسکلونوڅخه په مساوي توګه کار واخلي په یوه بایسکل کې څو هلکان ګډېږي (شریک)؟

صحیح ده (۱۰ ÷ ۵ = ۲)    ۱۰ + ۵ =۱۵    ۱۰ − ۵ = ۵

**کورنۍ دنده:**

دهرې عددې افادې لپاره یو عبارت ولیکئ

۱. ۴ × ۲ = ۸

۲. ۱۲ ÷ ۲ = ۶

۳. ۱۷ − ۹ = ۸

۱۱۶

۶ + ۶ + ۷ = ?،    ۱۲ × ۲ = ?

۱۴ ÷ ۷ = ?،    ۲۸ − ۱۹ = ?

**ذهنیت:**

د یوې عبارتي پوښتنې روان لوستل، او له هغه څخه مفهوم اخستل او د عبارتي پوښتنې د حل لپاره د مناسبې عملیې په ټاکلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي په خپل ژوند کې د داسې پوښتنو او مفهومونو سره مخامخ کیږي. چې د هغو په پوهیدو سره د ژوند په ورځنۍ معاملو کې کار ورڅخه واخلي خپل او یا د نورو ستونزې حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۱۱۶) مخ په پای کې درې پوښتنې د زده کوونکو لپاره د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي دي، د هرې ریاضي افادې لپاره دې یو عبارت ترتیب او حل دې کړي.

# عنوان: د ضرب او ویش مشق او تمرین

**(۱۱۷، ۱۱۸) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د جمعې، تفریق، ضرب او یا ویش پوښتنې حل کړي او عملیې یې له بله تشخیص کړي.

**اصطلاح ګانې:** ګروپ، کتار، مساوي، جمع، تفریق، ضرب او ویش.

**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د لوبیا دانې، د جوارو دانې او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي هغه اشتباګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانیږي په ډرې باندې دې ولیکل شي صحیح ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په ډرې باندې تشریح کړي. بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

له لومړي ګروپ څخه امین: د ۸ = ۲ + ۶ عملیې لپاره یو عبارت ووایاست؟

له دویم ګروپ څخه فرید: د ۶ = ۳ – ۹ عملیې لپاره یو عبارت ووایاست؟

له دریم ګروپ څخه احمد: د ۱۲ = ۳ × ۴ عملیې لپاره یو عبارت ووایاست؟

– ښاغلی ښوونکی د ۱۵ دانو په شمیر وړې ډبرې په خپل میز باندې کښیږدي او یو زده کوونکی را وغواړي هغه ته ووایاست له دې وړو ډبرو څخه درې مساوي ګروپونه جوړ کړه، زده کوونکی راځي درې مساوي ګروپونه جوړوي. ښاغلی ښوونکی دې بیا پوښتنه وکړي. په هر ګروپ کې څو دانې وړې ډبرې دي. هغه ډبرو ته پام کوي وایي په هر ګروپ کې پنځه دانې وړې ډبرې دي. دریم واری دې پوښتنه وکړي څو ګروپونه دي او په هر ګروپ کې څو دانې دي؟ هغه به ووایي ۳ ګروپونه، په هر ګروپ کې پنځه دانې دي. که چیرې زده کوونکی ونشي ویلای ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایي.

**د ضرب او تقسیم مشق او تمرین**




یوځای کار وکړئ او تمرینونه حل کړئ
ویې لیکی څومره؟

۱.

۷ + ۷ + ۷ = ۲۱
۳ ګروپونه د ۷ = ۲۱

۲.

۵ + ۵ + ۵ + ۵ = ۲۰
۴ ګروپونه د ۵ = ۲۰

۳.

۳ + ۳ = ۶
۲ ګروپونه د ۳ = ۶

۴.

۶ + ۶ + ۶ = ۱۸
۳ ګروپونه د ۶ = ۱۸

۵. د لاندې افادو حاصل په دوه ډوله پیداکړئ.

۳ + ۳ + ۳ + ۳ = ۱۲
۴ ګروپونه د ۳ = ۱۲

۶.

۴ + ۴ + ۴ = ۱۲
۳ ګروپونه د ۴ = ۱۲

۱۱۷

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې د ۱۲ دانو په شمیر لوبیا په خپل میز باندې کښیږدي. او د یوه زده کوونکي مثلاً محمود نوم دې واخلي هغه ته دې ووایي راشه دا د لوبیا دانې په ۴ کتارونو کې ترتیب کړه هغه راځي د لوبیا دانې په ۴ کتارونو کې ترتیب کوي. دویم واري له محمود څخه دې پوښتنه وکړي، څو کتاره دي او په هر کتار کې څو دانې دي. هغه کتارونهویني او په کتارونو کې د لوبیا دانې شمیرې وایي ۴ کتاره دي او په هر کتار کې درې دانې دي هغه ته ووایه په ډرې باندې ولیکه هغه داسې لیکي: ۱۲ = ۳ + ۳ + ۳ + ۳

یا ۴ کتاره د ۳ = ۱۲

وروسته دې د ۲۰ دانو په شمیر جوار په خپل میز باندې کښیږدي او د یوه زده کوونکي مثلاً صابر نوم دې واخلي هغه ته دې ووایي د جوارو له دانو څخه پنځه مساوي ګروپونه جوړ کړه. او ووایاست په هر ګروپ کې څو دانې دي.

صابر راځي ۲۰ دانې جوار په ترتیب سره په پنځو مختلف ځایونو کې ویشي، ویني چې په هر ګروپ کې ۴، ۴ دانې جوار شتوالی

لري او صابر ته دې ووايي د ګروپونو شمير او په هر ګروپ کې د جوارو د دانو شمير زده کوونکو ته وواياست هغه وايي پنځه ګروپونه دي او په هر ګروپ کې ۴ داني دي. او بيا دې په درې باندې وليکي او نوروته دې وښيي. هغه داسې ليکي:

۴ + ۴ + ۴ + ۴ + ۴ = ۲۰

۵ ګروپونه د ۴ = ۲۰

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۷ او ۱۱۸) مخونو ته را وګرزوي د (۱۱۷) مخ (۱) ګڼه پوښتنه دې ښاغلی ښوونکی په درې باندې تشريح او حل دې کړي د دې مخ (۲) ګڼه پوښتنه دې د لومړۍ ګروپ يو تن په واسطه، (۳) ګڼه پوښنه دې د دويم ګروپ يو تن په واسطه او (۴) ګڼه پوښتنه دې د دريم ګروپ يو تن په واسطه په درې باندې حل شي او په ترتيب سره نورو زده کوونکو ته دې تشريح کړي. د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وشي بيا دې (۵، ٦) ګڼې پوښتنې دريم ګروپ ته، (۷، ۸) ګڼې پوښتنې دې لومړي ګروپ ته او همدارنګه د (۱۱۸) مخ (۹، ۱۰) ګڼې پوښتنې دې دويم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو په ګروپي شکل په ټولګي کې کار وکړي او پوښتنې حل کړي. او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جريان مراقبت وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړې دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښته:**

– څوک وايي ۴ کتاره د ۲ دانه يې څو کيږي؟

– څوک وايي ۲ کتاره د ۴ دانه يې څو کيږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي.

۵ × ۴ = ?،    ۲۴ ÷ ۳ = ?،    ۴۳

۴ × ۵ = ?،    ۱٦ ÷ ۴ = ?    × ۲

مساوي کتارونه جوړ کړئ. هر کتار رنګ کړئ او حاصل پيداکړي،

۷. ۲ کتاره د۴    ۴ کتاره د۲

۴× ۲ = ۸    ۲ ×۴ = ۸

۸. ۳ کتاره د۵    ۵ کتاره د۳

۵× ۳ = ۱۵    ۳ ×۵ = ۱۵

۹. ضرب يې کړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۴۳ × ۲ = ۸۶ | ۲۵ × ۴ = ۱۰۰ | ۳۴ × ۲ = ۶۸ | ۲۳ × ۳ = ۶۹ | ۱۶ × ۲ = ۳۲ | ۱۷ × ۲ = ۳۴ |

۱۰. په ګروپي ډول کار وکړئ، ۱۲ کوچنۍ ډبرې استعمال کړئ افاده جوړه کړئ جمع او تقسيم يې کړی.

په هر ګروپ کې —۶— کوچنۍ ډبرې دي.

او —۲— ګروپونه د —۶— په ۱۲ کې شته

۱۱.

په هر ګروپ کې —۴— کوچنۍ ډبرې دي.

—۳— ګروپونه د —۴— په ۱۲ کې دي.

دکوچنيو ډبرو څخه مساوي ګروپونه جوړ کړئ، رسم يې کړئ.

**کورنۍ دنده:**

۱– ۱٦چوغکې په ۲ښاخو باندې ناستې دي په هرښاخ باندې څوچوغکې شتوالی لري

___ ÷ ___ = ___

۲– ۴ کڅوړې ۱٦ مرۍ لري. هره کڅوړه څو مرۍ لري.

___ ÷ ___ = ___

۱۱۸

**ذهنيت:**

زده کوونکي د (جمعي، تفريق، ضرب، ويش) ځلورو عمليو په واسطه د پوښتنو په حل کولو سره په ځان او نفس باور پيدا کوي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی د دې عمليې په پوهيدو سره کولای شي. په ورځنۍ ژوند کې کار واخلي کله چې هغوی د حسابي مسئلو سره مخامخ کيږي، سم او صحيح قضاوت کوي چې کومه عمليه بايد وټاکي ترڅو صحيح ځواب پيدا کړي. خپل او يا د نورو ستونزې حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۱۱۸) مخ (۱۱، ۱۲ او ۱۳) ګڼې پوښتنې چې د زده کوونکو لپاره د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي دي په کورونو کې حل او له ځانو سره راوړي.

# عنوان: د ضرب او ویش تر منځ اړیکې

**څلور پنځوسم لوست، (۱۱۹) مخ**

**وخت: دوه ساعته(۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکې پوه شي که چیرې مقسوم په مقسوم علیه باندې وویشل شي د ویش حاصل په لاس راځي او که چیرې مقسوم علیه د ویش له حاصل سره ضرب شي مقسوم په لاس راځي دا یوه اړیکه د ضرب او ویش تر منځ بلل کیږي.

**اصطلاح ګانې:** مقسوم، مقسوم علیه، د ویش حاصل، اړیکې، ضرب، ویش.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د جوارو دانې، لرګوټې او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کوربنی دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي هغه اشتباګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانیږي په دریې باندې دې ولیکل شي، صحیح ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شیې پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درېې باندې تشریح کړي. بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: ۳ کتاره په هر کتار کې ۵ دانې ټوله څو کیږي؟

دویم ګروپ: د ۱۲ دانو څخه څو کتاره ۴ دانه یې جوړیږي؟

دریم ګروپ: ۵ کتاره په هر کتار کې ۳ دانې مساوي له څو سره کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی دې ۲ کتاره چې په هر کتار کې ۴ دانې وي په خپل میز بانې کښیږدي بیا دې یو زده کوونکی را وغواړي هغه ته دې ووایي دا کتارونه ټوله څو کیږي، هغه یې شمیرې او وایې ۸ دانې لوبیا کیږي. ښاغلی ښوونکی دې بیا پوښتنه وکړي څو کتاره او په هر کتار کې څو دانې دي؟ هغه کتارونه او په هر کتار کې دانو ته ګوري وایې ۲ کتاره او په هر کتار کې ۴ دانې دي. دریم واري دې پوښتنه وکړي. د کومې عملیې په واسطه د هغو ټولو شمیر پیدا کولای شو؟ وبې لیکې ښایې هغه داسې ولیکي: ۸ = ۲ × ۴

بیا دې یو بل زده کوونکی را وغواړي او هغه ته دې ووایي




څلور پنځوسم لوست

د ضرب او تقسیم تر منځ اړیکې (رابطه)

هدف: زده کوونکي پوه شي که چیرې مقسوم په مقسوم علیه باندې تقسیم شي دتقسیم حاصل لاس ته راځي او که چیرې مقسوم علیه دتقسیم له حاصل سره ضرب شي مقسوم لاس ته راځي او دا دتقسیم اوضرب ترمنځ یوه رابطه ده.

لاندې شکل څلور بشقابه منې دي چې په هربشقاب کې دوه، دوه دانې منې دي.

د ټولو منو شمېر ۸ = ۲ × ۴ دي.

اوس که چېرې ۸ دانې منې په ۴ بشقابوکې وویشو په هر بشقاب کې ۲ دانې منې راځي یعنې.



۸ ÷ ۴ = ۲

په همدې ډول که چېرې ۸ دانې منې په ۲ بشقابوکې وویشو.



۸ ÷ ۲ = ۴

۴ × ۲ = ۸

لیدل کېږي چې په هربشقاب کې ۴ دانې منې دي نو ویلای شو. که چېرې مقسوم په مقسوم علیه باندې وویشل شي د ویش حاصل په لاس راځي او که چېرې مقسوم علیه د ویش له حاصل سره ضرب شي مقسوم په لاس راځي.

مثال: ۶ ÷ ۳ = ۲

۶ ÷ ۲ = ۳

۳× ۲ = ۶

۱۱۹

دا ۸ دانې لوبیا په دوو مساوي کتارونو کې کښیږده هغه ۸ دانې لوبیا په دوو مساوي کتارونو کې ایږدي، پام ورته کوي چې په هر کتار کې ۴ دانې راغلي دي. ښاغلی ښوونکی دې پوښتنه وکړي په هر کتار کې څو دانې دي. زده کوونکی ځواب ورکوی ۴ دانې لوبیا دي بیا دې پوښتنه وکړي اوس هغه د ریاضي د کومې عملیې په واسطه پیدا کولای شو ولیکه: ښایې چې زده کوونکی ووایې د ویش د عملیې په واسطه: ۴ = ۲ ÷ ۸

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایې تاسو ولیدل چې یو شمیر لوبیا په دوو مختلفو ځایونو کې ایښودل شوي وي چې په هر ځای کې ۴ دانې لوبیا شتوالی درلود. او د هغو مجموعه ۸ دانې لوبیا دي، بل واري مو ولیدل چې ۸ دانې لوبیا په مساوي توګه په دوو ځایونو کې کیښودل شوي چې په هر ځای کې ۴ دانې لوبیا ایښودل شوي وي. که چیرې اوس ۸ دانې لوبیا په ۴ ځایونو کې کښیږدو، په هر ځای کې ۲ دانې لوبیا راځي چې په عمومي توګه دا عملیې داسې لیکو:

| د ضرب حاصل | | د ضرب دویم جزء | | د ضرب لومړی جزء |
|---|---|---|---|---|
| ۸ | = | ۲ | × | ۴ |
| د ضرب لومړی جزء | | د ضرب دویم جزء | | د ضرب حاصل |
| ۴ | = | ۲ | ÷ | ۸ |
| ۲ | = | ۴ | ÷ | ۸ |

لیدل کیږي که چیري د ضرب حاصل د ضرب په هر یوه جزء باندې وویشو د ضرب بل جزء لاس ته راځی. او یا که چیري مقسوم علیه د ویش له حاصل سره ضرب کړو مقسوم په لاس راځي لکه:

| د ویش حاصل | | مقسوم علیه | | مقسوم |
|---|---|---|---|---|
| ۲ | = | ۳ | ÷ | ٦ |

| مقسوم | | د ویش حاصل | | مقسوم علیه |
|---|---|---|---|---|
| ٦ | = | ۲ | × | ۳ |

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۹) مخ ته راوګرزوی هغه مثال چې په کتاب کې کار شوی دئ د شکلونو او تصویرونو له مخې دې زده کوونکو ته تشریح کړي ترڅو زده کوونکي د هغو له مخې د ضرب او ویش تر منځ په رابطې باندې پوه شي. بیا دې د زده کوونکو په واسطه په مختلف عددونو سره دا رابطي په ټولګي کې کار وشي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکي ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې که چیري د ضرب حاصل د ضرب په یوه جزء باندې وویشل شي څه شي په لاس راځي؟
- څوک وایې که چیري دویش حاصل په مقسوم علیه کې ضرب شي څه شئ په لاس راځي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د پوښتنو له حل کولو څخه د ضرب او ویش د عملیو ترمنځ اړیکي پیدا کړي.

۱۵ ÷ ۵ = ?، ۱۵ ÷ ۳ = ?، ۵ × ۳ = ?

٦ × ۳ = ? ، ۱۸ ÷ ٦ = ?، ۱۸ ÷ ۳ = ?

**ذهنیت:**

د ضرب او ویش د عملیو ترمنځ د اړیکو په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي رضایت او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې عملیې په پوهیدو سره کولای شي د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي خپل د پوښتنو صحیح او غلط والی د یو بل په واسطه و ازموي.

**۴- کورنی دنده:**

زده کوونکی لاندې پوښتنې حل کړي او د هغو تر منځ رابطي پیدا کړي.

۴ × ٦ = ?، ۲۴ ÷ ٦ = ? ، ۲۴ ÷ ۴ = ?

٦ × ۴ = ?، ۲۰ ÷ ۴ = ?، ۲۰ ÷ ۵ = ?

# عنوان: د یوه عدد ویشل په خپله هم هغه عدد باندې

**پنځه پنځوسم لوست، (۱۲۰) مخ**

**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي هر عدد چې په خپل ځان باندې وویشل شي، نتیجه یا د ویش حاصل یې یو کېږي.

**اصطلاح ګانې:** عدد، په خپل ځان ویش، ویش.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د پنسل قلمونه، لرګوټي او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي هغه اشتباګانې چې د ګروپونو په واسطه اعلانیږي په درې باندې دې ولیکل شي ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

له لومړي ګروپ څخه فرید: وواياست که چیرې د ضرب حاصل د ضرب په دویم جزء باندې وویشو څه شئ په لاس راځي؟

له دویم ګروپ څخه امین: وواياست که چیرې د ضرب حاصل د ضرب په لومړي جزء باندې وویشو څه شئ په لاس راځي؟

له دریم ګروپ څخه صابر: وواياست که چیرې د ویش حاصل او مقسوم علیه یو له بله سره ضرب شي څه شئ په لاس راځي؟

– ښاغلی ښوونکی دې د ۵ دانو په شمیر لوبیا یوه زده کوونکي ته ورکړي او هم ۵ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته ودروي. او هغه یوه زده کوونکي ته دې وواېي د لوبیا دانې په دې پنځو تنو باندې وویشه، هغه هر یوه زده کوونکي ته یوه، یوه دانه لوبیا ورکوي. ښاغلی ښوونکی دې دویم واری پوښتنه وکړي. هر زده کوونکي ته څو، څو دانې لوبیا رسیږي؟ هغه وواېي هر زده کوونکي ته یوه، یوه دانه لوبیا رسیږي، بیا دې پوښتنه وکړئ څو دانې لوبیا په څو تنو ویشل شوي دي؟ هغه به وواېي پنځه دانې لوبیا

**پنځه پنځوسم لوست**

**د یوه عدد وېشل په خپل عدد باندې (په خپل ځان)**

هدف: زده کوونکي د دې لوست له زده کړې وروسته پوه شي که چېرې یو عدد په خپل ځان وویشل شي پایله یې (۱)ده.

په یوه بشقاب کې ۳ دانې منې دي، فرهاد هغه په ۳ کوچنیـــو بشـــقابونو کې ویشي لیدل کېږي چې په هر بشقاب کې یوه دانه منه راځي.

پورتنۍ ویشنه په ریاضي کې داسې لیکل کیږي.

۳ | ۳
۱ | ۳–
۰

۳ ÷ ۳ = ۱ یا

له دې څخه ویلای شو هر عدد چې په خپل ځان وویشل شي د هغــه حاصــل (خارج قسمت) یو دی نو لیکلای شو چې:

۴ ÷ ۴ = ۱ ۱ ÷ ۱ = ۱

۵ ÷ ۵ = ۱ ۲ ÷ ۲ = ۱

۳ ÷ ۳ = ۱

**تمرین:** لاندې پوښتنې حل کړئ.

۸ ÷ ۸ = ۱ ٦ ÷ ٦ = ۱

۹ ÷ ۹ = ۱ ۷ ÷ ۷ = ۱

۱۲۰

په پنځو تنو ویشل شوي دي. چې هر یوه ته یوه لوبیا رسیږي.

په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې ۷ دانې قلمونه په خپل میز باندې کښیږدي. او د ۷ په شمیر زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته ودروي. یوه زده کوونکي ته دې وواېي ادا قلمونه چې په میز باندې پراته دي په ۷ زده کوونکو باندې یې وویشه. زده کوونکی راځي ۷ دانې قلمونه په ۷ زده کوونکو باندې ویشي. په داسې حال کې چې هر یوه زده کوونکي ته یو، یو دانه قلم ورکوي. بیا دې ښاغلی ښوونکی د همدې زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي څو دانې قلمونه په څو تنو وویشل شو؟ هغه به وواېي ۷ دانې قلمونه په ۷ زده کوونکو باندې وویشل شوه، هر زده کوونکي ته یو، یو دانه قلم ورسیده. بیا همدې زده کوونکي ته وواياست. د هغه د ریاضي عملیه ولیکه، که چیرې زده کوونکي وکولای شي ښه به وي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې داسې ولیکي: ۷ ÷ ۷ = ۱

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۰) مخ ته راوګرزوي، هغه مثال چې د شکل او تصویر له مخې حل شوی دئ زده کوونکو ته دې تشریح کړي ترڅو زده کوونکی د یوه عدد ویشل په خپله په هم هغه عدد (په خپل ځان) باندې پوه شي او ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته داسې ووایي:

هر عدد چې په خپل ځان (په خپله هم هغه عدد) باندې وویشل شي د ویش حاصل یې مساوي له یوه سره کیږي لکه:

۱ = ۳ ÷ ۳ ، ۱ = ۱۲ ÷ ۱۲ ، ۱ = ۱ ÷ ۱ ، ۱ = ۵ ÷ ۵

هغه پوښتنې چې د دې مخ په وروستئ برخې کې ورکړل شوي دي زده کوونکي دې په ګروپی شکل حل کړي. او هر ګروپ دې پوښتنې جلاء، جلاء حل کړي. او بیا دې نتیجې یو له بله سره پرتله کړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت وکړي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې ۲ چې په ۲ وویشل شي مساوي له څو سره کیږي؟
- څوک وایې ۵ چې په ۵ وویشل شي مساوي له څو سره کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي.

? = ۹۵ ÷ ۹۵ ، ? = ۱۴ ÷ ۱۴ ، ? = ۲۵ ÷ ۲۵ ، ? = ۸ ÷ ۸

**ذهنیت:**

د دې نوی عملیې په زده کولو سره د زده کوونکو فکر بدلون مومي، مثبت ذهنیت پیدا کوي او خوښی کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د ویش له دې عملیې څخه د ژوند په ورځنی معاملو کې کار اخلي. له اشتباه پرته یو عدد په خپله هم هغه عدد باندې په مساوي برخو ویشلای شي او د دویش حاصل په لاس راوړي.

**۴- کورنی دنده:**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل او له ځانو سره راوړي.

? = ۲۸۶ ÷ ۲۸۶ ، ? = ۱۴۵ ÷ ۱۴۵ ، ? = ۸۵ ÷ ۸۵

? = ۳۲۵ ÷ ۳۲۵

# عنوان: د یوه عدد ویشل په (۱) باندې

**شپږ پنځوسم لوست، (۱۲۱) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي هر عدد چې په یوه وویشل شي، نتیجه یا د ویش حاصل يې په خپله هم هغه عدد کيږي.

**اصطلاح ګاني:** ویش، یو، هم هغه عدد، نتیجه.

**د لوست مرستندوی مواد:** قلم، د لوبیا دانې، د جوارو دانې او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي. اشتباګانې دې په درې باندې ولیکل شي صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي. بیا دې په ګروپي شکل له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: که چیري ستاسو شمیر ۱۲ تنه وي تاسو څو قلمونو ته اړتیا لرئ تر څو هر یوه ته یو دانه قلم ورسیږي؟

دویم ګروپ: که چیری ستاسو شمیر ۱۵ تنه وي او په ټولګی کې ۱۵ دانې کتابچې شتوالي ولري تاسو هر یوه ته څو دانې کتابچې رسیږي؟

دریم ګروپ: که چیري په ۸ تنو باندې ۸ دانې کتابچې وویشو و هر یوه ته څو کتابچې رسیږي؟

– ښاغلی ښوونکی دې دوه دانې قلمونه په خپل لاس کې ونیسي د یوه زده کوونکی لکه فرید نوم دې واخلي خپل ځان ته دې راوغواړي. او دا دواړه قلمونه دې هغه ته ورکړي. بیا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. څو دانې قلمونه يې څو تنو ته ورکړل. هغوی به ځواب ورکړي یوازې فرید ته دې دوه قلمونه ورکړل. بیا دې پوښتنه وکړي. څو په څو باندې وویشل شو.

که چیري زده کوونکو ځواب وویل ښه به وي. پرته له هغه

شپږ پنځوسم لوست

د یوه عدد ویشل په (۱) باندې

هدف: زده کوونکي پوه شي هر عدد چې په (۱) باندې وویشل شي نتیجه يې په خپله هم هغه عدد ده.

ګرانو زده کوونکو تاسو هر یو خپل ټولګیوال ته ۲ ټوکه کتابچې ورکـړئ او وواياست چې ستاسو دټولیګوال په لاس کې څو ټوکه کتـابچې دي. حتمـي ستاسو ځواب (۲) دی، چې په حقیقت کې د یوه عدد ویشل په (۱) ده. د دې عمل رياضي شکل يې داسې ليکو.

۲ ÷ ۱ = ۲ يا

په همدې ډول که چېرې شريف خپل ۳ دانې قلمونه خپلې یوې خور نازي تـه ور وبخښي ويلای شئ چې نازي به څو قلمونه ولري؟ ددې پوښتنې په ځـواب تاسو ټول پوهیږئ چې نازي ۳ قلمونه لري. چې داعمل هم د یوه عدد ویشـل په (۱) باندې دی. د دې تقسیم د رياضي شکل داسې دی. ۳ ÷ ۱ =۳

له دې مثالونو څخه پوهيدلای شو هر عدد چې په (۱) باندې وويشـل شـي د ويش حاصل يې په خپله هم هغه عدد دی.

نو ليکلای شو چې:

۲ ÷ ۱ = ۲
۳ ÷ ۱ = ۳
۴ ÷ ۱ = ۴
۵ ÷ ۱ = ۵

تمرين لاندې پوښتنو ته شفاهي ځواب وواياست.

۸ ÷ ۱ = ۸ ۶ ÷ ۱ = ۶
۹ ÷ ۱ = ۹ ۷ ÷ ۱ = ۷

۱۲۱

ښاغلی ښوونکی دې ووایي ۲ په یوه باندې ویشل شوی دئ چې د هغه د ریاضً عملیه داسې لیکل کیږي:

۲ ÷ ۱ = ۲

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې ۸ دانې لوبیا په خپل میز باندې کښیږدي او یو زده کوونکی دې را وغواړي. او هغه ته دې ووایي دا ۸ دانې لوبیا په یوه تن باندې وویشه. که چیری زده کوونکی ۸ واړه لوبیا یوه تن ته ورکړل په حقیقت کې ۸ په یوه باندې وویشل شوی دئ. بیا دې همدې زده کوونکی ته ووایي د هغه د ریاضې عملیه ولیکه که چیری زده کوونکی داسې ۸ = ۱ ÷ ۸ ولیکل ښه به وي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکئ دې د ۲۵ په شمیر د جوارو دانې واخلي او یوه زده کوونکی ته دې ورکړي هغه ته دې ووایي دا ۲۵ دانې د جوارو په یوه تن باندې وویشه. زده کوونکی باید هغه ټوله یوه تن ته ورکړي.

– کله چې دا عمل يې سرته ورسول هغه ته دې ووایي د هغه د ریاضې عملیه ولیکه زده کوونکی باید ۲۵ = ۱ ÷ ۲۵

وليکي ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته وواېي: هر عدد چې په يوه باندې وويشل شي د ويش حاصل يې په خپله هم هغه عدد کيږي.

**۲- مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۱) مخ ته را وګرزوي هغه مثالونه چې په کتاب کې حل شوي دي هغه دې زده کوونکو ته تشريح کړي. ترڅو زده کوونکی په (۱) باندې د يوه عدد د ويشلو په نتيجه پوه شي. وروسته هغه تمرين چې د (۱۲۲) مخ په پای کې ورکړل شوی ده د هغه صحيح ځواب دې د زده کوونکو په واسطه پيدا شي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلي ښوونکي خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟
له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنی وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وايي ۳ چې په (۱) وويشل شي مساوي له څو سره کيږي؟
- څوک وايي هر عدد چې په (۱) وويشل شي مساوي له څو سره کيږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي.

۱۲۵ ÷ ۱ = ? ، ۵۸ ÷ ۱ = ? ، ۴۷ ÷ ۱ = ? ، ۲٦ ÷ ۱ = ?

**ذهنيت:**

د دې عمليې په پوهيدو سره د زده کونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي کولای شي د دې پوهي او مهارت څخه په ورځنۍ ژوند کې کار واخلي. خپل او د نورو ستونزي په آساني سره حل کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل او له ځانو سره راوړي.

۴۸۰ ÷ ۱ = ? ، ۳۹۵ ÷ ۱ = ? ، ۲۷۸ ÷ ۱ = ? ، ۱۲٦ ÷ ۱ = ?

# عنوان: معياري او غير معياري واحدونه

**اووه پنځوسم لوست، (۱۲۲) مخ**
**وخت: دوساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي چې پخوا اوږد والی او د شيانو اوږدوالی د څه شي په واسطه اندازه کيدل او د معيارى اوږدوالی واحدونو د پيژندلو لپاره چمتو شي.

**اصطلاح ګاني:** واحدونه، غير معياري، معياري.

**د لوست مرستندوی مواد:** قلمونه، لرګوټي، تارونه د مختلف اوږدوالي په درلودلو سره.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي هر يو د تاسو په وار سره خپل ميز لويښت کړئ او وواياست چې څو لويښتي کيږي؟ زده کوونکي په وار سره خپل د ميز اوږدوالي اندازه کوي ښايي چې مختلف رقمونه ووايي. ښاغلی ښوونکی هغه په دړې باندې وليکئ او زده کوونکو ته وبايه پاملرنه وکړئ. ستاسو د لويښتو اندازې عينی شئ يعنی برابري نه دي. او مختلف دي، بيا دې هغو ته ووايي دويم واري د قلمونو په واسطه يې اندازده کړئ چې څو قلمونه کيږي. ښايي چې، بيا هم مختلف اندازې ووايي. په همدې ډول څلور زده کوونکي دې را وغواړي او هغو ته دې ووايي: هر يو د تاسو د خپل ټولګی اوږدوالی قدم کړئ. ښاغلی ښوونکی دې د هر زده کوونکي د نوم مخامخ ته د هغه قدمونه وليکي او له نورو زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي. د قدمونو اندازې يو له بله سره مساوي دي او که مختلف؟ زده کوونکي د ټولګي دړې ته ګوري او وايي توپير لري. بيا دې پوښتنه وکړي. ولی توپير لري؟ که چيري زده کوونکي وکولای شي چې ووايي ښه به وي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې ووايي: د ځينو قدمونه کوچني او د ځينو قدمونه لوی دي له دې کبله توپير لري.

– ښاغلی ښوونکی! دا لوست د اندازې نيولو په برخه کې دئ زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې هغوی د لويښت يا



**اتم فصل**
**د اندازه کولو واحدونه**
**اووه پنځوسم لوست**
**غير معياري واحدونه**

**هدف:** زده کوونکي په دې پوه شي چې په پخوا وختوکې د شيانو اوږدوالی په څه شي اندازه کيده او هغوی د اوږدوالي معياري واحد دپيژندلو لپاره چمتو کړئ.

په خپل ټولګي کې د اندازې نيولو لپاره يو شئ وټاکئ د هغه جګوالي او يا اوږدوالي اندازه کړئ.



د اندازې نيولو يو واحد وټاکئ.



عيني شی په يوه بل واحد سره اندازه کړئ ا و چارټ بشپړ کړئ.

| | زه څه شئ اندازه کوم | داندازه کولو واحد | اندازه نيول |
|---|---|---|---|
| ۱ | ور | دزده کوونکي لويشت | کابو ۲۰ لويشتې |
| ۲ | ________ | ________ | کابو ________ |
| ۳ | ________ | ________ | کابو ________ |

**کورنۍ دنده:** د خپل ورور او خور قدونه د لويشت او پنسل په واسطه انـــدازه کړي، او وواياست چې هر يو څومره قد لرى؟ څو لويشتی يا څو پنسلونه؟

۱۲۲

نورو شيانو په واسطه يو د بل قدونه اندازه کړي او ښاغلی ښوونکی دې دا لوست په يوه بحث سره پيل کړي او زده کوونکو ته دې ووايي: کله چې مونږ وايو هغه شئ لرئ ده او يا نږدې ده له څه يا څرنګه پوهيږو، نو دا اندازې نيولو د واحدونو په واسطه پوهيږو، ستاسو لويښتي يا قدمونه نشي کولای چې صحيح او دقيق اندازې راکړي.

زده کوونکي دې په ګروپونو باندې وويشل شي هر ګروپ دې د ميز اوږدوالی، د ټولګي اوږدوالی، د خپل ټولګی بر د پنسل، قدمونو، لويښتو او نورو په واسطه اندازه کړي او نتيجې دې په يوه جدول کې په دړې باندې وليکي.

او خپل اندازه کړي شيان دې يو له بله سره پرتله کړي. او د يوي لوبې په توګه دې کار وکړي.

**۲ – مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کووونکو پام د کتاب (۱۲۲) مخ ته را وګرزوي. هغه مختلف شيان چې د اندازې نيولو لپاره په نظر کې نيول شوی دي. هغه دې له يو بل سره

پرتله کړي او په تقريبي توګه دې ووايي د کوم يوه اوږدوالی زيات او د کوم يوه لږ ده. بيا دې هر ګروپ د اندازه نيولو يو واحد وټاکی. د ټولګي دوره اوږدوالی دې په تقريبي توګه پيدا کړي. او جدول دې بشپړ کړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟

له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي چې د ميز اندازه ستاسو د ټولو په لوينښتو سره عينی شی ده او که توپير لري؟

– څوک وايي چې د ټولګی اندازه ستاسو د ټولو په قدمونو سره عينی شئ ده او که توپير لري؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي د لاندې شيانو اندازي په تقريبي توګه د خپل ټاکلي اندازي نيولو واحد په واسطه وليکي.

– د څوکی اوږدوالی.

– د تورې درې د بر اندازه.

– د ټولګي د بر اندازه.

– د خپل ځان د قد يا تنې اندازه.

**ذهنيت:**

زده کوونکي د شيانو د اندازي نيولو په پوهيدو خوښی کوي او په ذهن کې بدلون را منځ ته کيږي.

**ارزښت:**

زده کوونکی کولای شي د اړتيا په وخت کې د غير معياری اندازو څخه د ژوند په ورځنی معاملو کې کار واخلي خپل او د نورو ستونزي حل کړي.

**۴– کورنی دنده:**

هغه پوښتنه چې د (۱۲۲) مخ په وروستی برخه کې د کورنی دندې په توګه ټاکل شوی ده هر يو دې د کتاب له هدايت سره سم حل او له ځان سره دې راوړي.

# عنوان: معیاری واحدونه (متر، سانتي متر او ملي متر)

**اته پنځوسم لوست، (۱۲۳ – ۱۲۴) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يي)**

**هدف:** زده کوونکي د معیاري واحدونو په ګټه او ارزښت باندې پوه شي. په ژوند کې د هغو د کارولو له طریقې څخه کار واخلي.

**اصطلاح ګاني:** واحدونه، معیاری، متر، سانتي متر، ملي متر.

**د لوست مرستندوی مواد:** متر، خط کش چې په هغه کې سانتي متر او ملي متر ښودل شوي وي.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي چې زده کوونکو د لوېښتو یا پنسلونو په واسطه تقریبي اندازې حقیقت ته نژدې پیدا کړي دي او که نه؟ داسې نه وي چې هغوی له کارکولو پرته له خپل ځان لیکلې وي. بیا دې د اول نمبر او دویم نمبر زده کوونکو قدونه په ټولګي کې د لوېښتو او پنسلونو په واسطه په عملي توګه اندازه کړي. او ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: یو تن د تاسو دې توره دره د لوېښتو په واسطه اندازه کړي وواياست چې څو لوېښتي دي؟

دویم ګروپ: یو تن د تاسو دې توره دره د پسنل په واسطه اندازه کړي ودې وایې چې څو پنسله کیږي؟

دریم ګروپ: یو داوطلب تن د تاسو دې د ټولګي بر د قدمونو په واسطه اندازه کړي ودې وایې چې څو قدمونه کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی دې د یوه زده کوونکي څخه پوښتنه وکړي. هیڅ وال تو کر د څه شي په واسطه اندازه کوي، ښایي چې زده کوونکي ځواب ووايي د متر په واسطه، که چیرې ونشي ویلای په وار سره دې له نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي ترڅو صحیح ځواب په لاس راوړي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې ووايي د اوږدوالي د اندازې د پیدا کولو لپاره یو آله ده چې متر بلل کیږي. په همدې ډول له یوه بل زده کوونکي څخه دې پوښتنه وکړي ستاسو د ټولګي اوږدوالی څو متره دئ؟ ښایي چې زده کوونکي صحیح ځواب ونشي ویلای. ښاغلی ښوونکی هغه متر





اته پنځوسم لوست

معیاري واحدونه (متر، سانتي متر او ملي متر)

هدف: زده کوونکي دمعیاري واحدونو په ګټه اوپه ورځنۍ ژوند کې دهغو داستعمالولو په طریقه پوه شي.

**متر:** د شیانو اوږدوالی په متر سره اندازه کوي چې یومنل شوې معیاري اندازه ده. مثلاً د تو کر اوږدوالی، د درې اوږدوالی، ستاسو د ټولګي اوږدوالي... پــه متر سره اندازه کیږي. لاندې شکل د یوه متر نمونه ده. یو متر په سلو مساوي برخو ویشل شوی دی او د هغه هرې برخې ته سانتي متروايي یعنې:



**خط کش:** کوچنی اولنډ اوږدوالی د خط کش په واسطه اندازه کیږي تاســو کولای شئ د خپل کتاب اوږدوالی او بر د خط کش په واسطه اندازه کړئ. او په همدې ډول کولای شئ د خپل قلم اوږدوالی دخط کش په واسطه انــدازه کړئ چې څو سانتي متره کیږي.

دا یو خط کش ده او ۱۰ سانتي متره اوږدوالی لري.



د خپلې لوېشتې اندازه دخط کش په واسطه معلومه کړئ او وواياست چې څو سانتي متره ده.

۱۲۳

چې له ځان سره دې راوړئ ده زده کوونکو ته يې وښياست. هغو ته وواياست، دا یو متر دئ. بیا یوه زده کوونکي ته وواياست اوس د خپل ټولګي اوږدوالي د دې متر په واسطه اندازه کړئ چې څو متره کیږي؟ زده کوونکي يې په عملي توګه اندازه کوي او د خپل ټولګي اوږدوالی په متر سره نورو زده کوونکو ته ښیي. او بیا یوه بل زده کوونکي ته ورکړئ ترڅو د خپل ټولګي بر اندازه کړي. په همدې ډول د څو زده کوونکو په واسطه دې د ټولګي اوږدوالي او بر د متر په واسطه اندازه شي پاملرنه وکړئ چې د اوږدوالي او بر اندازې د ټولو یو (عینې) اندازې دي او که نه؟

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي کله چې تاسو د خپل قدمونو په واسطه اندازه کړل ولیدل شو چې مختلفې اندازې په لاس راغلل. خو کله چې څو واري مو د متر په واسطه اندازه کړل. په ټولو حالتونو کې عینې اندازه په لاس راغلل متر یو منل شوی معیار دی. که چیرې له متر څخه کار واخستل شي. د هیچا حق نه ضایع کیږي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي متر په ټولو ښارونو او په ټوله نړۍ کې عینې اوږدوالی او اندازه لري اوس که چیرې

همدا متر په سلو مساوي برخو وويشو. هره برخه يې د سانتي متر په نوم يادېږي که چېرې تاسو خپل خط کش ته پاملرنه وکړئ. خط کش د سانتي متر په حساب ويشل شوی دی کوچنۍ او لنډ اوږدوالي لکه د کتاب اوږدوالی او بر، د قلم اوږدوالی، او داسې نور د خط کش په واسطه اندازه کېږي چې څو سانتي متره دي، ستاسو خط کش په ۱۰ مساوي برخو ويشل شوی دئ. هره برخه يې يوه سانتي متر ده. اوس که چېرې يو متر په لس مساوي برخو وويشی هره برخه يې يو ديسی متر ده او همدارنګه که چېرې يو سانتي متر په لس مساوي برخو وويشل شي هره برخه يې يو ملی متر ده، او په درې باندې دې داسې وليکل شي.

| |
|---|
| ۱ متر ۱۰ ديسي متره کېږي. |
| ۱ متر ۱۰۰ سانتي متره کېږي. |
| ۱ متر ۱۰۰۰ ملي متره کېږي. |

**۲- مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۳ او ۱۲۴) مخونو ته را وګرزوی د خط کش هغه شکل چې په کتاب کې راغلی ده، يو، يو دې په صحيح توګه زده کوونکو ته وروپېژندل شي ترڅو په خط کش کې سانتي متر او ملی متر وپېژندلای شي. بيا دې هغه اوږدوالي چې په (۱۲۴) مخ کې راوړل شوي دي اندازه دې کړئ. او په خپلو کتابچو کې دې کار وکړي هر ګروپ دې په جلاء توګه وليکي او جدول دې بشپړ کړي. بشپړ شوي جدولونه دې يو له بله سره پرتله کړي چې کوم يو ګروپ حقيقت ته نژدې ده.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړئ وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وايي چې يو متر څو ديسي متره کيږي؟
- څوک وايي چې يو متر څو سانتي متره کيږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړائ شي لاندې شيان اندازه کړي.

- هر يو زده کوونکی دې خپل قد په سانتي متر سره اندازه او په خپلو کتابچو کې وليکي.




زه له يو متر څخه اوږد يم.

۱ متر ۱۰ ديسي متره کېږي.

۱ متر ۱۰۰ سانتي متره کېږي.

۱ متر ۱۰۰۰ ملي متره کېږي.

د خپل يوه ملګري سره يوځای کار وکړئ.

اوږدوالي په سانتي متر، اومتر سره تخمين او وروسته يې اندازه کړئ ———

| | د لاندې شيانو اندازه اخيستل | تخميني | اندازه نيول |
|---|---|---|---|
| ۱ | له سره د پښو ترګوتو پورې | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۲ | ستاسو د مېزجګوالی | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۳ | د ټولګي اوږدوالی | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۴ | د ټولګي د بر واټن | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۵ | د ټولګي د څلورو خواو اندازه | کابو ——— متره | ——— متره |
| ٦ | ستاسو د څوکۍ اوږدوالی | کابو ——— متره | ——— متره |
| ۷ | ستاسو د ټولګي د وره لوړوالی | کابو ——— متره | ——— متره |

**کورنۍ دنده:**

حل يې کړئ: د حيدر د تنې لوړوالی ۱۳۰ سانتي متره دی او د ادريس د تنې لوړوالي ۱۱۵ سانتي متره دی د حيدر د تني اوږدوالی څومره زيات دی؟ ———

۱۲۴

- هر يو زده کوونکی دې د خپل د حويلۍ د وره جګوالی په سانتي متر سره اندازه او په کتابچو کې دې وليکي.
- هر يو زده کوونکی دې په خپله خوښه د يوه شئ جګوالی په سانتي متر سره اندازه کړي د شي نوم او د هغه اندازه دې په کتابچې کې وليکي.

**ذهنيت:**

د اوږدوالي د اندازو د مختلف واحدونو په واسطه د شيانو په اندازه کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د اوږدوالي د مختلف واحدونو په پيژندلو سره کولای شي له هغو څخه د ورځنۍ ژوند د پاره کار واخلي مثلاً هغوی د شيانو د اوږدوالي او د بر اندازه کولو لپاره له مناسب واحد څخه کار اخلي ترڅو خپل ستونزې حل کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

د (۱۲۴) مخ په وروستۍ برخې کې هغه پوښتنه چې د کورنۍ دندې لپاره ټاکل شوې ده. هغه دې زده کوونکو ته وښيي تر څو سبا ته يې له ځانو سره راوړي.

## عنوان: د ټوټه خطونو اندازه کول د خط کش په واسطه

**نه پنځوسم لوست، (۱۲۵ – ۱۲۶) مخونه**

**وخت: دوه ساعت (۴۵ دقيقه يي)**

**هدف:** زده کوونکي چمتو کوي ترڅو دهندسي شکلونو د محيط (چاپيريال) د اندازه کولو لپاره له خط کش څخه کار واخلي.

**اصطلاح ګاني:** اندازه، اوږدوالي، ټوټه خط، خط کش، محيط (چاپيريال) او شکلونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، په مختلف اوږدوالي سره تارونه، لرګوټي.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي. د زده کوونکو اشتباګاني دې په درې باندې وليکل شي. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې د شيانو د اندازه کولو او د اوږدوالي د واحدونو په برخه کې بحث او مذاکره وکړي صحيح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پيدا شي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په درې باندې تشريح کړي. بيا دې له زده کوونکو څخه په ګروپي يا انفرادي ډول لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: د خپل د ټولګی د درې اوږدوالی متر کړئ وواياست چې څو متره دی؟

دويم ګروپ: يو متر څو سانتي متره کيږي؟ او يو سانتي متر څو ملي متره کيږي؟

دريم ګروپ: يو متر څو ملي متره کيږي؟ او يو متر څو ديسي متره کيږي؟

– ښاغلی ښوونکی دې يو لرګوټۍ په خپل ميز باندې کښيږدي او يو زده کوونکی دې را وغواړي او يو خط خش دې ورته ورکړي، هغه ته دې ووايي د دې لرګوټي اوږدوالی د خط کش په واسطه اندازه کړه که چيري زده کوونکی د لرګوټي اوږدوالی اندازه کړاي شي، ښه به وي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې په ترتيب سره د خط کش صفري نقطه (ټکی) د لرګوټي په يوه سر باندې کښيږدي. او پاملرنه دې وکړي چې




**نه پنځوسم لوست**

**د ټوټه خطونو د اوږدوالي اندازه کول د خط کش په واسطه**

هدف:زده کوونکي دې ته چمتو شي چې دهندسي شکلونو دچاپيريال (محيط) داندازه کول دپاره دخط کش څخه کار واخلي.

ګرانو زده کوونکو! تاسو په تيرو لوستونوکې د خط کش له نامه سره بلد شوي ياست. او پوهيږئ چې د لنډ اوږدوالي اندازه کولو لپاره په کار وړل کيږي، مثلاً که چيرې وغواړو د يوه پنسل، اوږدوالی اندازه کړو د خطکش د صفر ټکی (نقطه) د پنسل په يوه سر باندې ايږدو، وينو چې د قلم بل سر د خط کش له کومي درجې سره مطابقت کوي، څرنګه چې د پنسل بل سر د ۱۰ له عدد سره مطابقت کوي نو وايو چې د پنسل قلم اوږدالي يا اندازه ۱۰ سانتي متره دي.

او په همدې ډول دا يوټوټه خط دئ. د دې ټوټه خط اندازه يا اوږدوالی څرنګه چې د پنسل اوږدوالی مو معلوم کړئ، په هم هغه ډول يې اندازه کوو ليدل کيږي چې دنوموړي ټوټه خط اوږدوالی ۵ سانتي متره يا ۵۰ ملي متره دئ.




که چيرې وغواړو چې يو خط د ۴۰ ملي مترو په اوږدالي رسم کړو د دې ټوټه خط اوږدوالي په څو سانتي مترو سره دخط کش په مخ په نښه کوو.
د خپل يوه ملګري سره يوځای کار وکړئ يو خط کش استعمال کړئ او پوښتنو ته ځواب وواياست.

۱– يو سانتي متر څو ملي متره کيږي
يو سانتي متر ____۱۰___ ملي متره کيږي.
۲– ۲ سانتي متره څو ملي متره کيږي؟
۲ سانتي متره ____۲۰___ ملي متره کيږي.

۱۲۵

د لرګوټي بل سر د خط کش له کوم رقم يا عدد سره تقابل کوي. بيا دې زده کوونکو ته ونبيي. ترڅو ټوله زده کوونکي عدد ولولي او په خپله زده کوونکي ووايي چې د لرګوټي اوږدوالي څو سانتي متره دئ.

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې څو تارونه په خپل ميز باندې کښيږدي. او زده کوونکي دې په وار سره را غواړي چې د تارونو اوږدوالی پيدا کړي. او نورو زده کوونکو ته دې ووايي. يو زده کوونکی دې د تارونو اوږدوالی په درې باندې وليکي. يو بل زده کوونکی دې د تارونو اوږدوالی له زياتو څخه د لږو خواته ترتيب کړي. بيا دې ښاغلی ښوونکی څو ټوټه خطونه په درې باندې رسم کړي. او له هر ګروپ څخه دې يو يو زده کوونکی په وار سره را وغواړي ترڅو د ټوټه خطونو اوږدوالی معلوم کړي او په درې باندې دې وليکی بيا دی ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووايي تاسو پوهيږي چې د خط کش څخه د لنډو اوږدوالو لپاره کار اخلي مثلاً که چيری وغواړو د يوه پنسل اوږدوالی اندازه کړو. د خط کش صفری نقطه د پنسل په يوه سر باندې ايږدو بيا ورته ګورو چې د پنسل

بل سر د خط کش له کومي درجې سره تقابل یعنی برابریږي.
که چیري بل سر یې د ۱۲ د عدد سره مقابل یا برابر شي نو وایو چې د پنسل اوږدوالي ۱۲ سانتی متره دئ. په همدې ډول کولای شو په ترتیب سره د ټوټه خطونو اوږدوالي اندازه او پیدا کړو. بیا زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې هر یو خپل پوښتني، د ریاضي د کتاب او کتابچو اوږدوالی د خط کش په واسطه اندازه کړي. او په خپلو کتابچو کې ولیکي. ښاغلی ښوونکی دی څارنه کوي چې زده کوونکي په صحیح او سمه توګه له خط کش څخه کار اخلي او که نه؟ د اشتباه په صورت کې دې لارښوونه ورته وکړئ.

**۲- مشق او تمرین:**
ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۵، ۱۲۶) مخونوته را وګرزوي د خط کش څخه د کار اخستلو طریقه چې په (۱۲۵) مخ کې د اندازې نیولو لپاره په کار وړل شوی دئ زده کوونکو ته دې تشریح کړي ترڅو زده کوونکی وکړائ شي د خط کش په واسطه د ټوټه خطونو اوږدوالی پیدا کړي بیا دې د ۱۲۵ مخ (۱، ۲) ګڼې پوښتنې لومړي ګروپ ته، د (۱۲۶) مخ (۴، ۵) ګڼې پوښتنې دي دویم ګروپ ته او د همدې مخ (۵) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړي چې په ټولګی کې په ګروپې ډول کار وکړئ او په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

**۳- آرزونه:**
د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**
- څوک وایې یو سانتی متر څو ملی متره کیږي؟
- څوک وایې یو دیسي متر څو سانتی متره کیږي؟

**مهارت:**
زده کوونکی وکړائ شي د خط کش په واسطه په لاندې اوږدوالي سره ټوټه خطونه رسم کړي.
د ۱۵ سانتی متر په اوږدوالی سره، د ۸ سانتی مترو په اوږدوالی، د ۱۰ سانتی مترو په اوږدوالی، د ۱۲ سانتی مترو په اوږدوالی.

۳. ۳ سانتي متره څو ملي متره کیږي؟
۳سانتي متره _۳۰_ ملي متره کیږي.
۴. ۴۰ ملي متره څو سانتي متره کیږي؟
۴۰ ملي متره _۴_ سانتي متره کیږي.
۵, ۱۵ ملي متره څو سانتي متره کیږي؟
۱۵ ملي متره _۱_ سانتي متره او_۵_ ملي متره کیږي.

**تمرین**
لاندې ټوټه خطونه دخط کش په واسطه اندازه کړئ او ووایاست چې هر یو یې څو سانتي متره او څو ملي متره دي.



۱۲۶

**ذهنیت:**
د ټوټه خطونو په رسم کولو او اندازه کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی کوي.

**ارزښت:**
زده کوونکي کولاي شي د اړتیا په وخت کې د نظر وړ شیانو اوږدوالي په صحیح او دقیق توګه سره اندازه کړي. خپل او د نورو ستونزي حل کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**
په (۱۲۶) مخ کې هغه پوښتنې چې د تمرین په عنوان سره شتوالی لري زده کوونکو ته دې د کورنۍ دندې په توګه ورکړل شي. ترڅو ټوټه خطونه د خط کش په واسطه اندازه کړي چې هر یو یې څو سانتی متره او څو ملی متره کیږي. په خپلو کتابچو کې دې رسم او حل کړي.

## عنوان: د هندسي شکلونو پېژندنه

**شپيتم لوست، (۱۲۷) مخ**
**وخت: دوساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي په خپل ورځنۍ ژوند کې د هندسي ساده شکلونو سره مخامخ کيږي. نو د هغو پيژندنه ورته لازم ده.
**اصطلاح ګاني:** هندسي شکلونه، مربع، مستطيل، مثلث، دائره.
**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، تار، او نور د چاپيرال مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د يوه ګروپ کوړنۍ دنده دي د بل ګروپ په واسطه وکتل شي اشتباګاني دي په دړي باندي وليکل شي زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چي د اشتباګانو په برخه کې بحث او خبري وکړي. کوشش دي وشي چي صحيح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پيدا شي پرته له هغه ښاغلي ښوونکی دي صحيح ځوابونه په دړي باندي تشريح کړي بيا دي له زده کوونکو څخه لاندي پوښتني وکړي:

له لومړي ګروپ څخه فريد: خپل د کتاب اوږدوالی د خط کش په واسطه اندازه کړئ وواياست چي څو سانتي متره کيږي.

له دويم ګروپ څخه امين: يو سانتي متر څو ملي متره کيږي؟

له دريم ګروپ څخه احمد: ۱۲ ملي متره څو سانتي متره او څو ملي متره کيږي؟

– ښاغلي ښوونکی! له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ څوک په ټولګي کې مثلث ښودلای شي. ښايي چې په ټولګي کې داسي زده کوونکي پيدا شي چې په ټولګي کې د مثلث نمونه وښيي. بيا يوه بل زده کوونکي ته وواياست په ټولګي کې د مربع په ډول شکل شته دئ؟ کوم دی؟ وښياست؟ که چيري زده کوونکی وکولای شي چې وښيي، ښه به وي، پرته له هغه ښاغلي ښوونکی دي وښيي. ښاغلي ښوونکي دي د زده کوونکو نومونه په وار سره واخلي، ترڅو دائره او مستطيل وښيي او په وار سره دي له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. مثلث څو ګوټه (کونج) لري؟ مستطيل څو ګوټه (کونج) لري؟ دائره څو ګوټه لري؟

بيا يو زده کوونکی د ټولګي مخې ته را وغواړئ. هغه ته دري داني لرګوټي ورکړه. او ورته وواياست له دې لرګوټو


نهم فصل (هندسه)
شپيتم لوست
د هندسي شکلونو پيژندنه

هدف- څرنګه چي زده کوونکي په ورځني ژوند کي دهندسي ساده شکلونو سره مخامخ کيږي نولازمه ده چي د هغو سره پيژندګلوي ولري



**تمرين:**

۱– د(سړه کېږ) په شکل کې مستطيل، مربع، دايره او مثلث وښاياست.
۲– په پورتني شکل کې څومستطيلونه، څو مربع ګاني، څو دايري او څـــو مثلثونه ليدلاي شئ.
۳– په مخامخ شکل کې څو مثلثونه څو مربع ګاني څو دايري او څو مستطيلونه دي وښاياست.

ځواب: يو مثلث دوه مربع ګاني او يو مستطيل ليدل کيږي

۱۲۷

څخه يو مثلث جوړ کړه. که چيري زده کوونکی وکولای شي ښه به وي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دي له لرګوټو څخه مثلث جوړ کړي. او بيا دي همدا عمل د زده کوونکو په واسطه تکرار شي. په همدې ډول يوه زده کوونکی ته دې څلور لرګوټي چې مساوي اوږدوالي ولري ورکړئ. او هغه ته وواياست له دی لرګوټو څخه يوه مربع جوړه کړئ. ښايي چې زده کوونکی مربع جوړه کړي. پرته له هغه مرسته او لارښوونه دې وشي.

– ښاغلی ښوونکی دې د يوه زده کوونکی نوم واخلي او هغه ته دې يو تار ورکړي. ورته ودې وايي. څرنګه کولای شي يوه دائيره جوړه کړي؟ که چيرې زده کوونکی وکولای شي ښه تر ښه، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې د تار دواړه سرونه سره وتړي داسي دې يوه حلقه جوړه کړي چې دايره وښيي. او همدارنګه څلور لرګوټي چې دوه په دوه سره مساوي وي يوه زده کوونکي ته دې ورکړي. چې له دې لرګوټو څخه يو مستطيل جوړ کړي. ښايي چې زده کوونکی ونشی کړای چې مساوي لرګوټي د يو بل

مخامخ کښېږدي او مستطیل جوړ کړي. ښاغلی ښوونکی دې مرسته وکړي.
او یا دې په خپله لرګوټې داسې کښېږدي چې له هغو څخه مستطیل جوړ شي. او هم په دې شکل کې دې د مستطیل او مربع توپیر ووایې. او هم ورته وواياست چې مثلث دري ګوټونه (کنجونه) او دري ضلعې، مستطیل او مربع، څلور ضعلې او څلور ګوټونه (کنجونه) لري.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۷) مخ ته را وګرزوی هغه هندسي شکلونه چې په دې مخ کې رسم او ترتیب شوي دي. د هر یوه نوم زده کوونکو ته واخلئ د هر شکل زاویه (کونج) او ضلعه ور وښیاست. ترڅو زده کوونکي د هندسې شکلونو په تشخیص کې ورتیا پیدا کړي. بیا دې زده کوونکي د تمرین پوښتنې په ګروپې ډول کار وکړي په داسې حال کې (۱) ګڼه پوښتنه دې لومړی ګروپ ته، (۲) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او (۳) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړی ترڅو د کتاب شکلونه په دقت سره وګوري او ځوابونه یې په کتابچو کې ولیکي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې مثلث څو ضلعې لري؟

– څوک وایې چې مربع څو ضلعې لري؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي لاندې شکلونه رسم کړئ:

– یو مثلث رسم کړئ.

– یوه مربع رسم کړي.

– یو مستطیل رسم کړی.

– یوه دایره رسم کړي.

**ذهنیت:**

د هندسې شکلونو په پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي د ریاضی سره مینه پیدا کوي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې منظم هندسې شکلونو څخه په ورځنۍ ژوند کې کار اخلي کولای شي په خپل کورونو کې د ګلانو یا کرهنې منظم پټی د مثلث، مربع، مستطیل او دائیری په ډول جوړ کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

هر یو زده کوونکی دې د موادو څخه یو مثلث، یوه مربع، یو مستطیل او یوه دائیره جوړه کړي او له ځان سره دې راوړي.

## عنوان: د هندسي شکلونو پيژندنه

**(۱۲۸– ۱۲۹) مخونه**

**وخت: دوه ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي هندسي شکلونه يو له بله تشخيص کړي ترڅو په ژوند کې له ستونزو سره مخامخ نشي.

**اصطلاح ګانې:** مثلث، مربع، مستطيل، دايره، هندسې.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، مثلث، مربع، دائيره او مستطيل چې له کاغذ څخه جوړ شوي وي.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي، اشتباګانې دې په دړې باندې وليکل شي صحيح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پيدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په دړې باندې تشريح کړي. بيا دې لاندې پوښتنې په ګروپي يا انفرادي ډول له زده کوونکو څخه وکړي:

له لومړی ګروپ څخه محمود: مثلث څو کونجونه او څو ضلعي لري؟

له دويم ګروپ څخه امين: مربع او مستطيل هر يو يې څو کونجونه او څو ضلعي لري؟

له دريم ګروپ څخه صابر: آيا دائيره ضلعي او کونجونه لري او که نه؟

– ښاغلی ښوونکی هغه شکلونه چې مخکې له کاغذ يا لرګي څخه جوړ شوي دي، هغه په خپل ميز باندې کښيږده بيا د يوه زده کوونکی مثلا: فريد نوم واخله هغه ته ووايه له دې شکلونو څخه د مثلث ډول شکل جلاء کړه، په هم هغه شکل کې کونجونه او ضلعي نورو زده کوونکو ته وښيه، او په دړې باندې رسم کړه. پاملرنه وکړئ چې فريد په ورښتيا سره مثلث تشخيص کړئ ده او جلا کوي. او که کوم بل شکل جلا کوي که چيري مثلث يې جلاء نکړ، ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي. په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې د يوه بل زده کوونکی نوم واخلي هغه ته دې ووايې. له دې شکلونو څخه د دائيري

۴– شکلونوته مخامخ نومونه شته دي، تاسو خپلو کتابچو ته نقل کـــړئ. د يوه تير په واسطه شکل داړوند نامه سره ونښلوي، ګوټونه (کـــنج) او ضلعي يې وښاياست.




۱۲۸

ډول شکل جلاء کړه د فريد غوندې نورو زده کوونکو ته يې وښيه، که چيري زده کوونکي په ورښتيا سره دائيره يې جلا کړله، ښه به وي، او که چيري کوم بل شکل واخلي، نو په حقيقت کې تر اوس پوري يې دائيره پيژندلې نه ده. نو بايد چې دائيره په صحيح او دقيق توګه ور وپيژندل شي.

بيا دې يو دريم زده کوونکي ته ووايې چې راشي له دې شکلونو څخه د مربع ډول شکل جلاء کړي د هغې کونجونه او ضلعي نورو زده کوونکو ته وښيې. که چيری زده کوونکي مربع جلا کړه د هغې کونجونه او ضلعي يې وښودلی ښه به وي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې مربعه او مستطيل و زده کوونکو ته ور وپيژني.

– ښاغلی ښوونکي دې د وار په ترتيب سره له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

ستاسو ټولګی کوم هندسی شکل لري؟

ستاسو د ټولګي دړه کوم هندسې شکل لري؟

ستاسو د ميز مخ کوم هندسې شکل لري؟

ستاسو د ښوونځی احاطه (چاپيريال) کوم هندسی شکل لري؟

په ټولګۍ کې مثلث ډول شکل شته دئ وښیاست؟
په ټولګۍ کې دائیره ډول شکل شته، وښیاست؟
ستاسو د کور قلعه کوم هندسي شکل لري؟
په همدې ډول نوري پوښتنې دې وشي په عملي توګه دې مثلث، مربع او مستطیل د زده کوونکو په واسطه جوړ کړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۸، ۱۲۹) مخونو ته را وګرزوئ هغه شکلونه چې د کتاب په (۱۲۸) مخ کې رسم شوي دي زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې رسم او د هر شکل نوم د هغه مخامخ ته ولیکي. بیا دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۹) مخ ته را وګرزوي. د لومړی چوکات شکلونه دې لومړی ګروپ ته، د دویم چوکات شکلونه دې دویم ګروپ ته او د دریم چوکات شکلونه دې دریم ګروپ ته ورکړي ترڅو په ګروپي ډول کار وکړي او هر ګروپ په هندسي شکلونو کې د مربع، مستطیل، دائیرې او مثلث شمیر پیدا کړي او په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی پوه شي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې مثلث او مربع یو له بله څه توپیر لري؟
– څوک وایې چې دایره او مستطیل یو له بله څه توپیر لري؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي لاندې شکلونه په خپلو کتابچو کې رسم کړي.

– مثلث، مربع، دایره او مستطیل.


۵ – په لاندې هندسي شکلونو کې دمربع ګانو، مستطیلونو، دایـــرو او مثلث شمېر پیداکړئ.



۶– د خپل کور په چاپېریال (محیط) کې کوم شیان دایروي شکل، کـــوم شیان مثلث شکل، کوم شیان مستطیل شکل او کوم شیان مربع شـــکل وینئ نوم یې واخلئ.

۱۲۹

**ذهنیت:**

د هندسې شکلونو په پیژندلو او رسم کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د هندسې شکلونو په پوهیدو او تشخیص کولو سره کولای شي په ورځنۍ ژوند کې کار واخلي د اړتیا په وخت کې په لازم ځای کې د خپل او نورو د ستونزو د حل لپاره له هغو څخه کار واخلي.

**۴– کورنۍ دنده:**

په (۱۲۹) مخ کې (٦) ګڼه پوښتنه د کورنۍ دندې په توګه ورکړل شوی ده ترڅو زده کوونکي پلټنې وکړي. د خپل کور په چاپیریال کې دایره وي ډول، مثلث ډول، مستطیل ډول او مربع ډول شیانو، نومونه واخلي او په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# عنوان: محیط (چاپیریال)

**(۱۳۰، ۱۳۱) مخونه**

**وخت: دوه ساعت (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د یوه شکل شاوخوا، د محیط (چاپیریال) په نامه تشخیص او د خط کش په واسطه یې اندازه کړي.

**اصطلاح ګاني:** محیط، شاوخوا، اندازه.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، متر.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي ودې لیدل شي ټولو زده کوونکو چې د دائیره یې، د مربع، د مثلث او د مستطیل شکلونه لیدلي او نومونه یې اخلي آیا ټوله زده کوونکی د پورته شکلونو په برخه کې عینی فکر او نظر لري او که مختلف فکرونه ځرګنده وي. په دې برخه کې زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې په خپل منځ کې بحث اوخبري ورباندې وکړي او یو بل ته قناعت ورکړي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح او سم شکلونه زده کوونکو ته تشخیص او هغو ته دې وښيي یا دې لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: دوه مربع ډوله شکلونه په ټولګی کې وښیاست؟

دویم ګروپ: دوه مثلث ډوله شکلونه په ټولګی کې وښیاست؟

دریم ګروپ: دوي دائیره وي ډوله شکلونه په ټولګی او یا ښوونځی کې وښیاست؟

– ښاغلی ښوونکی دې یوه زده کوونکی ته وواېي خپل د میز ځلور خواوي (شاوخوا) لوېښت کړه. زده کوونکی په عملي توګه خپل د میز ځلور خواوي لوېښت کوي واېي چې ۱۸ لوېښتي یا ... لوېښتي شو. بیا دې ټولو زده کوونکو ته وواېي تاسو هر یو د خپل میز ځلور خواوي (شاوخوا) لوېښت کړئ. هغوی هر یو د خپل میز ځلور خواوي لوېښت کوي. ښايي چې په دې صورت کې زده کوونکي مختلف عددونه وواېي.

– ښاغلی ښوونکی دې د هغو ټولو ځوابونوته صحیح وواېي. بیا دې زده کوونکو ته وواېي تاسو ټوله یا هر یو یو خط کش لرئ، تاسو ټوله د خپل د ریاضی د کتاب ځلور خواوي د خط کش په واسطه اندازه کړئ وواياست چې څو سانتي متره کیږي په دې صورت کې باید د ټولو ځواب عینی عدد وي که چیری ځوابونه مختلف وي خوا مخواه ځینو زده کوونکو اشتباه کړي ده. بیا دې


محیط

د یوه شکل ګرد چاپیرواتن دهمهغه شکل دمحیط په نامه یادیږي.

۴ سانتی متره

۳ سانتی متره

۴ سانتی متره

۲ سانتی متره

۸ سانتی متره

۲۱ سانتي متره = ۲ + ۳ + ۴ + ۴ + ۸

محیط = ۲۱ سانتي متره

وار ونیسئ دځنډو داوږدوالي اندازه جمع کړئ ترڅو محیط پیداکړئ.

۱.

۱۲ سانتی متره

ګردچاپیره ۳۲ سانتي متره

محیط= ۳۲ سانتي متره

۴ سانتی متره

۴ سانتی متره

۱۲ سانتی متره

۲.

۴ سانتی متره

۱۶ سانتی متره

ګردچاپیره ۲۹ سانتي متره

محیط= ۲۹ سانتي متره

۹ سانتی متره

۱۳۰

ښاغلی ښوونکی په خپله د ریاضي د کتاب ځلور خواوی (شاوخوا) د خط کش په واسطه په دقیق توګه اندازه کړي او حقیقی اندازه دې زده کوونکو ته وواېي هغه چا چې اشتباه کړي ده دویم واري دې اندازه کړي ترڅو عینی عدد په لاس راوړي په همدې ډول هغو ته دې وواېي تاسو ټوله خپل د دريا پېنتو د کتاب ځلور خواوي (شاوخوا) اندازه کړئ او ځواب یې په لاس راوړئ ښايي چې بیا هم مختلف ځوابونه پیدا شي. خو ښاغلی ښوونکی دې په دقیق توګه د خط کش په واسطه اندازه کړي او حقیقی اندازه دې زده کوونکو ته وواېي هغه چا چې اشتباه کړي ده ورباندې پوه شي. همدارنګه متر دې یوه زده کوونکی ته ورکړي ترڅو زده کوونکی د خپل ټولګی ځلور خواوي (شاوخوا) اندازه کړي او نورو زده کوونکو ته یې وښيي او بیا دې د ریاضی د افادې په واسطه داسې پیدا کړي:

د ټولګی اوږدوالی ۷ متره
د ټولګی بر ۴ متره
د ټولګی اوږدوالی ۷ متره
د ټولګی بر ۴ متره

<= ۲۲متره=۴ متره+۷متره+۴متره+۷متره

زده کوونکی باید وواېي چې د ټولګي ځلور خواوي ۲۲ متره دئ.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي دا چې د شکل څلور خواوي يا شاوخوا وايو. د هغه د محيط په نامه هم ياديږي. چې له دې وروسته د شکل يا د ټولګی يا د ميدان محيط وايو. ښاغلی ښوونکی، محيط د شکلونو د شاوخوا فاصله ده کوشش دې وشي ترڅو زده کوونکي د شيانو او شکلونو محيط په سانتی متر او يا متر سره پيدا کړي که چيرى کوم زده کوونکی اشتباه کوي د محيط د پيدا کولو صحيح طريقه دې وروښودل شي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳۰، ۱۳۱) مخونو ته را ورګرزوئ هغه مثال چې په (۱۳۰) مخ کې حل شوی ده په صحيح توګه يې تشريح کړئ بيا (۱، ۲) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ، (۳، ۴) ګڼې پوښتنې دويم ګروپ ته او (۵) ګڼه پوښتنه دريم ګروپ ته دې ورکړل شي ترڅو زده کوونکي په ګروپې ډول کار وکړي. د شکلونو محيط يا شاوخوا په سانتی متر سره پيدا کړي. ښاغلی ښوونکی ښايي چې ځنی شکلونه د سانتی متر په حساب پوره يا بشپړ نه وي يعنی ملی متر هم ولري. تاسو ملی متر له نظره واچوي يوازی د سانتی متر په حساب په پوره يا بشپړه توګه په نظر کې ونيسی. ښاغلی ښوونکی دې د کار د جريان څارنه وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی پوه شی چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنی وکړئ د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي چې د شکل يا شيانو شاوخوا د څه په نامه ياديږي؟

– څوک وايي چې د يوه تړلي شکل ټولو خواوته محيط ويلای شو او که نه؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د لاندې شکلونو محيط پيدا کړي.






۳–

گردچاپیره ۲۰ سانتي متره
محیط= ۲۰ سانتي متره

۴– وار ونيسئ دځندو اوږدوالي اندازه کړئ ، جمع يې کړي ترڅو محـــيط يې پيداکړي .

گردچاپیره ۲۳ سانتي متره
محیط= ۲۳ سانتي متره

۵. په خپله خوښه يو شکل رسم کړئ وروسته دهغه محيط په سانتي متر سره اندازه کړئ.

گردچاپیره ۲۰ سانتي متره
محیط= ۲۰ سانتي متره

**کورنۍ دنده** : په کورکې دوه شکله پيداکړئ اودهغو محيطه اندازه کـــړئ او خپلی نتيجې په ټولګي کې ووایاست.

د زده کوونکو په واسطه دې کار وشي.

۱۳۱




**ذهنيت:**

د شکلونو او شيانو د محيط په اندازه کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دقيق اندازه کولو څخه په خپل ورځنی ژوند کې ګټه اخلي هغوی کولای شي د خپل کور لپاره فرش چې زياتوالی او کموالی ونکړي را ونيسي. د کړکيو او نورو اندازي په دقيق توګه حساب کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د کتاب د (۱۳۱) مخ په پای کې پوښتنه د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوي ده، هر زده کوونکی دی دوه شکلونه په کور کې پيدا کړی د هغو محيط دې اندازه کړي او له ځان سره دې راوړي سبا ته دې د زده کوونکو ځوابونه پرتله او د نتيجو ارزونه دې وشي.

# عنوان: په هندسي شکلونو کې کسر

**یو شپیتم لوست، (۱۳۲، ۱۳۳) مخونه**
**وخت: دوه ساعت (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** د زده کوونکو پیژندنه د کسر څخه ده، په هندسي شکلونو کې د کسر ښودنه ډېره آسانه طریقه د زده کوونکو لپاره او د هغوی پوهیدل د کسر په مفهوم باندې ده.

**اصطلاح ګاني:** کسر، پیژندنه، پوهیدل، برخې، مساوي او غیر مساوي.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د کاغذ پاڼه، تار او نور د چاپیریال مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلي ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي. د ګروپونو د پوښتنو د حل نتیجې دې یو له بله سره پرتله شي پاملرنه وکړئ زده کوونکو د عیني شکلونو او شیانو محیط چې اندازه کړي دي یو له بله سره مساوي دي او که توپیر لري، اشتباګاني دې په درې باندې ولیکل شي د هغو صحیح ځوابونه دې زده کوونکو ته تشریح شي بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وشي:

له لومړي ګروپ څخه امین: د مربع د میحط (چاپیریال) د پیدا کولو لپاره له کومې عملیې څخه کار اخستل کیږي؟

له دویم ګروپ څخه فرید: مثلث څو ضلعې لري

له دریم ګروپ څخه حمید: د مستطیل د محیط د پیدا کولو دپاره څه وکړو؟

– ښاغلي ښوونکی دې یو دانه لرګی په خپل لاس کې ونیسي او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي زما په لاس کې څو داني لرګي دي؟ هغه وایې یو دانه لرګی ده. بیا دې هغه لرګی داسې مات کړي چې دوه مساوي برخې جوړې کړي بیا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي اوس څو داني لرګي دي؟ هغو لرګو ته ګوري وایې دوه داني لرګي دي. څه وشول چې دوه داني لرګي شول. تاسو یو دانه لرګی مات کړ چې دوه لرګي شول. ښاغلی ښوونکی دې هغه دوه لرګي داسې کنښیږدي چې د هغو تر منځ اوږدوالی او لنډ والی معلوم شي او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي کوم یو یې لنډ او کوم یو یې اوږد ده هغوی لرګو ته ګوري او وایې د دوارو اوږدوالی عیني شئ ده. یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته را وغواړي. او هغه ته دې. د کاغذ یوه سپینه

لسم فصل
د کسر پیژندل په عملي توګه
یو شپیتم لوست
په هندسي شکلونو کې کسر

هدف:په هندسی شکلونو کې د کسرونو پشژندل.

مساوی او نامساوی برخې

برخې په عیني اندازه نه دي. — دا مساوي برخې نه دي.

برخې په عیني اندازه دي. — دا مساوي برخې دي.

لاندې هر یو شکل په څو برخو ویشل شوی دی کوم شکلونه په مساوي برخو او کوم شکلونه پـــه نامساوي برخو ویشل شوی دی. لست یې کړئ د مثال څخه کار واخلئ.

| | |
|---|---|
| ۱شکل: برخې ۲ — نا مساوي — (مساوي) | ۲شکل: برخې ۳ — مساوي — (نا مساوي) |
| ۳شکل: برخې ۴ — (مساوي) — نا مساوي | ۴شکل: برخې ۴ — مساوي — (نا مساوي) |
| ۵شکل: برخې ۸ — (مساوي) — نا مساوي | ۶شکل: برخې ۶ — (مساوي) — نا مساوي |
| ۷شکل: برخې ۶ — (مساوي) — نا مساوي | ۸شکل: برخې ۴ — مساوي — (نامساوي) |

۱۳۲

پاڼه ورکړي ورته ودې وایې دا پاڼه داسې قات کړه چې قات شوې برخې یو له بله سره مساوي وي. یعنې لږ او زیات نه وي. ښاغلي چې زده کوونکی دا کار په ښه توګه سرته ورسوي. پرته له هغه ښاغلي ښوونکی دې مرسته وکړي. بیا دې یو بل زده کوونکی را وغواړي هغه ته دې یو تار ورکړي ترڅو ټولو زده کوونکو ته یې وښیې. کله چې زده کوونکی تار واخست هغه ته دې ووایې دا تار داسې پریکړه چې یوه خوا یې اوږد او بله خوا یې لنډه وي. زده کوونکی دا فعالیت سرته رسوي.

– بیا دې تارونه د پرتله کولو لپاره یو د بل تر څنګه کښیږدي. ښاغلي ښوونکی دې له نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي د دې تارونو اوږدوالی یو له بله سره مساوي دي؟ هغوی تارونو ته ګوري او وایې نه، یو یې اوږد او بل یې لنډ ده. په همدې ډول یوه ورق کاغذ دې داسې قات کړي چې قات شوې برخې غیر مساوي وي او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي دا برخې یو له بله سره مساوي دي؟ ښایې چې ځنې زده کوونکي ووایې، هو. ښاغلي ښوونکی دې هغه یو پر بل باندې کښیږدي زده کوونکو ته دې وښیې. دا مساوي دي؟ کله چې زده کوونکي هغو ته ګوري. نو سم قضاوت کوي. چې مساوي نه دي. وایې غیر مساوي دي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي مونږ شکلونه او شيان په مساوی برخو او هم په غير مساوي برخو ويشلای شو. ښاغلی ښوونکی زده کوونکی بايد د يوه شي اجزاوي چې مساوي دي او که غير مساوي يو له بله تشخيص کړي. که چيري زده کوونکی د مساوي او غير مساوي اجزاوؤ، توپير ونشي کړای ورته وواياست. لومړی يو شئ پريکړئ. بيا يې يو پر بل باندې کښيږدئ ورته ګورئ. کله چې لړ او زيات نه وي. نو پريکړ شوي برخې مساوي دي. او که چيرې لړ او يا زيات شي نو پريکړ شوي برخې غير مساوي دي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳۲ او ۱۳۳) مخونو ته را وګرزوي. هغه شکلونه او تصويرونه چې د کتاب په (۱۳۲) مخ کې په مساوي او غير مساوي برخو ښودل شوي دي. زده کوونکو ته دې تشريح شي ترڅو زده کوونکی د مساوي او غير مساوي په مفهوم باندې په صحيح توګه پوه شي. او هم د لومړي چوکات دوه شکلونه چې په هغو کې مساوي او غير مساوي برخې ښودل شوي دي. زده کوونکو ته دې تشريح شي. د (۱۳۲) مخ دوه دويم چوکاتونه دی لومړی ګروپ ته دوه دريم چوکاتونه دې دويم ګروپ ته، او دوه څلورم چوکاتونه دې دريم ګروپ ته ورکړل شي. ترڅو هر ګروپ د شکلونو او تصويرونو له مخې مساوي او غير مساوي برخې تشخيص کړي او په خپلو کتابچو کې کار وکړي او همدارنګه په (۱۳۳) مخ کې دوه لومړنی چوکاتونه دې لومړی ګروپ ته، دوه دويم چوکاتونه دې دويم ګروپ ته او دوه دريم چوکاتونه دې دريم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو په ګروپي ډول په ټولګی کې کار ورباندې وکړي. او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښتنه:**

– څوک وايي که چيري يو لرګی داسې مات کړو چې يوه خوا يې زياته او بله خوا يې لږ وي برخې يې مساوي دي او که غير مساوی؟

– څوک وايي که چيرې يوه ورق کاغذ داسې قات کړو چې قات شوي برخې لږ او زيات نه وي برخې مساوي دي او که غير مساوی؟


مساوي برخې رسم کړئ او هره برخه په مختلف رنګ سره رنګ کړئ.

۹. ۴ مساوي برخې

۱۰. ۳ مساوي برخې

۶ مساوي برخې

۸ مساوي برخې

دوه مساوي برخې

۲ مساوي برخې

کورنې دنده: ۴ مساوي برخې رسم کړئ ترڅو نوي شکل جوړ کړئ .

مثلث جوړکړئ

مستطيلونه جوړ کړي چې مربع نه وي

مربع ګاني جوړي کړئ

دا يوه مڼه ده

د مڼې نيمايي

د مڼې نيمايي

دا مڼه په دوو مساوي برخو ويشل شوې ده هره برخه د مڼې يوه، دوهم برخه جوړه وي اوهري برخې ته يو دوهم $\frac{1}{2}$ وايي.

۱۳۳

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې شکلونه په مساوي او غير مساوي برخو جلاء کړي:


په دوو مساوي برخو جلا کړي.

په دريو غير مساوي برخو جلاء کړي.

**ذهنيت:**

د مساوي او غير مساوي برخو په جلا کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د شيانو د مساوي او غير مساوي برخو په جلا کولو سره کولای شي. له دې مهارت څخه په ورځنی ژوند کې ګټه واخلي کله چې ورته ويل کيږي دا شئ په مساوي برخو جلاء کړه پرته له دې چې لږ يا زيات شي کار سرته رسوي.

**۴– کورنی دنده:**

هغه پوښتنې چې د (۱۳۳) مخ په پای کې د کورنی دندې په توګه ټاکل شوي دي. زده کوونکو ته دې ورکړل شي چې د کتاب د هدايت سره سم کار وکړي.

## عنوان: په هندسي شکلونو کې کسر

**(۱۳۴) مخ**

**وخت: دوه ساعت (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** د زده کوونکو پیژندنه له کسر څخه ده چې وکړای شي کسر په شکلونو کې وښيي.

**اصطلاح ګاني:** نیمایې، دریمه برخه، څلورمه برخه، د کسر صورت، د کسر مخرج، د بر خط.

**د لوست مرستندوی مواد:** مثلث، مربع، مستطیل او دائره چې مخکې جوړ شوي وي، د کاغذ سپینه پاڼه، لرګوټی.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي که چیري زده کوونکو په مساوي برخو سره د شکلونو په ویشلو کې اشتباه کړې وي، اشتباه ګانې دې په درې باندې ولیکل شي. صحیح ځوابونه دې د داوطلب زده کوونکو په واسطه پیدا شي ترڅو په درې باندې یې حل کړي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي او له ګروپونو څخه دې لاندې پوښتنې وشي:

لومړی ګروپ: تاسو په دوو مساوي برخو جلا شئ، هره برخه د تاسو څو تنه کیږي؟

دویم ګروپ: که چیری ستاسو شمیر ۹ تنه وي او ۳، ۳ تنه جلاء شئ. وواياست په څو مساوي برخو جلاء شوي یاست؟

دریم ګروپ: که چیری ستاسو شمیر ۱۲ تنه وي او ۳، ۳، تنه جلاء شئ وواياست په څو مساوي برخو جلاء شوی یاست؟

– ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکی را وغواړي هغه ته دې د کاغذ یوه سپینه پاڼه ورکړي او هغه ته دې ووايي چې دا د کاغذ پاڼه نیمایې کړه. ښاغلی ښوونکی دې پام ونیسي چې زده کوونکی د کاغذ پاڼه په دوو مساوی برخو ویشله ده او که نه؟ که چیری زده کوونکی وکولای شي ښه به وي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي ته څرګند کړی نیمایې په دې معنا ده چې یو شئ په دوو مساوي برخو وویشل شي. په همدې ډول یو بل زده کوونکی دې را وغواړي یو لرګوټی




چې یو متر اوږدوالی ولري هغه ته دې ورکړي. او ورته ودې وايي. دا لرګوټی نیمایې کړه. کله چې زده کوونکی لرګوټی مات کړ. بیا دې د لرګوټو اوږدوالی په عملي توګه پرتله کړي چې مساوي دي او که نه؟ که چیری مساوی وي صحیح ده پرته له هغه ورته وواياست چې دا لرګوټی نیمایې شوئ نه ده. ځکه یو یې اوږد او بل یې لنډ ده. بیا دې ښاغلی ښوونکی یو مثلث او یوه مربع په درې باندې رسم کړئ او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي څوک کولای شي مثلث په دوو مساوي برخو وویشي. که چیری داوطلب زده کوونکی وکولای شی ښه به وی پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې مثلث په دوو مساوي برخو وویشي. او نیمایي دې رنګ کړي ودې وايي هره برخه د مثلث دویمه برخه جوړوي او هره برخه د مثلث یو دویمه یا نیمایي لولو او داسې لیکو: ($\frac{1}{2}$).

– همدارنګه ښاغلی ښوونکی دې یوه زده کوونکي ته ووايي چې مربع په دري مساوي برخو وویشي. که چیری زده کوونکی مربع په دري مساوي برخو وویشله ښه به وي، پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې مربع په دریو مساوي

برخو وویشي یوه برخه دې رنګ کړي. او زده کوونکو ته دې ووایې دا مربع په دریو مساوي برخو ویشل شوي ده. هره برخه یې د ټولې مربع دریمه برخه جوړوي او داسې لوستل کیږي دریمه برخه یا ($\frac{۱}{۳}$) برخه.

– په همدې ډول هغه شکلونه او تصویرونه چې ښاغلی ښوونکی له ځان سره راوړي دي په هغو کې دي زده کوونکو ته د کسرونو $\frac{۱}{۲}$ ، $\frac{۱}{۳}$ او $\frac{۱}{۴}$ څرګند او وښيي. په نوموړی کسرونو کې (۱) ته د کسر صورت ۲، ۳ او ۴ ته د کسرونو مخرج، او هغه خط چې صورت او مخرج یو له بله سره جلاء کوي د بر د خط یا د کسري خط په نامه یادیږي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳۴) مخ ته راوګرزوئ. لومړی چوکات چې په هغه کې د نیمایي منې مثال او دویم چوکات چې د مثلث نیمایې په هغه کې څرګند شوی ده. زده کوونکو ته یې تشریح کړه. بیا دریم چوکات لومړی ګروپ ته د ۱۳۴ مخ څلورم چوکات دویم ګروپ ته او د دایرې مثال چې په ۱۳۴ مخ کې ده دریم ګروپ ته یې ورکړئ ترڅو زده کوونکي په خپلو کتابچو کې کار وکړي. شکلونه په مساوي برخو وویشي او یوه، یوه برخه یې رنګ کړي او د کسر په شکل یې ولیکي. ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان څارنه کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې دپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې $\frac{۱}{۲}$ د یوه شئ څومه برخه ښيي؟

– څوک وایې چې $\frac{۱}{۳}$ د یوه شئ څومه برخه ښيې؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړائ شي لاندې شکلونه رسم او په مساوي برخو یې جلاء کړي.

– مثلث او دائره رسم کړئ د هغه نیمایې په شکل کې د کسر په واسطه وښیاست.

– مربع او مستطیل رسم کړئ. د هغه یوه دریمه برخه په شکل کې د کسر په واسطه وښیاست.

**ذهنیت:**

د کسر په پیژندلو او لیکلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د کسر په پوهیدو او تشخیص کولو سره زده کوونکي کولای شي په ورځنۍ ژوند کې کار ورڅخه واخلي هغوی کولای شي یو شئ په څو مساوي برخو وویشی او هره برخه یې معلومه کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

هر یو زده کوونکی دې یوه دایره او یو مستطیل رسم کړي. په څلورو مساوي برخو دې وویشي او بیا دې یوه څلورمه برخه په شکل کې د کسر په واسطه وښیي.

## عنوان: د یوه کسري برخې ښوونه

**دوه شپیتم لوست، (۱۳۵، ۱۳٦) مخونه**

**وخت: دوه ساعت (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د یوه شئ یوه برخه، چې هغه شئ په مساوي برخو سره ویشل شوی دئ د کسر په شکل یې ولیکي او د هغه سر چپه یو څومه برخه په شکل کې وښیي.

**اصطلاح ګاني:** ښودنه، یوه برخه، یو څومه، ویشل، سرچپه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د کاغذ سپینې پاڼې، لرګوټې، د مربع، مثلث، مستطیل او دایرې رسم شوي چارتونه.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي چې زده کوونکو کورنۍ دنده په صحیح توګه سرته رسولې ده او که نه؟ اشتباه ګانې دې په درې باندې ولیکل شي. صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

له لومړي ګروپ څخه فرید: یو مستطیل په دریو مساوي برخو ویشلای شي؟ هره برخه یې څومه برخه لوستل کیږي؟

له دویم ګروپ څخه امین: یوه دایره په څلورو مساوي برخو وویشه په شکل کې وښیاست؟

له دریم ګروپ څخه احمد: په خپله خوښه یو شکل په درې باندې رسم کړه په دري مساوی برخو وویشه یوه دریمه برخه یې توره کړه؟

– ښاغلی ښوونکی دې یوه مربع په درې باندې رسم کړي او هغه دې په څلورو مساوي برخو جلا کړی بیا دې یوه زده کوونکی ته ووایې د دې مربع یوه څلورمه برخه رنګ کړه. که چیري زده کوونکی یوه څلورمه تشخیص کړه او رنګ یې کړه ښه به وي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې مرسته وکړي.

– بیا دې ښاغلی ښوونکی یو زده کوونکی را وغواړي د کاغذ یوه پاڼه دې ورته ورکړي هغه ته دې ووایې د کاغذ د دې پاڼې څخه یوه دریمه برخه جلاء کړه خپل نورو ټولګیوالو ته یې وښیه، که

دوه شپیتم لوست

د یوه کسري برخې ښوونه

هدف: زده کوونکي یوه شي چې یو شی په څو مساوي برخو ویشل شوی ده یوه برخه یې په کسري شکل ولیکي او هم سرچپه یې یوڅومه برخه په شکل کې وښودلای شي.

له ۴ مساوي برخو څخه یوه برخه یې یوه څلورمه بلل کیږي.

شنه رنګه مربع یوه څلورمه ده

دري مساوي برخې شي هره برخه یې یوه دریمه بلل کیږي.

شنه رنګه مربع یوه دریمه

له دوو مساوي برخو څخه هره برخه نیمايي یا یوه دویمه بلل کیږي.

شنه رنګه مربع نیمايي یا یوه دویمه ده

څو نیمايي، یو بشپړ شی جوړوي؟

څو څلورمې یو بشپړ شئ جوړوي؟

۱. نیمايي یې رنګ کړئ

۲. یو دریمه یې رنګ کړئ .

۳. یو دریمه یې رنګ کړئ .

۴. څلور واړه خانې یې رنګ کړي

۵. یوڅلورمه وښیاست — $\frac{۱}{۴}$ — یو دریمه وښیاست — $\frac{۱}{۳}$ — یودویمه وښیاست — $\frac{۱}{۲}$

$\frac{\text{۱ شنه برخه}}{\text{۴ مساوی برخو}}$ — $\frac{\text{۱ شنه برخه}}{\text{۳ مساوی برخو}}$ — $\frac{\text{۱ شنه برخه}}{\text{۲ مساوی برخو}}$ کسری خط (دبرخط)

$\frac{۱}{۴}$ ، $\frac{۱}{۲}$ او $\frac{۱}{۳}$ کسر بلل کیږي.

۱۳۵

چیری زده کوونکي د کاغذ پاڼه په دری مساوي برخو جلاء کړه او نورو زده کوونکو ته وښودله، ښه تر ښه، پرته له هغه د یوه داوطلب زده کوونکی څخه دې مرسته وغواړي ترڅو دا فعالیت په صحیح توګه سرته ورسوي. هغه ته دې ووایي یو دریمه په عددي شکل سره په درې باندې ولیکه زده کوونکی باید $\frac{۱}{۳}$ ولیکي.

– په همدې ډول ښاغلی ښوونکی دې یو بل زده کوونکی را وغواړي. هغه ته دې د کاغذ یوه سپینه پاڼه ورکړي او هدایت دې ورته ورکړي همدا د کاغذ پاڼه په څلورو مساوي برخو جلا کړه یوه څلورمه یې وښیاست. که چیری زده کوونکي د کاغذ پاڼه په څلورو مساوي برخو جلا کړه او نورو ته وښودلای شي ښه به وي، پرته له هغه لکه مخکنۍ فعالیت له یوه داوطلب زده کوونکي څخه دې مرسته وغوښتل شي. زده کوونکی باید د کاغذ پاڼه په څلورو مساوي برخو وویشي او نورو زده کوونکو ته یې وښیي. بیا دې همدې زده کوونکی ته وویل شي ترڅو یو څلورمه په عددی شکل په درې باندې ولیکي.

زده کوونکی $\frac{۱}{۴}$ لیکي. ښاغلی ښوونکی په دې لوست

کې زده کوونکي باید د $\frac{۱}{۲}$ ، $\frac{۱}{۳}$ او $\frac{۱}{۴}$ .... کسرونه وپېژني.

او هم په همدې کسر کې صورت، مخرج او د بر خط تشخیص کړای شي. د شکلونو له مخې کسر ولیکي. او هم پوه شي چې رنګ شوي برخې د کسر په صورت کې، د شي ټولې ویشل شوي برخې د کسر مخرج کې لیکل کیږي او هم باید ورته وویل شي که چیرې یو شئ په مساوي برخو ویشل شوي نه وي. د هغه کسر لیکلای نشو او دا فعالیت دې په عملي توګه په شکل کې وښیې: مثلاً یو شی په درې مختلفو برخو جلا کړه هغو ته وواياست د دې شکل د کسر لیکل نا ممکن دئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳۵ او ۱۳٦) مخونو ته را وګرزوئ هغه مثالونه چې په (۱۳۵) مخ کې کار شوي دي زده کوونکو ته دې تشریح شي او هم دې په عملي توګه کار وکړي. بیا د همدې مخ (۱، ۲) ګڼې پوښتنې لومړي ګروپ ته، (۳، ۴) ګڼې پوښتنې دویم ګروپ ته او (۵) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې په ګروپي ډول د هدایت سره سم کار وکړي. په همدې ډول هغه مثال چې په (۱۳٦) مخ کې حل شوی ده. زده کوونکو ته دې تشریح شي د همدې مخ (۲، ۳) ګڼې پوښتنې دې لومړي ګروپ ته، (۴) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او (۵) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي ترڅو د هدایت سره سم په ګروپي ډول کار وکړي. او ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان څارنه کوي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې که چیرې یو شي په مساوي برخو وویشل شي د کسر په شکل یې لیکلای شو او که نه؟

– څوک وایې که چیرې یو شي په غیر مساوی برخو وویشل شي د کسر په شکل یې لیکلای شو او که نه؟

مشق اوتمرین: لاندې جدول بشپړ کړئ د حل شوي مثال څخه کار واخلئ.

| دکسر رنګ شوې برخې ولیکئ | رسم | مساوي برخې |
|---|---|---|
| ۱– $\frac{۱}{۴}$ دمساوي برخو څخه یوه یوه برخه رنګ شوې ده یا دشکل څلورمه برخه رنګ شوې ده. | | ۴ |
| ۲– $\frac{۱}{۶}$ | | ۶ |
| ۳– $\frac{۱}{۸}$ | | ۸ |
| | | |

په لاندې شکلونوکې د رنګ شوو برخو اړوند کسر ولیکئ.

۴– $\frac{۱}{۸}$ $\frac{۱}{۴}$ $\frac{۱}{۴}$

۵– $\frac{۳}{۳}$ $\frac{۱}{۱۰}$ $\frac{۱}{۲}$

کورنۍ دنده:

۱۳۶

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي لاندې ورکړل شوي برخې د کسر په شکل یې ولیکي:

– یو څلورمه برخه، یوه پنځمه برخه، یوه شپږمه برخه، یوه دریمه برخه، یوه دویمه برخه.

**ذهنیت:**

د کسري برخو په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی د کسر څخه په خپل ورځنۍ ژوند کې کار اخلي هغوی کولای شي یو شئ د څو تنو تر منځ په مساوي برخو وویشي او کسري برخې یې وښیې او د هغوی قناعت حاصل شي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۱۳٦) مخ ورستني پوښتنه چې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوې ده. زده کوونکو ته دې وویل شي چې په خپل کورونو کې حل او ځوابونه دې سبا ته له ځانو سره راوړي.